# وروستی مورچل





لیکوال: نسیم حجازی
ژباړن: محمد زبیر «شفیقی»

**د کتاب مشخصات:**

| | |
|---|---|
| د کتاب نوم | : وروستی مورچل |
| لیکوال | : نسیم «حجازی» |
| ژباړن | : محمد زبیر «شفیقی» |
| کمپوز | : محمدقاسم «یما» خدری - شفیق لیزر کمپوز |
| د چاپ نیټه | : ۱۳۷۷ هـ ش |
| د چاپ شمیر | : ۱۰۰۰ ټوکه |
| ناشر | : د میوند نشراتی مرکز |

سبا کتابخانه - ډهکی نعلبندی - قصه خوانی

تیلفون: ٤٣٨٦١

# اهداء

خپلې درنې مور او خواخوږې پلار ته چې دعاگانې يې زما د لارې مشال دي.

«شفيقي»

# د «وروستی مورچل» په اړه څو کرښې

د ځینو دوستانو په همت دا دی الحمد لله د مرحوم «نسیم حجازی» د یو بل تاریخی شاهکار اثر پښتو ژباړه ستاسو په وړاندی ده، نه غواړم چی زه د دغه اثر او یا هم د ستر لیکوال مرحوم نسیم حجازی پر درانه قلم څه ووایم، داستان ستاسو په مخ کی دی قضاوت یی هم لوستونکو ته پرېږدم.

البته دوو ټکیو ته اشاره کوم، لومړی دا چی ښایی زیات درانه لوستونکی په تیره د قلم خاوندان او بیا هغه ښاغلی چی تر کمیت پر کیفیت زیات حساب کوی زما په څېر ناوزګاره سړی پر دی هڅو اعتراض ولری، زه هم اعتراف کوم چی د یوی ورځپاڼی «سهار» پر درانه مسئولیت برسیره د دغسی شهکار آثارو داسی ژباړه چی د ذوق د خاوندانو زړونه پری اوبه وځښی ښایی زما له وسه وتلی وی، خو ماته ځینو ډیرو درنو هستیو، پخپلو لورینو او ځانګړیو تشویقونو حوصله راکړی ده او دی ته یی هڅولی یم چی دغه کار ته دوام ورکړم، په دی برخه کی د شعر او ادب نومیالی سرخیل پسرلی صیب، او ځینو نورو ښاغلیو زیات هڅولی یم، پر دی سربیره د سهار د درنو لوستوالو نظریات هم زما د لاهڅونی او تشویق سبب شول.

دوهم ټکی دا دی چی ما څو ځله وغوښتل چی د مرحوم «حجازی» پر ځای د کوم بل لیکوال آثارو ته مخه کړم، ښایی زموږ اولس او زلمیان نور له دی موضوع څخه ستومانه شوی وی، خو ما د دغه داستانونو له طلسم څخه ځان ونه ایستلای شو، منم چی نړیوال ادب ډیر څه لری چی زموږ خواره ژبه پری بډایه شی، خو زه چی د مرحوم حجازی په آثارو کی کوم څه ګورم که یی ادیبان زما ګستاخی ونه بولی د نړۍ په ډیرو شهکارونو کی می نه دی لیدلی، لیکوال یوازی دا نه دی غوښتی چی لوستونکی دی څو ساعته مصروف کړی، بلکی د انسانی تمدن د

عروج او زوال عوامل ورته ښيي، پر دې علاوه چې د دغه درانه ليکوال شهکارونه د اسلامي نړۍ د تاريخي حوداثو مستند داستانونه دي دومره رنګيني او خوږوالي لري چې د نن زماني د ديش آنتن، ويډيو او فلم نسل ته هم پوره په زړه پوري دي، پر دې علاوه په دې آثارو کې خو ما هغه څو سوه کلن زماني واټن او يا د مکان او چاپيريال بدلون نه دی حس کړی، نه پوهيږم ولي ماته څو سوه کاله پخوا د مغلو په لاس د بغداد په کنډوالو کې د خپل کنډواله کابل تصوير ځليږي، او ولي د هغه مهال د بې پروا اميرانو بڼې راته د خپلو اميرانو په څير ښکاري!

مهلب بن داود اوس هم وينم چې له نويو چنګيزيانو سره زما د کابل په معامله ناست دی... او د طاهر، تيمور او جلال الدين سرګرداني اړواوي ګورم چې زمين او زمان مخ ترې اړولي دی خو دوی اوس هم د امت د راويښيدو په تمه دي، يو ځل بيا تکراروم چې زه د دغو آثارو په ژباړه کې د يوه معنوي سکون احساس کوم، خپل اولس په تيره ځوان کول ته يې په همدغو نازکو حالاتو کې ګټور بولم.

دغه يادونه ضروري بولم چې «وروستي مورچل» داستان په سهار ورځپانه کې پرلپسې د «وروستي کمر» په نوم خپور شويدی، چې دلته يې د استاد صميم صيب په مشوره په وروستي مورچل بدلوم.

په پای کې له خپلو ټولو دوستانو څخه په تيره له خپل ګران، کشري ورور محمد الله «کمال» څخه چې د کتاب په تصحيح کې يې پوره زيار وګاله مننه کوم، پر استعداونو يې برکت شه، همدغسې له ورور يما جان څخه بيا مننه چې د کتاب په کمپوز کې يې خواري کړې، د ميوند کتاب خپرولو موسسې له مسئول ورور نصير صاحب څخه زياته مننه کوم چې «وروستي مورچل» ته يې د چاپ وياړ وباښه او درنو لوستونکو ته يې وړاندې کړ.

نور په خدای «ج» سپارلی.

**درنښت**

**محمدزبير«شفيقي»**

**د جمعي مبارکه ورځ د کمکي اختر څلورمه ۱۳۷۷**

# د ظهیر زوی یوسف

د عربو له بیابان نه د اسلام چینه وخوټیدله، او هغه شګلنې دښتې چې په پیړیو پیړیو د سیلاتیانو د پام وړ نه وی د زمانی د څار مرکز شوی.

د جهالت په تروږمیو کی سرګردانه انسانیت چی د لارښوونی د کوم لمر په انتظار ؤ هغه لمر د فاران له غونډیونه راپورته شو.

په هغه ورځ چی د آمنی په ګلاب، د عبدالله په بچی، او د عبدالمطلب په لمسی د محمد صلی الله علیه وسلم نوم ایښودل کیده د فطرت انځور ګرد نړۍ په نقشه کی نوی رنګ خپراوه، تقدیر د نړۍ د قومونو لارښوونه عربو ته سپارله او د نړۍ تاریخ لیکونکو یو نوی باب لیکه، د رحمت پریښتو د غلامۍ او جهالت په زنځیرونو تړلی، تپی شوی انسانیت ته د آزادی، ورورولی او برابری درس ورکاوه.

د عربو سارایانو لات او هبل مات کړل او پر نړۍ د رحمت د وریځو په څیر خپاره شول، د دوی د توری او سپنو هره او سپنه غوځه کړه، د دوی تهذیب، مدنیت او اخلاق پر تولو تهذیبونو مدنیتونو او اخلاقو بری وموند، هغوی د نړۍ څخه د فساد د ونی جرړی غوځی کړی. او د انسانیت په بڼ کې یې پخپلو وینو د سولی او امن ونی خروبې کړې، د کفر تیارې د ماسپښین د سیورو په څیر ورتولیدی، د قیصر او کسری د استبداد ماڼۍ ویجاړی شوی وی، د اسلام د غازیانو د بری جنډۍ یو لوری ته د البرز د غرونو په واورینو څوکو او بل لوری ته د افریقا په شګلنو دښتو کې رپیدې. د دوی اسونه په یوه وخت کی په ختیځ کی د هندوستان او په لویدیځ کی د هسپانیی په سیندونو اوبه څښلی، دیارلس سوه کاله وروسته اوس هم یو مورخ په حیرانی دا پوښتنې چی د عربو د اسونو تګ غیر-معمولی ګړندی ؤ او که قدرت د دوی په مخه کی ځمکی ته نغښتل وربسودلی وو؟

دا یو انقلاب ؤ، یو روښانه انقلاب، تقدیر د عربو د شګو ذروته ځلا ورکړه، او هغوی یی د نړۍ تیارو ګوټونو ته واستول.

خو شپږ سوه کاله وروسته یو بل انقلاب راغی، یو تیاره انقلاب!، ښایی د اسلام ډیوی چی په پیړیو پیړیو کومی تیاری په مخه کړی وی له څلورو خواوو نه ورتولی شوی او د گوبی په صحرا کی یی پناه اخستی وه، ښایی د هغه اور سکروټی چی عربو په اوبو مړی کړی وی د گوبی د دښتو په سرو ریگونو کی پټی شوی او پټی بلیدلی او شپږ سوه کاله انتظار وی چی د اسلام ساتونکی کله ویده کیږی، حقیقت دا دی چی له یوی مودی راسی د اسلام د درمند ساتونکی خوب وړی وو او د کفر اور شپږ سوه کاله مخکه مړ ؤ چی د لومړنیو پیړیو د غازیانو داستانونه دوی ته د اوبو د څاڅکو په څیر وو.

د اسلام دښمنانو ته د عباسیانو د دولت تش او وراسته محلونه هم د نه ماتیدونکو برجونو او کلاگانو په څیر ښکاریدل، چی د هغوی پلرونو په لومړی هجری پیړی کی د لویو لویو واکمنو تاجونو تر خپلو قدمونو لاندی کړی وو. نژدی شپږ سوه کاله وروسته د جبر او ظلم هغه هوس چی د روم او ایران د مانیو په کنډوالو کی ویده ؤ د گوبی دښتی د یوه شپانه په وجود کی راویښ شو، د هغه شپانه نوم تموچن ؤ چی د چنگیز خان په نوم مشهور شو.

د نړی هغه فاتح چی د بخت بیړی یی د وینو په سمندر کی لامبو وهله چی دده برخه د تیارو د توپانو نو لاربنونه وه، ددغه چنگیز خان په مشری د منگولیا وحشی قبیلی د یوی سیلی په څیر پورته شوی، او د تهذیب هره ډیوه یی مړه کړه د نړی په څلورو خواو خپاره شول.

شپږ سوه کاله دمخه چی کوم نسیم د عربو له دښتی نه راچلیدلی ؤ، هغه د انسانیت پر بڼ د رحمت غمی اورولی وو، خو شپږ سوه کاله وروسته چی د گوبی له دښتی نه کومه تالنده راښکاره شوه په هغو کی د نسیمونو پرځای د چاودلیو اورغورځوونکو غرونو تودوخه او اورونه وو. او ددی دو دونو د وریځی تر برستن لاندی د هغه اورنی مادی سیلاب ؤ چی ښارونه او کلی یی وسوځول او پری تیر شوه د بابل او نینوا د کنډوالو په لیدو چی د انسان روح د تقدیر په ویرانو، اعتراف کوی هغه د تاتاریانو د اورنی توپان په وړاندی هیڅ هم نه دی.

*****

(۲)

د مهذبی نړی‌لپاره د چنگیز خان د پوځونو د جگړی تاکتیک بلکل نوی ؤ، نړی هغوی ته یو پراخه ښکارځای ؤ، د شپنو قبیلو سره د اسونو هیڅ کمی نه ؤ، پر

پسونو او وزو برسیره دوی د اسونو په غوښو او شیدو گوزاره کوله، پردی علاوه دوی د ځنگل د هر ځناور غوښه خوړله، د گوبی په دښته کی د ښارونو او کلیو نوم او نخښنه نه وه، که به چیرته باران وشو نو دغه شپانه به همالته ولاړل، او ترځو به یی څارویو د هغی سیمی ټول شنه ونه خوړل دوی به هلته پاتی کیدل، او چی بیا به کوم چا دا خبر راوړ چی په فلانی ځای کی څو څاڅکی باران شوی دی نو دوی به همغه لوری ته مخه کړه، کله کله به د نویو څرځایونو پر سر د یوی قبیلی له بلی سره لانجه راغله، چی زور وری قبیلی به د کمزوری قبیلی د څارویو د اخستلو نه علاوه د هغوی نارینه او ښځی هم مریان کړل.

ځکه خو به کمزورو قبیلو یو له بله اتحاد وکړ او یو ځواکمن سړی به یی خپل مشر وټاکه، د ژمی په موسم کی به د شمال د سړی هوا په سبب دغه ټوله سیمه دوزخ ته ورته یخنی لاندی کړه، د ریگونو پر سر به د واورو څادر وغوړید د وښو د نه موندلو په وجه به یی د شیدو څاروی وچ شول، او دوی به د تودوخی په موسم کی د ذخیره کړی وچی غوښی په خوړلو مجبور شول، کله کله به توندی سیلی راوالوتی او د دوی کیږدی به یی ورسره والوزولی او څاروی به یی تری په یوه او بله کړل.

له طبیعت سره دایمی مقابلی له دی خلکو نه زیات کلك او د زغم خاوندان جوړ کړی وو، څو څو ورځی به د اسونو پرشا پاتی کیدای شوای، او په ورځو ورځو وږی جنگیدلی شوای.

چنگیز خان د لویو لویو سردارانو د ځپلو نه وروسته هغوی د ځان تابع کړل، بیایی د شپنو تاتاریانو په مخکی د هغو هیوادونو نقشی کښیښودی چی هلته شنه فصلونه، ښایسته باغونه او شنی ورشوگانی وی، د لوټمار هوس ټول بربریان د چنگیز خان تر جنډی لاندی راټولیدوته وهڅول.

تاتاریان په گاونډیو هیوادونو د وږیو عقابانو په څیر ورپریوتل، او هغو اولسونو چی آرام ژوندانه تنبل او سست آموخته کړی وو د دوی د یرغلونو تاب رانه وړ، په څو کلونو کی د چنگیز خان پوځونو په شمال او ختیځ کی زیات هیوادونه ونیول.

گاونډی هیوادونه د هغوی گړندیو بریاوته حیران وو، دوی به په یوه یوه ورځ د څو ورځو پراوونه وهل، او په یوه وخت کی به یی څو ځایه پر نورو هیوادونو یرغل کاوه، د هغو هیوادونو پوځونه به په کوم یوه سرحد د دفاع لپاره راټول وو، د

چنگیز خان د پوځ یوی ډلی به دهغوی مقابله کوله او نور پوځ به له مخالف لوری پر هیواد ورننه وتل، کلی او ښارونه به یی ونیول او د پاچاهی ټول نظام به یی شنډ کړ، کله کله به داسی هم وشول چی د کوم هیواد پوځی سالار به د تاتاریانو له یرغل نه خبر شو د دفاع لپاره به یی پوځ په سرحد کی پراو واچاوه ، د هغه جاسوسانو به هره ورځ دا خبر ورکاوه چی د مغلو د لښکر مخه په همدی لوری ده، خو بله ورځ به کوم استازی دا خبر راوړ چی د چنگیز نور لښکر په بله لاره هیواد ته راننوت او تخت او تاج یی ونیول.

د تاتاریانو د حیرانوونکی بریالیتوب راز د دوی په ګړندی حرکت کی ؤ، دوی به په شاتوری اس سپریدل، له هر سپاره سره به څو اسونه وو، کله به چی یو اس ستړی شو سپور به په بل ښنه واړوله، د یرغل په وخت کی به چی کله کوم سپاهی لوږه احساس کړه نو د آس خیټه به یی په خنجر زخم کړه او د هغه څو غوړ په وینی به یی وځښبلی، د اوږده سفر لپاره هم تاتاریانو ډیر لږ سامان ورسره اخست، په ځنګل کی به یی اضافه اسونه خوړل، او د لاری له کلیو او ښارونو نه به یی څاروی ورسره وړل ، که به کوم ښار بیله جګړی دوی ته تسلیم شو نو مغلو به یوازی هغه خلك وژل چی جګړه یی کولای شوای، خو هر سپاهی د مات شوی قوم د تور سریو بی عزتی خپل حق ګاڼه.

که به کوم ښار له مقابلی وروسته فتحه شو نو کورونو ته به یی اور اچاوه ، او اوسیدونکی به یی وژل، د هر پوځ جنرال خپلو عسکرو ته د فتحی دیادګار جوړولو امر کاوه، او مغلو به پر ځوانانو برسیره د ښځو، بوډاګانو او ماشومانو له وژلو وروسته د هغوی سرونه غوځول او یادګاری څلی به یی تری جوړاوه. بیا به چی د هر جنرال څلی لوی ؤ چنګیز خان به هغه ته شاباشی ورکلوه.

کله کله به د دوو سپاهیانو پر دی جګړه شوه چی ستا څلی دننه تش دی او نن زما سر تیرو ډیر خلك وژلی دی.

دا هغه قوم ؤ چی تقدیر د اسلامی نړۍعبرتناکه تباهی د دوی په لاسو کښلی وه، د هغه اسلامی نړۍبربادی او تباهی چی د غفلت په خوب ویده وه، چی د الهی احکامو د عمل پرځای یی د خپلو غوښتنو او هیلو په خاطر تاویلونه پکی کول، له هغوی سره د نیمی دنیا فتحه کوونکو پلرونو توری اوس هم وی، خو د هغو پلرونو ایمان ورسره نه ؤ.

* * * * *

(۳)

د مدینی نه نژدی دوه نیم میله لری د یوه وړوکی کلی په جومات کی د سهار له لمانځه نه وروسته شیخ احمد بن حسن د قرآن او حدیثو درس ورکاوه، طاهر بن یوسف جومات ته ورننوت او شیخ ته یی وکتل.

د طاهر عمر د ۲۲ کالو په شاوخوا کی ؤ، د هغه په دنگه ونه، مناسب اندام او ښکلی څیره کی زیات وقار او شان ؤ، په سترگو کی یی د شاهین په څیر بی باکی دده د هوښیاری ښکارندویه وه.

احمد بن حسن تری وپوښتل : چمتو راغلی یی؟

: هوکی ! ما له مور جانی نه رخصت را اخستی او راغلی یم.

احمد بن حسن خپل زده کوونکی رخصت کړل، او جگ شو له ځوان سره له جومات نه ووت.

د جومات د دروازی سره د شیخ یوه نوکر اس تر جلب نیولی و، پر اس د سفر ضرروی سامان تړلی ؤ، احمد بن حسن اس په غاړه وټپاوه، اس غاړه اوچته کړه، غوږونه یی څك کړل، او مخکینی پښه یی په ځمکه ووهله.

احمد بن حسن وموسکل طاهر ته یی وکتل او ویی ویل : ستا اس وایی چی لمر تودیږی، موږ ته زر رخصت راکړه،

طاهره! زما په ذهن کی داسی کومه خبره نشته چی په وار وار می تاته نه وی کړی، بغداد به تاته یوه نوی دنیا وی، هلته ستا غوندی زلمی د جوړیدو او بی لاری کیدو لپاره په زرگونو وسیلی شته، که غواړی د هغه بڼ له ازغیو سره ونښله، او همالته پاتی شه، او که غواړی لمن دی له خوږبویه گلانو نه ډکه راوړه، بغداد د ښیگنو او بدیو مرکز دی، خو اوس بدی پکی زیاتی شوی دی، او نیکی لږ، ته به له ډیرو ترخو شیبو سره مخ شی او ډیر حوصله ماتوونکی حالات به درته مخی ته شی، قاضی فخر الدین چی زما لیك ولولی خامخا به ستا دپاره ډیر څه وکړی، او امکان لری چی د هغه په مرسته ته د خلافت دربار ته ورسیدای شی.

د خلافت په دربار کی د ایرانی او ترکی امیرانو زور دی، هغوی به ستا د لاری ترلو هڅه ضرور کوی، خو زما ستا په استعدادونو اعتماد دی، تا د علم په ژورو سمندرونو کی غوټی وهلی دی، د مدینی غوره مغزونه ستا ذکاوت ته گوته په غاښ دی، د مسلمان د ژوند دوهم جوهر سپاهی توب دی، او ته له توری سره هم په لوبو کی تکړه یی.

اوس اسلامی نړی ستا تر علم نه توری ته زیاته اړتیا لری، په بغداد کی به قاضی فخر الدین تا ته غوره لاربښود شی. که د هغه په واسطه ته کوم لوړ منصب ته ورسیدی نو په یاد ولره چی د امارت نشه ډیره بده ده، د خدای ج رضا د خلیفه تر رضا مخکی وګڼه او تل دا خیال کوه چی ته د عبدالملک په شان نه د عبدالله پهځیر جوړیدو ته پیدا شوی یی، د شتمنی په حساب به ته په بغداد کی د امیرو او شتمنو خلکو په کتار کی شماریږی، ما له هغو غمیونه یودانه زرګر ته ورښکاره کړ هغه راته وویل چی ددی بیه له لس زره دیناره نه کمه نه ده، ماله هغی نه پنځه لوی غمی ایښی دی، او دا به ستا امانت وی، پردی سربیره می ستا برخه په سوداګری کی هم پریښی ده، که ستا اعتراض نه وی نو زه به یو بڼ درته واخلم.

ځوان ورته وویل : زه خو تا مجبور کړم که نه دومره دولت می له ځانه سره نه وړ.

شیخ ورته وویل : په دی اړه ډیر بحث وشو، کله چی ته بغداد ته ورسیدی نو وبه پوهیږی چی زما خبره سهی ده، هو تردی دولت زیات قیمتی څیز له تا سره د صلاح الدین ایوبی «رح» توره ده، او ته د هغی د حق په اداکولو پوهیږی. اوس ورځه درباندی ناوخته کیږی، امین چیرته دی؟

: «هغه له ما سره دتلو تیښګار کاوه، ما هغه له نوکر سره ښار ته واستاوه، طاهر د اس جلب ونیو او شیخ ته یی د خدای پامانی لپاره لاس ور اوږد کړ خو شیخ د لاس ورکولو پرځای غیږ خلاصه کړه او ور وراندی شو ځوان یی په غیږ کی ونیو، بیا یی په ژړه غونی غږ وویل : زما بچیه ! ستا بیلتون موږ ته ډیر سخت دی، خدای دی ستا په نیکو ارادو کی برکت واچوی.

له احمد سره د غاړه غړی کیدونه وروسته طاهر بیا هغه ته د خدای پامانی لپاره لاس ور اوږد کړ خو احمد وویل : ته په اس سپور شه.

ځوان پر اس سپور شو، او بودا شیخ د هغه د آس جلب ونیو.

ځوان له اس نه بیرته د پلی کیدو هڅه وکړه ویی ویل : نه نه، زه د اسی ګستاخی نشم کولی، خو احمد هغه په لاس ایسار کړ ویی ویل : زویه ! ما د یوه مجاهد د اس د جلب نیولو له نیکمرغی نه مه محروموه، که صدیق اکبر «رض» د اسامه بن زید د اس د جلب په نیولو له وياړه غاړه اوچته وره، نو زه هم نن په خپله نیکمرغی ویاړم. په بودا توب کی که څه هم زما کمزوری لاسونه توره نه شی اوچتولی خو ستا د اس د جلب نیولو توان لا پکی شته دی.

هغه قوم نیکمرغه دی چی خلك یی په ځوانی کی له تورو سره لوبی کوی، او په بوډاتوب کی د خپلو بچیانو د اسونو جلبونه نیسی او دوی ته د غزا لاره وربښیی.
احمد بن حسن د طاهر د اس جلب نیولی د خرماله بڼ ته راووتل، هغه لږ لری نور هم ورسره د تلو هیله من ؤ، خو طاهر ورته وویل : نور زحمت مه کوه ماته اجازه راکړه.
احمد بن حسن د اس جلب د طاهر په لاس کی ورکړ ویی ویل : طاهره ! اوریدلی می دی چی د بغداد د ونو سیوری ډیر یخ دی، زویه ! چی هلته ولاړ شی ویده نه شی او پر زیدهم پام کوه هغه ډیر ساده سړی دی، د بغداد د امیرانو د هوښیارو او چالاکو نوکرانو سره یی مه پرتله کوه، د هغه سادگی کله کله د حماقت ترحده زیاته شی، خو د هغه زړورتیا او ایثار د هغه په هره خامی پرده غوړوی او جبرانوی یی.
طاهر وویل : ته ډاډه اوسه، زه هغه خپل ډیر غوره دوست گنم، احمد بن حسن خدای پامان وویل او د اس جلب یی پریښود.

*****

(٤)

طاهر بن یوسف په هغه وخت کی زیږیدلی ؤ چی د صلاح الدین ایوبی توری د اسلامی نړۍ په لوری د اروپا د عیسویانو د ځواکونو مخه نیولی وه، په تیره پیړی کی یو لوری سلجوقی ترکانو د بغداد د عباسی خلیفه گانو له کمزوری نه گټه اخسته د طغرل بیگ، الپ ارسلان او ملك شاه په څیر فاتحانو په قومانده یی د ارمنستان، کوچنی اسیا او شام پراخی سیمی په خپله لویه پاچاهی کی شاملی کړی. بل لوری یی د روم د بحیری په څنډو له بازنطینی امپراتوری نه ډیری سیمی لاندی کړی، په ٤٦٣ هـ کی سلجوقی ترکانو بازنطینی پوځونو ته په «ملازجرد» کی پریکنده ماته ورکړه، د سلجوقی ترکانو د پرله پسی پرمختگ له ویری عیسوی پادری «دوهم اربن» په اروپایی هیوادونو غږ وکړ چی د اسلام د لښکرو د سیلاب د مخنیوی لپاره یوه شریکه جبهه جوړه کړی.
د پاپ غوښتنی تر یوی مودی پوری څه خاصه نتیجه ورنه کړه، د اروپا پاچاهانو د سلجوقیانو توروته د خپلو تېرونو ډال کولو لپاره یوازی د ثواب او د آخرت وعدی کافی نه بللی، هغوی ته د دنیا د گټی په خاطر له سلجوقیانو سره جگړه د شاهین په څاله د لاس ننویستلو نه کم خطرناك نه ؤ، خو په دی وخت کی

یو فرانسوی راهب اوچت شو، او هغه ناڅاپه د اروپا خلك د اسلامی نړۍ پرخلاف راوپارول، ددغه راهب نوم «پطرس» ؤ، هغه صلیب اوچت کړ په خره سپور شو او په ټوله اروپا راوگرځید د هغه له شلیدلیو زړوجامو او لوڅو پښو نه مظلومیت خوتیده، په سترگو کی یی د کسات لمبی وی، او په ژبه کی یی زهرجن نشتر! هغه چی چیرته تلو خلك به پری ورټول شول، هغه به په القدس کی د سلجوقیانو د ظلم خیالی داستانونه اورول، ده به پخپله ژړل او نوریی هم ورسره ژړول. اولس به دده د هری وینا له اوریدو وروسته پر صلیب د قربانی سوگندونه پورته کړل، چی د اولس جوش او جذبه یی ولیده د اروپا هره لویه او وړوکی پاچاهی د اسلامی نړۍ پرخلاف د پریکنده جگړی لپاره چمتو شوه.

د هلال پرخلاف د صلیب ټول غوسه ناك ځواکونه راټول او سره یو شول، خو د ملك شاه تر وفات پوری دا سیلاب ولاړ ؤ، د ملك شاه د وفات نه وروسته سلجوقی پاچاهی ټوټه ټوټه شوه، د دوی د زوال گرندیتوب په هندوستان کی د اورنگزیب عالمگیر د وفات نه وروسته د مغولی حکومت له زوال نه هم گړندی ؤ.

د اوو کالو په موده کی د لویدیځ په لوری د اسلامی نړۍ هغه دفاعی مورچل چی د اروپا عیسوی پاچاهانو نه ماتیدونکی باله پخپله دړی وړی شو، او په ٤٩١ هـ کی د عیسویانو سیلاب پر اسلامی نړۍ راواوښت.

په بغداد کی عباسی پاچاهانو د سلجوقی ترکانو پر زوال آرامه ساه واخسته، خو دوی د عیسویت د ویروونکی سیلاب په مقابل کی څه ونشو کولی، د یوه کال په دننه کی عیسویانو د سلجوقیانو پاتی ځواك هم تر پښو لاندی غوبل کړ او د بیت المقدس په شمول یی د شام ډیر مهم ښارونه او بندرونه ونیول، د فلسطین او شام سیمی یی سره شریکی کړی او یو عیسوی حکومت یی پکی جوړ کړ، دغه هیواد د اسلامی نړۍ په زړه د خنجر حیثیت درلود.

نږدی پنځوس کاله وروسته د اسلامی نړۍ د دفاع جذبه د عماد الدین زنگی «رح» د شخصیت په بڼه راڅرگنده شوه، او د هغه د سرښندونکو حملو په سبب د صلیب د علمبردارانو په زړونو کی د اسلام د غازیانو پخوانی ویره راویښه شوه، د بغداد عباسی خلیفه لومړی د هغه حوصله لوړه کړه، او د هغه د میړانی داستانونه یی چی واوریدل د اسلامی نړۍ په زرگونو سرښندویان یی تر بیرغ لاندی راټول شول، خو د پاچاهی د داخلی گډوډیو په وجه هغه خپل کار ترسره نکړای شو، او په بیت المقدس کی د عیسویانو بلی کری ډیوی د گل کیدو په حال کی له گل

کیدونه وژغورل شوی، خو په ٥٨٤ هـ کی په مصر کی د صلاح الدین ایوبی اقتدار د هغوی ډیوی ته د شمال وروستی څپه شوه القدس یو ځل بیا د اسلام د غازیانو د اسونو پښبی بنکلولی، د اروپا عیسویانو ته د صلاح الدین ایوبی توره د سلجوقیانو له توری نه ډیره خطرناکه ښکاره شوه.

او پر فرانسی، جرمنی او انگلستان برسیره د اروپا زیاتره عیسوی پاچاهیو خپل زیات جنگیالی په ختیځ کی د عیسویانو د اقتدار، لویدونکو ستنو ته د تکیی ورکولو لپاره چمتو کړل.

عباسی خلافت دا ځل هم نیغ په دی جنگ کی گډون ونه کړ، خو د صلاح الدین ایوبی د میرانی کارنامو ډیر زر اسلامی نړۍ دده پلوی کړه، کله چی د اروپا د بی شمیره پوځونو له یرغل نه خبر شول د ترکستان، عراق او عربو زیات سربښندویان راغلل او د ایوبی تر بیرغ لاندی راټول شول.

*****

(٥)

د مدینی د څو نورو ځوانانو په څیر د صلیب په مقابل کی د هلال د جنډې اوچتی ساتلو جذبی احمد بن حسن هم له مدینی نه فلسطین ته ورساوه، د هلال او صلیب په معمولی جگړو کی احمد بن حسن د یوه بی نومه سپاهی په څیر گډون کاوه، د هغه د ټولی منصبداران دده په زړورتیا قانع وو، خو هغه پر ځان باور چی د احمد بن حسن د ښی پالنی او تربیی نتیجه وه تر یوی مودی پوری دده د لاری خنډ ؤ، د هر څومره لوی سړی د خوبښی لپاره هم تر خپل نظر او رایی نه تیریده، او هغوی دده دا پرځان اعتماد دده پر غرور او ځان غوښتنی، تعبیر اوه، د دوی د پوځی ټولی سالار یو ترکی ؤ.

د یوی ویاړمنی فتحی نه وروسته د شپی مهال د صلاح الدین پوځونو په یوه پراخ میدان کی پړاو واچاوه، یوی خواته د احمد بن حسن د ټولی قوماندان له څو نورو افسرانو سره د تیری جگړی د یادونو کیسی کولی.

هغه ناڅاپه له یوه سپاهی نه وپوښتل احمد بن حسن چیرته دی؟ سپاهی ځواب ورکړ : هغه د ونی لاندی د شمی رڼا ته کوم کتاب لولی.

ترکی افسر بیا وویل : که د هغه له کتابونو لوستلو سره دومره مینه نه وای نو ښه سپاهی تری جوړیدای شوای، ورمه ورځ کټ مټ د یوه سپاهی په څیر جنگیده، هغه پنځه تنه نصرانیان ووژل، او زما باور نه کیده چی دا د احمد وی، خو دا

کتابونه به یی له کاره وباسی.

یو ځوان چی تر اوسه پوری چوپ ناست ؤ وویل : کیدای شی هغه د یوه سرتیری پرځای ددی لپاره پیدا شوی وی چی د پوځ لاربنود شی، یو عام سرتیری بنایی له توری نه زیات څه شی ته اړتیا احساس نه کړی خو یو سالار او قوماندان کتاب ته له اړتیا څخه انکار نه شی کولی.

ترکی قوماندان په کړسنده خندا کی د ځوان د خبرو د تریخوالی پټولو هڅه وکړه وی‌ویل : نو د بغداد اوسیدونکی ټول منصبداران او سالاران دی ! هغوی یوازی کتابونه لولی.

ځوان ځواب ورکړ: د اسلامی نړۍ بدمرغی ده چی د بغداد اوسیدونکی له کتاب سره د توری ضرورت نه احساسوی، که نه نو د اسلامی نړۍ هر سپاهی به د دوی تر قوماندی لاندي جګړه د ځان ویاړ بلله.

د مشال له رڼا نه د لری والی په سبب ترکی سالار خپل مخاطب ونه پیژاند، هغه لږ په ترخه لهجه وویل ، دا د احمد بن حسن دوهم ملګری له کومه شو، ته لږ راوړاندی شه!

ځوان له ګوښی را اوچت شو او د سالار په مخکی ودرید، سالار ورته وویل : هی هی یوسفه نن دی ژبه ولی وچلیده؟ کښینه! زه د هر توریالی په لیدو خوشحالیږم. تا په خپله لومړنۍ جګړه کی زموږ شاباسی ګټلی دی، خو دی ته دی پام لره چی دلته دبغداد د خلکو په باب له خلکو سره نیک نظر نشته.

یوسف جدی ځواب ورکړ : د خبرو په وخت زما ذهن کی د خلکو رایه نه وه بلکی ته وی، زه د بغداد خلك نه د ستاینی وړ بولم او نه می یی ستاینه کړی ده. د هغوی یادونه هسی راغله، اصلی خبره دا وه چی سپاهی باید علم زده کړی که نه؟ زه دا وایم چی توره داسی سرشوخه اس دی چی د علم قیضه ورته په کار ده، د بغداد له خلکو سره یوازی قیضه ده اس ورسره نشته.

سالار تری وپوښتل: زموږ په باب ستا نظر څه دی؟

یوسف تری وپوښتل : زموږ نه ستا مطلب ځان دی او که د صلاح الدین ایوبی پوځ؟

ترکی سالار د هغه له سوال نه پریشانه شو د خبری داړولو لپاره یی وویل : دغه ځوان په خبرو کی د احمد بن حسن استاذ ښکاری هغه هم راوغواړی!.

یو سپاهی جګ شو احمد بن حسن یی راوغوښت، ترکي سالار ورته وویل :

احمده ! تـه ورمـه ورځ کټ مټ د یوه سپاهی په څیر جنګیدلی، زما لـه تانـه هیڅکله هم دا تمه نه وه.
کښینه!
احمد بن حسن ځواب ورکړ : ته باید له خپلو سپاهیانو نه بدی هیلی ونه لری.
ترکی افسر لږ خجالت غوندی شو ویی ویل : ته له یوسف سره پیژنی که نه دی زموږ نوی ملګری دی.
احمد ځواب ورکړ : زه ورسره معرفی شوی یم.
: نن دی څه لوستل؟
: ما د خالد «رض» بن ولید د فتحو پیښی لوستی.
ترکی افسر وپوښتل : د خالد «رض» بن ولید بر یاوی زیاتی دی که زموږ د پاچا؟
زما په ګومان د هغه زمانی جګړی زموږ د وخت له جګړونه ډیری معمولی او ساده وی.
احمد بن حسن ځواب ورکړ : ستا نظر سهی نه دی، زه بی علمی د بخښنی وړ بولم، خو ریا کاری د بخښنی وړ نه بولم، ته ښایی د پاچا په مخکی که دغسی خبری وکړی نو هغه به خوښ کړی ، خو هغه اوس دلته نشته، زه دا منم چی له کتابونو نه دی کړکه ده، خو دانه شم منلی چی یوی مسلمانی موربه د لوی خالد «رض» د فتحو کیسی نه وی درته اورولی، او تاته به یی د هغو سترو غازیانو نوم په درناوی او ویاړ یا دولو درس نه وی ښودلی، چی په ګیډو به یی ډېری وتړلی، شری به یی واغوستلی او د قیصر او کسری تختونه یی تر پښو لاندی کړل. د خالد «رض» د وخت زیاتره جګړی داسی وی.چی د مسلمانانو د یوی توری په مقابل کی به د دښمن لس توری دریدلې وی.
زما په خبرو به ته خامخا خفه کیږی. تاسو زما مشر یاست، د جګړی په ډګر ستا هره اشاره ماته د حکم په معنی ده، خو هغه هم ددی لپاره نه چی زه ستا او یا پاچا صلاح الدین ایوبی خوښی وغواړم، او که دپاچا درناوی زما په زړه کی شته یوازی ددی لپاره چی هغه هم زما په څیر د اسلام یو سربښندوی دی، د داسې غلطو خبرو په سبب ښایی کوم د تاریخ زده کوونکی بی لاری نه شی، خو د پاچا په وړاندی داسی چاپلوسی ممکن د ځان خوښونی هغه جذبه په هغه کی راویښه کړی چی د هغی له سببه د بنی عباس خلیفه ګان د اسلام لپاره د بی کاره بدن په

ځیر شول.

نن ورځ اسلامی نړۍ له سلطان صلاح الدین ایوبی نه ډیری هیلی لری، ځکه خو تاسو هغه اوس له خالد «رض» او عبیده «رض» سره په برابری کی له راتلونکی نه مه بی پروا کوی، هغه ته دعا وکړی چی د ډیرو سترو بریونه وروسته هم داسی احساس کړی چی اوس یی نوی سفر پیل کړی دی.

احمد بن حسن نور هم څه ویل غوښتل چی د ونی له څنګه یو مول وهلی، (نقاب پوښ) راښکاره شو، هغه را وړاندی شو ویی ویل : خدای ج دی صلاح۔الدین د اسلامی نړۍ د هیلو پوره کولو وړ کړی. او له چاپلوسانو یی دی وساتی. د هغه په غږ کی غوسه، جلال او هیبت ؤ، اوریدونکی وارخطا شول هغه ته یی وکتل هغه چی د مشال رڼا ته نژدی شو نقاب یی لری کړ، ترکی سالار وارخطا شو ویی ویل : سلطان!

ټول پاځیدل، صلاح الدین ترکی افسر مخاطب کړ ورته ویی ویل : ما ستا خبری واوریدی ډیر خفه شوم،. ته نا پوه یی ، ستا سزا دا ده چی تر شپږو میاشتو پوری به دی له ملګرونه ځانګری کینینی او تاریخ به لولی شپږ میاشتی وروسته زه پخپله ستا ازموینه اخلم، که تا زه ډاډه کړم نو رتبه دی لوړوم که نه نو په یوازیتوب کی به دی دناستی سزا نوره هم اوږدوم. احمد او یوسف ته سلطان اشاره وکړه ویی ویل : تاسو دواړه را نژدی شی، دوی ور نژدی شول او له سلطان سره نژدی ودریدل.

سلطان تری وپوښتل : له کومه ځایه راغلی یاست؟

احمد بن حسن ځواب ورکړ : زه له مدینی نه راغلی یم، سلطان یوسف ته وکتل ، هغه ځواب ورکړ : زه له بغداد نه.

: تاسو څه وخت زما په پوځ کی شامل شوی یاست؟

احمد ځواب ورکړ : زما نژدی شپږ میاشتی وشوی او د یوسف پنځمه ورځ ده.

سلطان صلاح الدین ورته وویل : ته زما په باب د غلطو اټکلونو ګناهکار یی. زه څه سزا درکرم؟

احمد وویل : که تا زما ټولی خبری اوریدلی وی نو زه د ځان سپینولو په اړه هیڅ نه وایم.

سلطان د احمد پر اوږه په مینه لاس کیښود ویی ویل : سمدستی زه ستا له ژبی اغیزمن شوم، ماته ستا د پوځی کمالونو معلومات نشته، ځکه خو تا د

دوولسو ټولیو مشر ټاکم، او یوسفه ! ستا په غږ کی د یوه پوځی پر ځان اعتماد دی، امکان لری ته ځان وروسته د لویی ذمه واری اهل ثابت کړی، خو سمدستی تا د پنځو ټولیو مشر ټاکم، تاسو دواړو ته ډاډ درکوم چی زما په وړاندی یوازی میړانه او زړورتوب ارځښت لری چاپلوسی نه، او د حضرت خالد «رض» په اړه بنایی زه خپل احساسات بیان نکړای شم، کاشکی زه د مصر د سلطان پرځای د ستر مجاهد «رض» د پوځ یو عادی سرتیری وای. ماته نه یوازی هغه غازیان بلکی هغه خلك هم د قدر او ویاړ وړ دی چی د عراق او شام په ډګرونو کی یی د ستر خالد «رض» د پوځ ګردونه لیدلی دی چی دوی به پکی له سترګو پناه شول، زه تر ځانه د اسلام غازیانو ته د اویو رسولو په ترځ کی شهیده شوی بوډی غوره بولم.

*****

(٦)

څو ورځی وروسته د سلطان صلاح الدین په پوځ کی داسی څوك نه وو چی احمد بن حسن او یوسف بن ظهیر یی نه پیژندل، یو کال وروسته یوسف بن ظهیر د سلطان د سرتیرو قوماندان او احمد د شوری غړی ټاکل شوی وو. دواړو یو بل ته ډیر زیات درناوی او عقیدت درلود، که د جګړی پر ډګر احمد پر چا زیات ویاړ کاوه نو هغه یوسف ؤ، او د علماو په ډله کی یوسف د خپل دوست په علم اعتراف کاوه.

یوسف او احمد بن حسن عهد کړی ؤ چی تر څو پر بیت المقدس بیرته د صلیب پرځای د هلال بیرغ ونه رپیږی دوی به رخصت وانه خلی، په هغو ورځو کی چی سلطان پر یروشیلم د وروستی بریکنده برید. لپاره تیاری نیوه له بغداد نه د سلطان د پوځ څو تنه [illegible] رضا کار سرتیری چي رخصت تللی وو بیرته راستانه شول د هغوی نه یو تن د یوسف خیمی ته ورغی او د هغه د میرمن لیك یي ورکړ . یوسف هغه ته د کښیناستلو اشاره وکړه او لیك یی خلاص کړ [illegible]یی ولوست، بیا یی سرځوړند کړ او په سوچونو کی ډوب شو، لږ څند وروسته یی سرپورته کړ او سرتیری ته یی وکتل،

سپاهی ورته وویل : ما خپله میرمن ستا کورته استولی وه، هغی ستا د میرمنی حالت خراب بشوده، ستا زوی می ولید هغه روغ و، ما می خپلی میرمنی ته ویلی دی هغه به ستا د میرمن خدمت کوی.

د یوسف په شونډو غمجنه موسکا خپره شوه ویې ویل : خدای دې تاته خیر درکړي، او بیا یې له سره یو ځل بیا لیك ولوست.

لږ ځنډ وروسته یوسف په خپله خیمه کې یوازې په ناکراری قدم واهه، له پنځه شپږو ځله لوستلو وروسته یې د لنډ لیك متن یاد شوی ؤ.

: زما آغا! زما خاونده! له ډېر انتظار وروسته دې لیك راغی، کاشکي ماله تا سره یوځای پر بیت المقدس د اسلام بیرغ رپیدل لیدلی وای، زه لږ ناروغه یم، خو ته چورت مه وهه، د یروشیلم د فتحې خبر چې واورم روغه به شم، هو! دا ضرور زما هیله ده چې د بیت المقدس د فتحې زیرې تر هر چاوړاندې ته راته واوروې. خپله وعده تر سره کړه، زه شپه او ورځ خدای ج ته دعا کوم، چې پر یروشیلم د اسلام د بیرغ رپولو ویاړ ستا په نصیب کړي، طاهر ډېر خوښ دی او د محسن میرمن زما ډېر خیال ساتي، ماته هیڅ ډول تکلیف نشته.

یوسف په خیمه کې قدم واهه او دغه الفاظ یې کله په لوړ غږ او کله کرار تکرارول، د هغه د زړه درزا کله ګړندې او کله کراریده، د هغه زړه او دماغ په دوو سره بیلو خیالونو او ارزوګانو کې را ګیر شوی او په کشمکش کې ؤ، د هغه په وړاندې دوې ذمه واري وې، یوه لوري ته ځوانه او ښکلې میرمن چې له واده نه وړاندې دې بلکل یوازې ؤ، او له واده نه وروسته د هغې یوه حیاناکه موسکا ده ته د نړۍ تر ټولو خزانو غوره او قیمتي وه، هغه ناروغه وه، او په لیك کې د تسلي پر الفاظو برسیره د هغې حالت د اندیښنې وړ ؤ، ځکه چې په معمولي ناروغۍ کې هغې ته د محسن د میرمنې د خدمت ضرورت نه ؤ، هغه باید ځان کورته رسولی وای، دې به د خیال په برېښنا ته ورته ګړندې اس پښه واړوله، بغداد ته به ورسید او خپل کورته به ننوت:

زاهدې! زاهدې! ته څنګه یې؟ زه راغلم راته وګوره! هغې به ټکان وخوړ ده ته به یې وکتل او په ناکراری به یې ورته وویل : ته! ایا په یروشیلم د اسلام بیرغ ورپیده؟ دا پوښتنه به د خیال اس ته د متروکې په شان شوه، او دې به د بغداد له آرامو کوڅو نه د القدس د جګړې ډګر ته راورسید.

او لاس به یې ومروړل په لوړ غږ به یې ویل : زه به خپله وعده ترسره کوم، زه د یروشیلم، «القدس» د فتحې خبر هغې ته وروړم، بیا به د غشو په باران کې له خندق «کندې» نه تیر شو، د کلا دیوالونه به یې سوری کړل، د صلیب نښانونه به یې ځبری کړل، او د هلال له جنډې‌سره به د کلا لوړ برج ته وخوت، بیا به یې د

فتحی ناره اوچته کړه پر خپل برښنا دوله ګړندی اس به سپور شو او بغداد ته به ورسید.

د کور په مخکی به له اس نه پلی شو، او په منده به کورته ننوت ویل به یی : زما ګرانی، زما اروا، زه راغلم، یروشیلم فتحه شو، ما پخپلو لاسو د کلا په ترټولو لوړ برج د اسلام بیرغ ټینګ کړ، او د زاهدی ښکلی او معصومه څیره به له خوښی نه وغوړیده...

بیا دده وروستی پریکړه دا شوه چی : زه به ولاړ نه شم.

احمد بن حسن یی کوټی ته ورننوت او ورته ویی ویل : یوسفه! له بغداده څو تنه سپاهیان راغلی دی. ستا له کوره یی څه پیغام راوړی دی؟

: د میرمنی لیك می راغلی دی، یوسف د موسکی کیدو هڅه وکړه ویی ویل .

: ته اندیښمن یی خیرت خو به وی؟

: هغه لږ ناروغه ده!

احمد بن حسن په حیر دده څیری ته وکتل او له یوی شیبی چورت وروسته یی وویل : ته یی ورغوښتی یی؟

: نه ته لیك ولوله، دایی وویل او بیا یی د خپلی میرمنی لیك د احمد په لاس کی ورکړ.

احمد د لیك له لوستلونه وروسته وویل : له لیك نه خو د اندیښنی خبره نه ښکاری، بیا هم ته پریشانه یی، زه درته یو زیری اوروم.

یوسف په ناکراری وپوښتل : د څه زیری! ایا په القدس زر حمله کیدونکی ده؟

: هوکی! بل سبا ته به د القدس دیوالونه ور ړنګوو، او انشاء الله ته به د بغداد خلکو ته د القدس د فتحی د زیری اورولو لپاره په یوه هفته کی چمتو شی، زه به هم څو مزله درسره ملګری وم.

یوسف بیا وپوښتل : ستا باور دی چی بله ورځ به حمله کوو؟

احمد ځواب ورکړ : زه همدا اوس د سلطان له دربارنه راغلی یم.

د یوسف زړه درزیدو، بیا یی دوست ته وکتل او د موسکا هڅه یی وکړه ویی ویل : کاشکی دغه حمله نن وای!

احمد له لږ سوچ وروسته بیا وپوښتل : زه د لیك د راوړونکی نوم پوښتلی شم؟

: دغه لیك محسن راوړی دی زما ګاونډی دی.

: په کوم ټولی «رساله» کی دی؟

: هغه د حملی د پوځ د اتلسم ټولی د سالار مرستیال دی.
ماښام مهال احمد بن حسن یوسف ته وویل : یوسفه! ماله محسن سره ولیدل، د هغه له خبرونه معلومیده چی ستا د میرمنی حالت ښه نه دی. که غواړی چی ولاړ شی زه به له سلطان سره ستا د رخصت خبره وکړم.
یوسف ځواب ورکړ: نه د ناروغی د خدمت او علاج فرصت بیا هم په لاس راشی، خو د یروشیلم د فتحی فرصت ښایی بیا په لاس رانه شی.

*****

(۷)

اته ورځی وروسته د مسلمانانو پوځ له څلورو خواو پر القدس حمله وکړه، سلطان صلاح الدین په یوه سپین اس سپور ؤ او د پوځ لارښونه یی کوله، سلطان چی لومړنی سپاهی ولید چی پر دیوال یی کمند ور وغورځاوه یوسف ؤ، له پاسه د دتیږو او غشو باران ؤ او یوسف ډال پر سر نیولی ؤ او د ځان ساتنه یی کوله، د دیوال سرته د ختلو امکان یی ډیر لږ ؤ، سلطان له ځانه سره وویل که دی د دیوال سرته وخوت زه به می خپله توره وربخښم، یوسف د دیوال سرته ورسید او څو نورو ځوانانو هم دده په تقلید کمندونه وغورځول، د یوسف توری څو تنه په مرگ وسپارل، سلطان خپل جنرال ته وویل : « اوس دی زما د آس حقدار هم دی».
څو تنه نور غازیان هم د حصار سرته وختل او له شانه یی پر یوسف د پهره دارانو د یرغل مخه ونیوله، یوسف په خپلو پرله پسی حملو شپږ، او ه سپاهیان وارخطا کړل، صلاح الدین د خوښی او احساساتو له جوشه ویل : ځوانه! زه تا دیرغل کوونکی ډلی اعلی سالار ټاکم، د لږ ځنډ لپاره د سلطان پام بل لوری ته واوښت او چی کله یی دویم ځلی هماغه حصار ته وکتل نو دده پوځیانو پری قبضه کړی وه، خو یوسف هلته نه ؤ، هغه له خپلو نژدی کسانو څخه وپوښتل : یوسف چیرته ولاړ؟
هغوی د دروازی پرسر تر ټولو لوړ برج ته اشاره وکړه ویی ویل : هلته گوره یوسف ډیر خطرناك ځای جگړه کوی.
سلطان پورته وکتل، د یوسف توره په یوه وخت کی له دری تورو سره جنگیدله، د سلطان دوه سپاهیان یی مرستی ته ور رسیدلی وو، د یوسف د توری په یوه گوزار د صلیب نښان لاندی راولوید، د سلطان په سترگو کی د خوښی اوښکی راغلی ویی ویل : ته زما زوی یی: زه تا ددی ښار والی ټاکم. خو د یوسف له

لاسه توره لوليدلی وه، او يوه ځوان هغه ته تکيه ورکړی وه، سلطان هغه وپيژاند هغه احمد بن حسن ؤ.

د سلطان پوځ دننه ننوت او دروازې يې خلاصې کړې دښمن وسله غورځولې وه، سلطان اس وزغلاوه او کلا ته ننه ووت له اس نه پلی شو او د څو تنو نورو افسرانو سره په بېره برج ته وخوت، د يوسف پر بدن ډېر زخمونه وو، احمد له خپل پټك نه اوبه ورڅښلې، سلطان په ځمکه گونده ووهله او ده ته نژدې کښيناست د هغه زغره يې وويستله زخمونه يې وکتل، او د هغه په نبض يې لاس کېښود، په غمجنه لهجه يې وويل : بچيه ته ما ددې ښار والي ټاکلی يې، ښايي ستا حکومت ډېر لنډ وي، که د ښار د خلکو لپاره څه حکم کوې نو بېره کوه!

يوسف لومړی سلطان او بيا احمد ته وکتل او بيا يې سترگې د صليب پر نيم ځورند بيرغ ميخ پاتې شوې.

احمد بن حسن وويل : ددې ښار د حاکم هيله ده چې پردې ښار د فتحې بيرغ دده په لاس ټينگ شي، سلطان له دې خبرې سره د يوسف په سترگو کې غير معمولي ځلا وليده، هغه يې بيا نبض وکوت او يوه سپاهي ته يې د بيرغ د راوړو امر وکړ، يوه سپاهي د صليب مات نښان وغورځاوه، سلطان صلاح الدين ايوبي او احمد بن حسن يوسف ته تکيه ورکړه او جگ يې کړ، د يوسف په مړ ژواندو لاسونو کې ناڅاپه ځواك پيدا شو، بيرغ يې ټينگ کړ، پر شونډو يې موسکا وغوړېده، هغه موسکا چې يوازې د خدای «ج» په لار کې د شهيد کيدونکو پر شونډو غوړېږي، ناڅاپه يې له خولې نه ووتل : زاهدې ! القدس فتحه شو!.

د سلطان په حکم يې يوسف يوې کوټې ته ورساوه، د ځنکدن په وخت کې يې چې احمد بن حسن ته څه وويل هغه دا وو:

احمده ! زما د ميرمنې ددعا يوازې يوه برخه قبوله شوه، ما د يروشليم د فتحې خبر ورونه رسولای شو، خو د تقدير په يوه راز اوس زه پوهيږم، زاهده په بغداد کې نشته په کوم بل ځای کې زما انتظار کوي. که هغه ژوندۍ وای زه به خامخا بغداد ته رسيدلی وای، د بيرغ د ټينگولو په وخت کې مې داسې احساسوله چې هغه ماويني، ته بغداد ته ولاړ شه، که هغه تر اوسه ژوندۍ وي نو د القدس د فتحې زيرې تر هر چا رومبی ددې حق دی چې وايې ورې. که هغه ژوندۍ نه وه نو زه مې خپل زوی تا ته سپارم! هغه دا وويل او سترگې يې پټې کړې او په کمزوري غږ يې تکرار کړه: زاهدې ! زه راغلم.

یروشیلم «بیت المقدس» فتحه شو، د یری بیرغ ما پخپلو لاسونو تینګ کړ، هغه بیا سترګی وغړولی.
سلطان او احمد ته یی وکتل ، او بیا د یوی اوږدی ساه نه وروسته دده د سترګو مخی ته د مرګ پردی وغوړیدی.
سلطان وویل : ته زر تر زره بغدا ته د تلو لپاره چمتو شه، زه د یوسف د میرمن لپاره څه پیسی درکوم، که هغه خدای «ج» مه کړه مره شوی وه، نو زه د هغوی د بچی پالنه تا ته سپارم.
احمد بن حسن وویل : زه چمتو یم، که ستا اجازه وی نو د بغداد یو سپاهی چی د یوسف دوی ګاونډی دی له ځانه سره ملګری کوم.

* * * * *

(۸)

لږ څنډ وروسته د سلطان د هستوګنځی په مخه کی د دوی اسونه تیار وو، په دی کی یو هغه اس هم ؤ چی لږ وړاندی سلطان صلاح الدین ایوبی پخپله پری سپور ؤ، د رخصت په وخت کی سلطان احمد بن حسن خپلی خیمی ته ور وغوښت او د څرمنی یوه کڅوړه یی ورکړه ورته ویی ویل : په دی کی پنځه زره طلایی سکی دی، په دی کی زر سکی ستا دی، پاتی نوری د یوسف د کونډی دی.
که خدای «ج»، مه کړه هغه ژوندی نه وه نو دغه پیسی د یوسف د زوی په روزنه کی ولګوه، او د هغه د راتلونکی لپاره زه نور مال درکوم، دا واخله!
سلطان په یوه وریښمینه ټوټه کی غوټه احمد ته ونیوه ویی ویل : خلاصه یی کړه ویی ګوره!
احمد بن حسن غوټه پرانستله، په هغی کی قیمتی غمی ځلیدل، سلطان وویل : دا جواهر هغه وخت ورکړه چی زلمی شو.
احمد بن حسن وویل : د یوسف د زوی لپاره ستا هر بخشش روا دی خو زه دلته د دولت په موندلو پسی نه یم راغلی خدای «ج» ماته هر څه ډیر راکړی دی.
سلطان وویل : که ستا دی ته اړتیا نشته نو د مدینی د بی وزله ماشومانو لپاره یی یوسه.
د سلطان لهجه او خبری داسی وی چی احمد انکار ونکړای شو.
سلطان بیا ویل : دوه نور شیان چی زه تاته سپارل غواړم هغه یو زما اس دی،

یو سپاهی به تر بغداده دغه اس درسره بوزي. په بغداد کې یې خرڅ کړه او پیسې یې د یوسف کونډې ته ورکړه، زما هیله ده چې د بغداد خلك به زما اس په ښه بیه واخلي دوهم شي زما توره ده، هغه به د یوسف د زوی تر ځوانیدو پورې له تا سره وي.

احمد وویل : محسن له ما سره درومې.

سلطان وویل : ما هغه نه دی هیر کړی، د هغه تر راستنیدو پورې به د غنیمت په مال کې د هغه برخه خوندي وي، بیا هم دده د لارې د خرڅ لپاره یو څه ورکوم.

سلطان محسن دننه ور وغوښت او پنځه سوه طلایي سکې یې ورکړې. بیا یې له دواړو سره خدای «ج» پاماني وکړه ویې ویل : اوس تاسو درځئ! زما هیله ده چې په بغداد کې د القدس د فتحې د زیرې لومړی اوریدونکی د یوسف میرمن وي، خدای «ج» مو مل شه!

له څو اونیو مزله وروسته احمد بن حسن چې بغدا ته ورسید ورته معلومه شوه چې د یوسف میرمن د القدس له فتحې نه څلور ورځې دمخه وفات شوې وه او د محسن ښځې د هغې ماشوم کورته بیولی ؤ، احمد بن حسن چې کور ته ورسید د ماشوم د لیدو هیله یې وکړه، او چې محسن یو دوه نیم کلن ښکلی ماشوم راوړ او د هغه په غیږ کې یې واچاوه دده زړه را ډك شو، احمد بن حسن د ماشوم پر سر د مینې لاس راښکود، هلك لاس ور اوږد کړ دده پزه یې ونیوله او ویې ویل : غازي ... پلار ... غازي!

احمد هغه سینې ته ور جوخت کړ، په سترگو کې یې اوښکې راډنډ شوې ویې ویل : بچیه ! پلار دې شهید شو!

پلار ! ... ماشوم په حیَر احمد ته وکتل!

: پلار شهید ! احمد یې تندی ښکل کړ ورته ویې ویل ، ماشوم دده په غیږ کې په توپونو شو ویې ویل :

پلار شهید!

تر ماښامه په بغداد کې د صلاح الدین ایوبي د اس غوري کیدې، د بغداد امیرانو هریوه غوښتل چې دغه اس د خپلې طبیلې زینت کړي، په دوی کې دیر داسې کسان وو چې پر اس د سپریدو پرځای یې د اس سنگارول ښه زده وو.

د خلیفه په باب دا مشهوره وه چې څومره به د یو شي د پیرلو لپاره ناکرار ؤ هومره به یې لاس هم په خپل جیب کلك نیولی ؤ، او بیا به چې کوم سوداگر ته د

خلیفه وړاندیز د منلو وړ نه ؤ نو امیرانو به د هغه د پیرلو جرئت نه کاوه، خو خلیفه هغه وخت پرې خبر شو چې د چین سفیر دغه اس د لس زره درهمه په ارځښت جواهراتو پیرلی ؤ.
سبا ته احمد بن حسن د یوسف بن ظهیر زوی ورسره واخست او مدینی ته روان شو.

* * * * *

(۹)

د یوسف د کم عمره زوی نوم طاهر احمد ؤ، احمد بن حسن چې کور ته ورسید هغه یې خپلې ښځې ته وسپاره او ورته ویې ویل : سعیدې! دا د یوه مجاهد زوی دی، او زما دریاندې اعتماد دی چې ته به ددغه وړوکي میلمه په خدمت کې د مدینې د انصارو په روایتونو عمل وکړې.
ماسپښین مهال چې کله د احمد بن حسن اوه کلن زوی طلحه له مدرسې نه راغی د مور په غیږ کې یې یو ښکلی ماشوم ولید ویې ویل : مورې ! دا څوك دی؟
سعیدې ځواب ورکړ : زویه دا ستا کشر ورور دی.
ماښام مهال د کلي ټولو ماشومانو ته طلحه خپل وړوکی ورور ورښودلی، پنځه کاله وروسته یوه ورځ احمد له سعیدې نه وپوښتل : رښتیا ووایه پر تا طلحه ډیر گران دی که طاهر؟
سعیدې په حیر دواړو ته وکتل او له لږ سوچ وروسته یې وویل : نه پوهیږم!
د احمد بن حسن په کور کې تر ۱۲ کلنی پورې د طاهر ژوند یو خوږ خوب ؤ، احمد بن حسن د هغه د استعدادونو په روزنه کې هیڅ کمی نه کاوه، د مدینې د علماو او د جنگي فنونو د ماهرینو اتفاقي رایه دا وه چې دی د کوم لوی کار لپاره پیدا شویدی، احمد بن حسن او سعیدې ته دی له خپل زوی طلحه نه کم گران نه ؤ، او طلحه هم د خپل ژوند ډیرې شیبې ورسره گډې کړې وې، د اومی هجري پیړۍ په لومړنیو کلونو کې د هلال او صلیب ترمنځ جگړې له سره پیل شوې. د اروپا عیسوي ځواکونو په فلسطین او شام کې د صلاح الدین ایوبي «رح» له لاسه د پرله پسې ماتو څخه وروسته قسطنطنیه خپل مرکز وټاکه د بازنطیني امپراتورۍ د غځولو لپاره یې یو ځل بیا هڅې پیل کړې، د مصر پوځونو یو ځل بیا د اسلامي نړۍ په لوری د عیسوي پوځونو د سیلاب په مخ کې د وروستي کمره رول

لوباوه، خو په بغداد کی عباسی سلطنت یو ځل بیا د غفلت په خوب ویده شوی ؤ،
د شام د سوداګرو یوه قافله مدینی ته ورسیده او د هغوی له خولی چی احمد بن حسن د نصرانیانو د نویو حملو خبر واورید نو جهاد ته یی دروانیدو اراده وکړه.
له رخصتیدو نه یوه ورځ وړاندی طلحه وویل :
پلار جانه ! زه هم درسره ځم، احمد بن حسن هغه په غیږ کی ونیو او تندی یی ور ښکل کړ ورته ویی ویل : زه ستا له خولی ددی خبری اوریدو ته ناکراره وم.
تا دی مورته یادونه کړی ده؟
: هو هغی اجازه راکړی ده.
طاهر ته د طلحه بیلتون ګران ؤ، خو هغه ولاړ، لس میاشتی وروسته احمد بن حسن بیرته راستون شو او میرمنی ته یی وویل : سعیدی! ما ډیر دردوونکی خبر راوړی دی.
هغی په سترګو سترګو کی تری پوښتل او تر خوله یی ووتل : طلحه ....!!
: هوکی موږ دواړه د یوه هدف په خاطر روان شوو، د هغه شهادت نصیب شو او زه تش لاس بیرته راستون شوم.
سعیده : انا لله و انا الیه راجعون ط او بیا چوپه شوه.
راتلونکی کال ته احمد او سعیدی ته خدای «ج»، بل زوی ورکړ چی امین یی نوم ورباندی کیښود.
څو کاله وروسته چی کله د اسلامی نړۍ د نورو ښارونو په څیر د مدینی خلك هم پر اسلامی نړۍ له لویدیځه د عیسویت د یرغل پرځای له ختیځه د یوه تور توپان د را الوتو نخښی احساسولی احمد بن حسن طاهر ته وویل : بچیه ! اوس تر مدینی زیات بغداد تاته ارتیا لری، ستا بیلتون زه او امین نشو زغملی، خو زه دا احساسوم چی ته زما د بوډاتوب د لکنۍ پرځای د اسلامی نړۍ یوه ستنه کیدای شی، ته بغدا ته د تلو لپاره چمتو شه،
په مدینی کی له احمد بن حسن نه پرته چاته د طاهر د شتمنی هیڅ معلومات نه وو خو هیڅوك داسی نه وو چی له ده سره یی مینه نه وه، کله چی خلك خبر شول چی طاهر بغداد ته روانیږی نو تولو تر دی پوری ویل چی د عباسی واکمنی ګډ ده غوره صدر اعظم نشی موندل کیدای.
بغداد ته د طاهر له استولونه وړاندی احمد بن حسن هغه ته د یوه اعتمادی ملګری د پیدا کولو ضرورت احساس کړ، ددوی د کلی نه نژدی دری میله لری د

زید په نامه یو سړی اوسیده، هغه څو کاله د احمد بن حسن د باغونو ساتونکی ؤ، زید یو ساده او دینداره سړی ؤ، احمد بن حسن طاهر ته وویل : بچیه زه تاته د یوه دینداره او مخلص خدمتګار اړتیا احساسوم، سمدستی ماته تر زید غوره او مناسب څوك تر نظر نه راځی، که یی مناسبه بولی نو هغه درسره ملګری کړه.

طاهر ځواب ورکړ : کله چی زه د اتو کلونو وم نو هغه له ما نه وعده اخستی وه چی زه لوی شم دی به بهر ته راسره بیایم، له همغی وروسته چی کله هغه ما وینی خپله وعده رایادوی.

احمد بن حسن وویل : نو هغه راوغواړه ! زه هغه په څو خبرو پوهول غواړم.

طاهر موسکی شو ځواب یی ورکړ : هغه نن سهار راهیسی په جومات کی ناست دی، هغه ویریږی چی زه به یی پریږدم او ولاړ به شم.

: راویی غواړه!

طاهر لږ ځند وروسته یو د منځنی قد ځواکمن سړی راوست ، د هغه عمر د څلویښت کلونو په شاوخوا کی ؤ او په څیره یی بی دریغه معصومیت او سادګی وه.

احمد بن حسن وویل : زیده! ته چی له طاهر سره تللی نو ماته دی ولی نه ویل؟

زید په سادګی ځواب ورکړ : ریښتیا خبره خو دا ده چی د لوی عمر تول خلك ماکم عقل ګنی، زه ویریدم چی ته به هم ما دغسی وګنی او زما پرتلو به خوښ نه وی.

«نو ته چمتو یی؟»

: زه له شلو کالو راهیسی بغداد ته د تګ لپاره چمتو ناست یم، خو کله چی څوك له مدینی نه هلته ځی ماته وایی چی ته د میړو د څرولو لپاره پیدا شوی یی په بغداد کی به څه وکړی؟

احمد بن حسن ځواب ورکړ : خو زه تاته په پوره ډاډ وایم چی په بغداد کی تاته اړتیا شته.

: ګوره له ما سره توکی مه کوه، زه غریب ضرور یم خو په سینه کی زړه لرم. که می له طاهر سره نه لیږی نو صفا راته ووایه، زه پوهیږم چی زه یو بی کاره سړی یم، احمد بن حسن وخندل طاهر ته یی وویل : بچیه ! ده ته څه تکلیف ونه رسوی! او بیا یی زید ته مخ واړاوه ویی ویل : زیده! طاهر به بله ورځ له دی ځایه

روانیږی. ته تیار شه او ځان رارسوه، زه درسره وعده کوم چې دی به تا ورسره بیایی.

طاهر وویل : دده کلی زما د لاری پر سر دی، زه به دی له همغه ځایه راسره ملګری کړم. د هغه دلته راتګ ته اړتیا نشته.

زید وویل : زما هم دا هیله وه، زموږ د کلی خلك غواړی دی ووینی، ما ورته ویلی دی چې دده پلار ته سلطان صلاح الدین ایوبی خپل اس او توره وربخښلی وو، یوه بله خبره هم ده، هیڅوك هم دا نه منی چې زه بغدا ته روان یم. دوی وایی چې زه به څو ورځی په یوه او بله وګرځم او بیرته به راستون شم. که دی هلته راشی نو زه به خپل کلیوال لږ خړ کړم.

احمد بن حسن وویل : بنه ده ولاړ شه، طاهر به بله ورځ سهار تا ته درورسیږی، اوس تا ته دلته د پهری اړتیا نشته، زما پر وعده باور وکړه.

: ستا وعده ؟ زه رښتیا وایم که ته له ما سره وعده وکړی چې ما به اسمان ته رسوی نو زه به پری باور وکړم، احمد بن حسن زید ته اس او د سفر ضروری سامان ورکړل او رخصت یی کړ.



*****

(۱۰)

طاهر چې د احمد بن حسن ته رخصت واخست د زید د کلی مخه یی ونیوه، زید د کلی په مخه کی د ونو سیوری ته دده د ورتګ انتظار کاوه ، د هغه پر شاوخوا ماشومان ورټول وو، یو اس په ونه پوری تړلی و، او زید د جګړی په ټولو ضروری او بی ضرورته شیانو سنبال ؤ، د هغه چاغ بدن په زغره کی ډیر تنګ ؤ، او د وینی د ډب کیدو په وجه یی مخ سور او ښتی ؤ، د هغه لاسونه په نیزه او ډال بند وو. په شایی دوی د غشو کڅوری تړلی وی، په ملا یی یوه توره او دوه خنجرونه ځړیدل، لینده، کمند «پړی» او خوراکی شیان یی د اس پر زین تړلی وو.

زید چې طاهر ولید جګ شو ویی ویل : انتظار راباندی اوږد شو، خلك دی په انتظار ستړی شول او کورونو ته ولاړل.

طاهر وویل : اوس دی پر اس سپور شه چې ناوخته کیږی، زید پر اس سپور شو یوه هلك ته یی وویل : ابراهیمه ! ستا پلار په ما ترټولو زیاتی ملنډی وهلی، ورشه ورته ووایه چې زه بغداد ته ځم که یی باور نه کیږی را دی شی ودی ګوری. او سلیمانه! ته دی هم باباته ووایه هغه هم نن ویل چې ته احمق یی تا به بغداد ته

څوك بيايي! دايي وويل او بيا يي طاهر ته وكتل:

اصلاً دغه خلك هم ملامت نه دي زه څو ځله بغداد ته د تلو په نيت وم خو بيا به پاتي شوم.

طاهر موسكى شو ويي ويل : اوس راځه لمر توديږي.

كله چي بغداد ته ورسيدي كليوالو ته دي ليك راواستوه باور به يي راشي.

طاهر او زيد آسونه پونده كړل، له كلي نه چي لږ وړاندې تېر شول طاهر زيد ته شاته راوكتل ، د هغه مخ تر پخوا زيات سور خوټيدلى ؤ، هغه د اس جلب راكش كړ ويي ويل : زيده! ستا زغره تنگه ده.

زيد ځواب وركړ : زغره تنگه نه ده، زه ډير چاغ يم.

دا زغره دوه كاله دمخه ما د بغداد د تلو په نيت د ديرش وزو په بدل كي پيرلى وه.

طاهر وويل : دا خو تاته زيات تكليف نه دركوي؟

زيد د ځان د هوسايي هڅه وكړه ويي ويل : نه زما بدن دومره نازك نه دى.

څو دوه درى ميله له مزله وروسته يي ورو وويل :

طاهره ! زما په بدن كى ميږيان گرځي.

طاهر ځواب وركړ : دومره زر ستړى شوى، راځه لږ وړاندى به دمه جوړه كړو.

زيد لږ ځنډ وروسته بيا وويل : طاهره! زما وجود اور اخلي!

طاهر د ونو يوه پراخ بڼ ته اشاره وكړه ويي ويل : راځه هغه د خرما په بڼ كى به ودريږو ، هلته اوبه هم شته غرمه به هملته تيره كړو.

د زيد زغم پاى ته رسيدلى ؤ، هغه د دريم ځل لپاره بيا اس ودراوه، اوچيغه يى وويل: طاهره! ودريږه، زه مرگ ته نژدى يم، او بيايي د طاهر انتظار ونه كړله اس نه پلى شو او په تودو ريگونو پريوت.

طاهر وخندل ويي ويل : تا خو ويل چي بدن دي دومره نازك نه دى، زيد غابښونه چيچل او د زغرى د ويستلو ناكامه هڅه يى كوله.

ويي ويل : دا خو نه وزى د خداى «ج» په خاطر مرسته وكړه، داسي محسوسوم لكه په زرگونو لرمان مى چى چيچى، طاهر له اس نه پلى شو ډير په زحمت يى له هغه نه زغره وويستله، زيد وويل : خداى «ج» دي اجر دركړي. زما تمه نه وه چي ويه وزى نن درى تنو ډير په زورر را اغوستى وه.

طاهر وويل : ښه زغره ده خو پر تا لږ تنگه ده.

زید وویل : لږ تنګه ! ولی داسی نه وایی چی یوه بی عقله فیل د موږك په غار د ننوتلو سزا ګاللی.

طاهر وویل : ښه ده اوس یی راواخله، زه چی بغداد ته ورسیدم تاته به ډیره ښه زغره واخلم، دا به کوم بل چاته ورکړو.

زید په دواړو لاسونو په ریګونو کی غار جوړ کړ ویی ویل : زه دا همدلته ښخوم، زه به داسی وګڼم چی دیرش وزی می په ناروغی مری شوی‌او نوی زغره زه نه غواړم. زه په دی اوسپنیز کپس کی د ساه ورکولو پرځای پر لوڅ تنتر غشی ښخیدل ښه ګڼم. زید د زغری لپاره قبر وکینده خو د طاهر په وینا یی بیرته په توبره کی واچوله او ورسره روان شو.

# بغـــداد

په تیرو پنځو پیړیو کی د عباسی خلیفه ګانو د امن ژوند له بغداد نه د شاعر خوب جوړ کړی ؤ، د دجلی سیند هغه په دوو برخو ویشه، او په دواړو لوریو کی د ویالو او سرکونو جال خپور شوی ؤ، د بغداد مانیو او باغونو د تیرو پنځوسوو کلونو د معماری د فن د لوړتیا او کمال داستانونه ویل، د نړۍ دیرو غوره مالیارانو په دی خاوره د جنت تصور را ژوندی کړی ؤ، د شلو لکو انسانانو دغه کلی په ښکلا، زړه وړونکو منظرو او ښایست کی د نړۍ له غوره ښارونو نه یو ؤ.

خو د بغداد د ښار له جوړیدو سره یی زوال پیل شو، د اسلام هغه تمدن چی د عربو د دښتی په توندوخو صفا شمالونو کی یی وده کړی وه، اوس په دی عجمی زانګو کی خوب کاوه.

د خلافت په دربار کی د عربو رسوخ چی د مامون الرشید له وخته په کمیدو شو اوس بلکل په نشت حساب ؤ، خو د حکومت له تالارونو نه بهر د بغداد په علمی مرکزونو کی د عربو ارځښت په هیڅ صورت لږ نه ؤ، هغوی په هندسه، ریاضی، تاریخ، جغرافیه، کیمیا، طب، جراحی او طبیعی علومو کی زیات نوم وګاټه، په ګرامر، ژبو او ادب یی کتابونه ولیکل، خو د بغداد قانعو او تنبلو اوسیدونکو له دی علومونه د خپلی بیا رغاونی پرځای د ذهنی عیاشی پلمه جوړه کړی وه، د ایران، شام، ترکستان له لری لری ځایونو نه د لطیفه فنونو استادان بغدا ته راتلل او د بغداد امیرانو د هغوی پالنه کوله.

په بغدادکی په سلګونو کتابتونونه له کتابونو ډک پراته وو، د هغو کتابونو د څیړنی لپاره غوره نقادان وو خو داسی څوک چی ویی لولی او عمل پری وکړی ډیر لږ وو، پخپله د خلیفه په دربار کی به ځینی وختونه له یوه سهی عالم او یوه نه د یوه توکمار او خندوونکی قدر او عزت ډیر کیده، او د خدای ج او رسول د حکم بیانولو پرځای به یی هغه څوک دشاهانه انعامونو حقدار بلل چی خلیفه او واکمن

ته به يې د ذمه ورايو نه ترسره کولو تأويلونه کول.

د ښار په منځ کې د «خلد» د ماڼۍ په نامه يو شاندار محل ؤ چې عباسي خليفه ګان پکې اوسيدل.

شاوخوا ته د اميرانو او وزيرانو ماڼۍ وې، د لوړې طبقې علماؤ ته هم د هغو محلونو دروازې خلاصې وې، او دا به تر هغه وخته خلاصې وې تر څو به د دوی نظريات د خليفه له سياسي مسلك سره په ټکر کې نه وو، د «خلد» له محل نه لرې د ښار په يوه څنډه د سيند پر غاړه يوه پراخه بنديخانه وه، او ددې بندي خانې تر ټولو تنګې او تورې کوټې د هغو سترو او عزتمندو علماؤ او د پاچاهۍ د مشرانو لپاره ځانګړې وې چې د فتوی ورکولو په وخت کې يې د عباسي خليفه ګانو خيال نه ساته، او يا به يې دوی د اسلام په محک تلل.

د حکومت په نظر هغه مفتيان د قدر وړ وو چې د ګناه کار پرخلاف يې د پريکړې نه وړاندې ... د هغو د نسب او ټبر او د خلافت له مقام سره د اړيکو پوښتنه ضروري بلله، د يوه عام سړي لپاره د قتل سزا قتل وه، خو خليفه له دې سزا نه جلا ؤ. کله کله به خليفه د پاچاهۍ د درناوي وړ اميران په يوه دسترخوان راټول کړل، او د خليفه نوکرانو به کله کله د لوښو او دسترخوان له ټولولونه وړاندې د ځينو عزتمندو د مړو ځای پرځای کولو دنده ترسره کوله، عباسي خليفه ګان د زوال په وخت کې د خپلو مخالفينو په زهرو وژلو کې کمال ته رسيدلي وو.

دوی داسې زهر هم پيدا کړي وو چې خوړونکی به څو ورځې وروسته پرې پوهيده، هر ميلمه به په بلنه کې له ګډون نه وړاندې خامخا دا سوچ کاوه چې کوم وخت خو به يې خليفه ناراضه کړی نه وي؟ تر سزا لاندې خلك به د بلنې له احوال سره سم وپوهيدل چې وروستي وخت يې را رسيدلی دی، خو کله کله به څو هوښيار اميران چې سره يو شول نو خليفه ته به د ځان ژغورل ګران شول، د اقتدار په جګړه کې به چې کوم خليفه ماته وخوړه نو د ترکي او ايراني اميرانو د لاس آله کيدل.

په وروستيو وختونو کې چې څومره عباسي خليفه ګانو له شعر او شاعرۍ سره مينه درلوده هومره له مذهبي زده کړونه پردي اولري وو. د مذهبي چارو د ترسره کولو لپاره به يې يو بې غرضه او عاجز غوندې عالم ته ذمه واري وسپارله او هغه به يې د «شيخ الاسلام» په لقب ونمانځه، سياسي امور به خليفه پخپل لاس کې واخستل، د سياست او مذهب دغه ويش د اسلام لپاره يوه لويه فتنه وه، د شيخ

الاسلام قلم د خلیفه د توری تابع شوی ؤ.

د عزت او ښی تنخواه تمی ډیر عالمان د شیخ الاسلام د لقب ګټلو په فکر کی کړی وو او ددی هدف ترلاسه کولو لپاره یی له نورو سره ټکر کاوه او د هغوی نظریات به یی باطل بلل او هر ډول توروونه به یی یو پر بل پوری کول.

په تیرو پیړیو کی د دینی علماؤ په اجتهاد کی د دین د خدمت جذبه د دوی انګیزه وه، هغوی د بغداد په نوم ورکو ګوټونو کی ناست وو او اسلام ته یی د قدر وړ خدمتونه ترسره کړل، خو وروسته د کرسیو او لقبونو مینه وال علما را پیدا شول چی یایی د رښتینو علماو له فتوا ګانو نه د ځان په ګټه کار اخست او یایی د هغو علماؤ مخالفت کاوه د بل مسلك د علماو تائید به یی کاوه او یو بل ته به یی د مناظری لپاره بلنه ورکوله، دغه مناظری به د بغداد په عامو ځلور لارو او له ګنی ګوڼی ډکو ځایونو کی وی،د بغداد وزګارو او لټو اوسیدونکو د شاعرانو او ټوکمارو تر مجلسونو د دغو علماؤ د مناظرو مجلسونه ډیر بدرګه کول او ډیر یی خوښول. د مناظرو پیل به د یو بل د پوهیدو په نیکو هیلو ؤ، یوه. به وینا کوله او بل به په پوره داد اوریده، او بیا به هغه کښیناست د مخالفی ډلی نه به یو پورته شو او ځواب به یی ورکاوه، بیا به د دواړو لوریو ژبی ورو ورو توندی شوی تر دی چی خبره به کنځلو ته ورسیده، یوه لوری به د مخالف لوری اوه پښته حساب کړل او وبه یی ښکنځل، مقابل لوری به ددوی تر شلم پښته وشمیرل او وبه یی ستایل، یوه لوری به په دری ژبو کنځلی تکرار کړی، بل به بیا پهاوو ژبو ... او بیا به وروستی پړاو دا ؤ چی دواړو لوریو به د تکبیر له نعرو سره په مقابل لوری حمله کوله او د سترګو په رپ کی به د دوی د مړو او ټپیانو انبارونه جوړ شول، بیا به د پولیسو او پوځ متروکو دغه لوبه ودروله، حکومت دغه مناظری بندی نه کړی خو دا شرط یی پکی کیښود چی باید هلته څوك وسله وال ولاړ نه شی.

ددی مناظرو په ترڅ کی به مشهور علما دربار ته وربلل کیدل او کله کله به یی په دربار کی مناظره کوله خلیفه به معمولاً د هغه عالم په لوری ؤ چی د خلیفه لپاره به یی ترټولو ښه او غوره الفاظ او القاب راټول کړی وو.

که پردی ټولو بدمرغیو د بغداد خلیفه ګانو د عربو هغه سپاهیانه شعار چی ترنیمی نړی،زیاته برخه یی د دوی تر قدمونو لاندی کړه نه وای شاته کړی نو ښایی بغداد داسی له تباهی او ویرانی سره نه وای مخ شوی، د ولید بن عبدالملك په زمانه کی چی د عربو پوځ په سند، ترکستان او هسپانیه کی څومره هیوادونه

فتحه کړل، له عباسیانو سره د زوال په وخت کی هم له هغوی نه دری چنده زیات پوځ ؤ او هغوی پر اسلامی نړۍ د هری لویی حملی مخنیوی کولای شوای، خو د اموی او عباسی خلیفه گانو ترمنځ توپیر همدا ؤ چی لومړنیو خپل پوځونو د هیواد وروستی بریدته لیږل، خو عباسی خلیفه گان سره له دی چی دوی پخپله د بغداد محلونو په څلورو دیوالونو کی اوسیدل بیایی هم د ځانونو د ساتنی لپاره دری لکه توری وهونکی ورسره لازمی بلل.

عباسی خلیفه گان یو دبل سره په جگړو او یو د بل د وینو تږی وو، د حسن بن صباح فتنه د دوی د زوال وروستی پړاو شو.

* * * * *

(۲)

طاهر چی بغداد ته ورسید څلور ورځی یی له قاضی فخر الدین سره تیری کړی، په دی موده کی یی د بغداد په کوڅو کی د څو مدرسو او کتابتونونو ځایونه هم معلوم کړل.

د قاضی فخر الدین په کتابتون کی هم تر پنځه زره توکو زیات کتابونه موجود وو. پر فقه، تاریخ او منطق ده پخپله هم څو کتابونه لیکلی وو، دغه کتابونه د قاضی فخر الدین لپاره د بنی نفقی برابریدو وسیله وه، طاهر د خپل پلار د پخوانی ملگری محسن پوښتنه وکړه، ده ته بیا څرگنده شوه چی د هغوی کورنی مصر ته تللی او هلته میشته شوی دی.

د فخر الدین په کور کی د طاهر او زید د اسونو لپاره ځای نه ؤ، هغه دا اسونه د خپل یوه گاونډی سره ولیږل، طاهر چی څنگه راغی ځانته یی د یوه ځانگړی کور د ضرورت په اړه ورته وویل خو هغه تر څلورو ورځو ځنډاوه.

په پنځمه ورځ یی خپلو شاگردانو ته د طاهر لپاره د یوه کرایی کور د موندلو وویل، یوه یهودی دلال هغه ته دوه کورونه ورو ښودل او ورته ویی ویل چی که یی اخلی نو ارزانه بی یی ورته واخلم.

د بغداد ځینو امیرانو د هندوستان، خوارزم، مصر او اندلس د امیرانو نوکری نیولی وی او د هغوی ښکلی محلونه په ارزانه بیه خرڅیدل، طاهر او زید چی څومره مانی ولیدی په هغو کی یو هم داسی نه ؤ چی زید یی دی په پیرلو کی ناکراره شوی نه وی، خو طاهر د قاضی فخر الدین مشوره ضروری بلله، او کله یی چی ماښام مشوره ورسره کوله هغه وویل : د تشو کورونو بیه ډیره رالویدلی ده،

تا خپله راتلونکی له بغداد سره تړلی، دلته د لوړی طبقی خلك په کرایه اوسیدونکو ته زیات ارځښت نه ورکوی، خلك ستا د علم او کمال له لیدونه وړاندی ستا کور وینی، که ستا سره د کور د اخستلو لپاره پیسی وی نو خامخا کور واخله، خو د کور د بیی نه پرته باید له تاسره د دری، څلورو کلونو د لګښت پیسی هم وی، د صلاح الدین ایوبی «رح» توره به تا د بغداد لویو امیرانو ته ور وپیژنی، خو دغه خلك له مفلس سړی سره تر ډیره دوستی نه کوی، په بغداد کی چی کوم منصب شخصی استعداد او وړتیا نشی اخستلای هغه سوغاتونه اخستلای شی طاهر له خپل جیبه کڅوړه راوایستله او جواهر یی په مخکی ورته تویی کړل ویی ویل : ماته ددی سهی بیه نه ده معلومه، ته دا د یوه کور او څو کلونو لګښت لپاره بس بولی که نه ؟

قاضی یوه شیبه جواهرو ته حیران وکتل بیا یی وویل : که دا غمی بدل نه وی نو ته د «خلد» له ماڼۍ نه پرته د بغداد هره ماڼۍ پیرلی شی، خو علم او پوهه او مال او دولت هیڅکله هم نه سره را غونډیږی. تا دا له کومه کړل؟

طاهر ځواب ورکړ : دا هم سلطان صلاح الدین ایوبی راکړی دی، قاضی فخر الدین څو غمی په ورغوی کی واخستل او په ځیر ځیر یی له لیدو وروسته وویل : ته د بغداد له ډیرو شتمنو کسانو څخه یو یی، تاته به د پرمختګ یوه دروازه هم بنده نه وی، خو ګوره واوره له تانه پرته خو به ددی غمیو په باب څوك خبر نه وی؟

: یوازی احمد کاکا خبر دی.

: او زید؟

: هغه ته هم ما څه نه دی ویلی خو که ورته ووایم هم هغه اعتمادی سړی دی چاته به ونه وایی.

فخر الدین په بیړه جګ شو د کوټی دروازه یی بنده کړه او بیرته راغی پر خپل ځای کښیناست ویی ویل : بچیه! ته باید دا غمی پټ وساتی.

طاهر حیران شو ویی پوښتل : ایا په بغداد کی غله هم شته؟

قاضی ځواب ورکړ : په بغدا کی د غلو لاسونه غوځیږی خو تاته له داسی عصری ډاکوګانو نه خطر دی چی د هغوی لاسونه بنکل کیږی.

: ستا مطلب؟

: زه د کوم خاص سړی نوم اخستل نه غواړم، د دربار د امیرانو په ډله کی څو

تنه داسي دي چي ددي غميو د ترلاسه کولو په هوس کي د هيڅ اخلاقي بنديزونو پروا نه کوي، او تر څو ته دلته بلديږې له داسي خلکو نه بايد هوښيار وي.

: ايا هغوي به يي په زور له مانه اخلي؟

قاضي ځواب ورکړ : هغوي دومره احمقان نه دي، ايا دوي پردي نه پوهيږي چي د زور خبره ډيره زر رسوا کيږي.

: ايا خليفه له داسي خلکو نه څه پوښتنه نه کوي؟

: که خليفه له داسي خلکو نه پوښتنه وکړه نو داسي قيمتي غمي به بيا دربار ته څوك ورورې؟ او بيا دا هم ضروري نه ده چي د هر سړي فرياد دي د خليفه تر غوږو ورورسيږي، اولس خو هغه يوازي د اختر په ورځ ليداى شي، هغه هم له لرې، په بغداد کي ستا هيڅ ملاتړ او رسوخ نشته، اميران ستا پرخلاف ډيري دسيسي جوړولي شي، مثلاً وايي د خورازم شاه جاسوس يي، او بي له محاکمي به دي خليفه د وژلو فرمان صادر کړي.

: ايا په داسي حالاتو کي به د سلطان صلاح الدين ايوبي رح توره زما بي گناهي ثابته نکراي شي؟

: د هغي په اړه هم ويلاى شي چي د مصر حکومت ته د بغداد دپاچاهي د تختي اړولو لپاره را استولي يي، طاهر له لږ سوچ وروسته ويل : زما له مال او دولت سره مينه نشته زه بغداد ته د يوه لوي هدف په خاطر راغلي يم، زه د خلافت دربار ته ځان رسول غواړم او د خليفه د يو نيك نيتي مشاور په حيث د دوي بهرني پاليسي بدلول غواړم، اسلامي نړي له هر لوري د خطرناکو توپانونو سره مخ ده، په تيرو صليبي جگړو کي د بغداد بي طرفي او بي پروايي د اروپا صليبيانو ته ډير جرئت ورکړ، سلطان صلاح الدين ايوبي دوي ته عبرتناکي ماتي ورکړي له فلسطين او شام نه يي وايستل ، خو د هلال او صليب په هغو پريکنده جگړو کي د بغداد بي پروايي ډيره مايوسوونکي وه، پر ماتي برسيره د اروپا خلکو ته دا ثابته شوه چي خليفه له بغداد پرته د اسلامي نړي د نورو برخو په اړه بي پروا دي او هغه دير مهم محاذ ته هم له څو رضاکارانو پرته هيڅوك هم نشي استولي، ځکه خو هغوي له سره سنبال شوي دي او د مصر د لاندي کولو نيت لري، دغه هيواد د نصرانيانو د سيلاب په وړاندي وروستي ديوال دي امکان لري چي دغه هيواد ددي سيلاب مخه واړوي، خو په شمال ختيځ کي د چنگيز خان په نامه يو نوي توپان را الوتي دي که دغه توپان د خوارزم د پاچاهي له حدود ونه اخوا ونه درول شو نو

یوه ورځ به بغداد هم د خځلو او خاشاکو په شان ورسره واخلی، د بغداد په چونی کی ډیر لوی پوځ پروت دی، خو بغداد د پوځ د سردارانو د سازشونو مرکز شوی او دا ځکه چی د دوی ټولو په مخکی کوم شریك دښمن او رقیب او کوم لوړ او سپیځلی هدف نشته، د دوی ژوند د هغو ماښو گانو ژوند نه دی چی له کوره د نویو هیوادونو او نویو لارو د موندلو په اراده وزی او له خپلو ملگرو سره د کینی او کرکی پرځای هغوی خپل مټ او بازو گنی او ساتنه یی کوی، خطرناك توپانونه او ویروونکی گردابونه د دوی د یو والی او اتفاق اړیکی نوری هم مزبوتوی، خو د بغداد خلك د هغو وړوکو کبې نیوونکو په څیر دی چی د وړوکی ډنډ د کبانو پر سر یو له بل سره جگړی کوی، او داسی څوك نشته چی ورته ووایی دا دنیا د ډیر پراخه سمندر په شان ده، چی څنډې یی نه ښکاری، او که دوی د یوی څپی په څیر سره راپورته نشی نو د سمندر د توپانونو څپی به پری برلاسی شی، زه دوی ته دا ویل خپل فرض بولم، ددی فرض احساس زه بغداد ته راوستی یم، له کوره د راوتلو نه لږ وړاندی ماته معلومه نه وه چی زه د دومره لوی دولت خاوند یم چی ستونزی پری اسانه کړم، د سلطان ایوبی د وینو او خولو هرڅاڅکی د اسلام د سر لوړی لپاره وقف ؤ، زه غواړم چی د هغه د رابخښلی شتمنی په واسطه د اسلام خدمت ترسره کړم، ځکه خو له ځانه سره ددی مال د سنبالولو دومره شوقی نه یم څومره یی چی د اسلام په لاره کی د لگولو هیله من یم.

که زه دا حس کړم چی د کوم امیر نظر پری لگیدلی نو زه به دغه ټول د بغداد په بی وزلو خلکو وویشم خو د کوم زرپالونکی امیر خزانو ته به یی پری نږدم، کوم هدفونه می چی درته وویل دی ته د رسیدو لپاره د خلافت دربار ته زما رسیدل ضروری دی، په تیرو شلورو ورځو کی چی ما په بغداد کی تیری کړی زه دی نتیجی ته رسیدلی یم چی خلك اوس هم په یوه سهی هدف راټولیدای شی، یوازی د امیرانو رغول ضروری دی، ددی کور دیوالونه او غولی سهی دی یوازی په چت کی سوری شوی دی او بام ته د رسیدو لپاره ستا مرسته ضروری بولم.

قاضی فخر الدین وویل : خدای دی ستا نیکی ارادی ترسره کړی، زه پوهیږم چی په دی حال کی تاته لومړنی ضرورت د یوی ښکلی بنگلی دی، ستا په طبیله کی باید غوره اسونه وی، که تا د بغداد پر میدانونو په نیزه بازی او اس ځغلولو کی نوم وگاټه ، نو ډیر زر به د امیرانو تر نظره راشی، له هغه وروسته د یو دوو غمیو سوغات به تا د خلافت دربار ته ورسوی.

وروسته به ته د خپل علم جوهر وښیی، او که خدای ج ته د بغداد د ښې راتلونکی پریکړه منظوره وه نو د خلیفه اعتمادي به شي، خو سمدستي خپلې ارادې چاته مه ښیه، خوارزم شاه خلیفه ترټولو بد دښمن گڼي، او ددې دښمنۍ پړه پر هغوی هم لویږي.

طاهر وویل : زه پوهیږم هغه چې پر بغداد حمله وکړه دایې ستر حماقت ؤ خو که خلیفه د خوارزم د پاچاهۍ د ماتولو په خاطر د چنگیز خان ملاتړ وکړ نو دا به نه جبرانیدونکې غلطي وي.

قاضي فخر الدین یو غمی اوچت کړ وېې ویل :زه په غمیو نه پوهیږم، خو زما باور دی چې یوازې همدغه یو غمی به په بغداد کې تا د یوې ډیرې ښې مانۍ خاوند کړي، یو ارمني سوداگر زه ډیر ښه پیژنم، راځه چې هغه ته ورشو، نور غمي پورته کړه له ځان سره یې وساته، هغه سوداگر اعتمادي سړی دی خو هغه ته دا مه وایه چې له تاسره داسې نور غمي هم شته.

د مازدیگر له لمانځه نه وروسته طاهر او قاضي فخر الدین ارمني سوداگر ته ورغلل، هغه غمی واخست له یوې شیبې لیدو وروسته یې وویل : دا غمی دې له کومه کړی دی؟ د طاهر پرځای قاضي ځواب ورکړ: دا د یوه ډیر لوی سړي سوغات دی.

سودا گر وویل : زه ښایي ددې ټوله بیه اوس درنکړای شم خو که ستاسو خوښه وي نیمایي بیه به یې اوس او نیمایي به یې سبا ته درکړم.

قاضي وویل : څومره کیږي بیه یې؟

سوداگر غمي دوه درې ځلې په غور وکوت بیایي وویل : زه ددې پنځوس زره دیناره بیه درکولای شم.

قاضي په حیراني وویل : پنځوس زره! سوداگر د هغه د حیرانۍ نه سرچپه تعبیر وکړ او غمي یې بیا وکوت ویې ویل : گوره ته زما دوست یې، تر شپیته زره پورې درکوم، له دې زیات قیمت یې په بغداد کې څوك نه درکوي.

قاضي د بغداد د مشهور یهودي زرگر نه د زیاتې بیې ورکولو ټمه هم درلوده خو ده دغه غمي داسې ځای پلورل نه غوښتل چې هلته د خلافت د دربار جاسوسان وي، ددې یوه غمي بیه یې چې واوریده پردې وپوهیده چې طاهر دده له اټکل نه څو چنده زیات شتمن دی. له یوې شیبې سوچ وروسته هغه وویل : ته یې لږ په غور وگوره ددې غمي بیه تر اویا زره دیناره باید لږ نه وي سوداگر له لږ چنو وهلو

وروسته په ٦٤ زره او پنځه سوه دیناره بیه راضي شو او پردې فیصله وشوه.

* * * * *

(۳)

د شپې مهال چې کله قاضي فخر الدین له طاهر او څو نورو دوستانو سره په ډوډۍ کښیناستل نو زید یې ونه لید، فخر الدین له خپل خادم نه د هغه په باب پوښتنه وکړه، هغه ورته وویل چې د مامونیه په چوك کې یوه لویه مناظره ده او زید د ماښام له لمانځه نه سمدستي وروسته ډوډۍ وخوړه او هلته ولاړ، د ماسختن، له لمانځه وروسته طاهر په خپله کوټه کې کیناست او د شمې رڼا ته یې کتاب لوست، څومره چې شپه تیریدله د زید په باب د هغه اندیښنه زیاتیدله. کله کله به جګ شو له دروازې نه به یې بهر ته وکتل او بیا به بیرته په کتاب لوستلو بوخت شو، د یوې شمې د خلاصیدو نه وروسته یې بل کړه او له کرسۍ نه جګ شو په بستره پریوت، څو ځلې یې په زړه کې وروګرځیدل چې د مامونیه چوك ته ورشي او زید وګوري، خو د زرګونو تنو په منځ کې به یې د زید موندل ناممکن وبلل او بیرته به له خپل تصمیم نه واوښت.

نژدې نیمه شپه چا دروازه وټکوله، بیا طاهر په بل کونج کې د قاضي غږ واورید چې یوه نوکرته یې ویل جګ شه دروازه خلاصه کړه ښایي زید راغلی وي. او خادم ځواب ورکړ چې ته یې پخپله ولې نه خلاصوې؟

یوه شیبه وروسته طاهر د دروازې خلاصول او د قاضي د خدمتګار کړس کړس خندا واوریده، هغه وویل : حمیده جګ شه! لږ د زید مخ ته وګوره! شکر باسه چې سترګې دې روغې پاتې دي، طاهر زر په لټ واوښت او مخ یې په څادر کې پټ کړ یوې سترګې ته یې یو سوری پرېښود او د دروازې لورې ته یې وکتل، زید له څانه سره په کنځلو کوټې ته ورننوت د هغه کمیس شلیدلی ؤ، ښی سترګه او باړخویې پړسیدلی وو، او له کینې سترګې نه لاندې یې د یوه مزبوط سوك ګوزار تورږ نخښه وه، زید لږ ځنډ پر خپله بستره له کیناستلو وروسته جګ شو او په دیوال راځړیدلی هنداری ته ودرید، د خپل مخ له لیدو وروسته یې وویل : آشنا! اوس دې زه هم ډیر په ګرانه پیژندلی شم، ښه د سیل دپاره تللی وې! دایي وویل او خپل پړسیدلی باړ خوږې وموښلو بیرته راغي پر بستره کیناست.

طاهر خپله خندا راقابو کړه ویې ویل : زیده راغلې؟

زید ټکان وخوړ او هغه ته یې وروکتل، او داسې ګومان یې کاوه چې تر اوسه

یی څادر پرمخ دی او دی یی نه دی لیدلی. په بیره جګ شو شمه یی مره کړه، او پر خپله بستره وغځېده ویی ویل : هو راغلم.

: هلته دی ډیر ځنډ وکړ، څه دی پکی زده کړل؟

زید په غمجنه لهجه ځواب ورکړ : کنځلی!

: ستا غږ ډیر غمجن دی خیر خو دی؟

: زید په یوه مایوسه خندا وویل : زه بلکل روغ یم.

طاهر وویل : ستا له غږ نه داسی ښکاری چی په پزه کی دی څه ستونزه ده.

زید له بستری نه جګ شو ویی ویل : له پزی نه می سترګه زیاته په تکلیف ده.

طاهر په کرس کرس وخندل.

زید له لږ سوچ وروسته وویل : پر یوه مسلمان بی سببه لاس پورته کول خو ګناه ده که نه!

طاهر ځواب ورکړ : په هر سړی بی سببه لاس اوچتول ګناه ده.

خو که څوك بی سببه په غاړه کی درولوېږی نو بیا؟

: نو بیا به دسترګی په بدل کی سترګه او د غاښ په بدل کی د غاښ په قانون عمل کیږی، خو بخښنه او عفوه ډیره غوره ده،

ما زیاته حوصله وکړه، خو پر پزه چی انسان ګوزار وخوری بیایی په طبیعت کی آرامی نه پاتی کیږی، ما هغه ته نور سوکونه ورویخښل خو د پزی او سترګی په اړه می بی پروایی ونکړای شوه ما ټول عمر غشی ویشتل او توره وهل زده کړی وو، خو دلته چی راغلم پوه شوم چی په بغداد کی د اوسیدو لپاره سوك وهل او غیږی نیول زده کول هم ضروری دی.

طاهر وویل : داسی ښکاری چی تا د مناظری په وروستی لویه کی بشپړه برخه واخستله او راغلی!

: ماته معلومه نه وه چی ددی پای به دغسی وی، خو باور وکړه د لاس اچولو په وخت زه له ګنی ګونی نه بلکل ګوښه او لری ولاړ وم، که څه هم زما د هغه چاغ او غوښن او د بد غږ خاوند پرځای خواخوږی له هغه نری او ډنګر ملا سره وه، بیا هم د فساد پروخت زه لری او ځانګړی ودریدم. خو کله چی دوه د لویو لویو ږیرو خاوندانو یو د بل ږیری نیولی وی او کنځلی یی یو بل ته کولی ماته را نژدی شول زما صبر ونه شو د دواړو منځ ته ورغلم، په ډیر زحمت می دواړه یو له بل نه بیل

کړل، خو دوی بیا هم همغسی یو بل ته کنځلی کولی ما د دواړو د پخلا کولو هڅه وکړه، په دی کی دری نور زلمیان راغلل او هغوی له دی دوو بوډاگانو نه پریوه ورکیوتل، زما په منځګړیتوب خو هغه وتښتید او په نهر کی یی ځان واچاوه، خو هغه دری زلمیان پرما راوګرځیدل، ما ورته چیغی کړی چی زه یو مساپر یم، خو چا زما خبره وانه وریده او ما داسی احساس کړه چی بی دریغه ووهل شوم. هغه بل بوډا چی دده په گومان ما د هغه رقیب ته د تیښتی موکه برابره کړه زما گریوان وشلاوه، ماتر څو پر سترگه اوپزه گوزار نه ؤ خوړلی پر دوی می وار نه کاوه، بیا زما څوسوکونه تش ولاړل، بیا هم زما په څپیړه یو تن په ځمکه کښیناست، بل می په سوك وواهه ولویده، دریم چی زما سوکونه خطرناك وگڼل راسره غیږ په غیږ شو، هغه زه دری ځلی په ځمکه وویشتم، څلورم ځل دواړو یو بل تیل وهل د خوړ غاړی ته راغلو، هغه زما، خوړ ته دغورځولو په هڅو کی پخپله هم راسره ولید له نیکه مرغه اوبه لږی وی که نه زه به پکی ډوب شوی وم، په خوړکی می هغه دوه دری سوکه وواهه او بالاخره یی ماته ومنله، اوس دی خدای وکړی چی زما سوکونه دده پر پزه او سترگه لگیدلی وی.

: طاهره ! زما په گومان دلته لامبو زده کول هم ضروری دی، ایا ستا لامبو زده ده؟

طاهر ځواب ورکړ : ډیره لږ، خو زما ارداه ده چی زه هر سهار په سیند کی ولامبم، د یوه سپاهی لپاره ضروری ده چی ښه لامبوزن وی.

: زه به یی هم زده کړم.

: له لږ چوپتیا وروسته زید وویل : طاهره! ته خوبه له مانه خفه نه یی!

: پر څه خبره؟

: زه له پوښتنی پرته مناظری ته تللی وم.

: که دا تجربه درته گټوره شی نو زما د خفگان سبب نشته.

: گټوره ! ... ... زه وعده کوم چی بیا به په ټول عمر کی د مناظری لپاره ولاړ نه شم، خو له تانه یوه پوښتنه کوم.

: څه پوښتنه؟

: هغه دا چی تن ددی مناظری څلویښتمه شپه وه، څلویښت ورځی هری ډلی د مخالف لوری د دلایلو په ردولو او د خبرو په کمزوری کولو کی خپل زور وازمویه، خو بیا یی هم یو بل قانع نکرای شو ددی سبب څه دی؟

طاهر ځواب ورکړ : داسی خلك به زر کاله هم يو بل قانع نکړای شی.
: مګر ولی؟

طاهر ځواب ورکړ : ددی لپاره چی دوی يو د بل د پوهولو او يو د بل د خبری اوريدو له نيکو هيلو سره نه ځی، د دوی هدف د خپلی وينا او ژبی د زور ښودل دی.

د اسلام هغه امامان چی د دوی په نامه دغه جګړی کيږی هغوی يو پر بل داسی د کفر فتوی ګانی نه ورکولی، د هغوی هدف دا و چی په اسلام کی د اجتهاد دروازی خلاصی کړی او د هر وخت او ځای لپاره يی د ژوندی غورځنګ په بڼه جوړ کړی، او دغه خلك د هغوی نومونه اخلی خو په اسلام کی د نفاق او تيت پرك کيدو زړی شيندی.

: نو د دوی چاره څه وړ کيدای شی؟

: د دوی علاج او چاره دا ده چی د امن خوښوونکو خلکو لپاره دکړو وړو عملی ډګر پيدا شی که زموږ په مخکی د څه کولو ميدان ؤ نو دغه علما چی اوس د ګډوډی او اختلاف پارولو په هڅو کی دی، بيا به د مسلمانانو د ليکو د سنبالولو او ځواکمن کولو په لاړو کی ستومانه وی، تاريخ ګواه دی چی کله د فتحو په شوق مسلمانان له کورونو وتلی دی نو دوی د اعتقاداتو په باب هيڅکله اختلاف نه دی کړی، پر کفر د اسلام د بری هيلی تل دوی سره يو او متحد ساتلی دی. يوه زمانه داسی وه چی د مسلمانانو پوځ په يوه وخت کی په سند، اندلس او ترکستان کی جنګيده، خو موږ نه دی اوريدلی چی هغو مسلمانانو به کله مناظری ته اړتيا احساس کړی وی، او نن چی موږ د اسلامی نړۍ پر افق د توپانونو علامی وينو زموږ علماؤ له شاو خوانه سترګی پټی کړی دی او په خپل کور کی يی درزونه اچولی، د کوم اولس چی توره په تيکی ننوزی نو قلم يی هم کړه لاره غوره کوی.

زيد ورېل : په بازار کی توده آوازه وه چی د اروپا نصرانی پاچا پر مصر د يوی کلکی حملی تياری کوی، او امکان لری چنګيز خان هم پر خوارزم يرغل راوړی. که خليفه د هغوی پرخلاف د جهاد اعلان وکړ نو زه به تر ټولو ړومبی هغو دوو علماؤ ته ورشم ورته وبه وايم چی زه دادی کفن اغوندم او د جګړی ډګر ته ځم، تاسو چی په مامونيه چوك کی له اسلام سره کومه مينه او خلوص ښکارولو راځی اوس يی يوه ورځ د جګړی په ډګر هم وښيی، تاسی هم له ماسره د يوی زغری

وعده کړی وه.
: زما خپله وعده په یاد ده، خو تا د زغری لهاغوستلو نه کرکه کوله.
: هغه مهال می بدن خوږیده، تن ما د زغرور پوځ څو تنه ولیدل نوی زغره پر سړی ډیره ښه ښکاری.
: زه به سبا ته نوی زغره درکړم.
: خول هم!
: خول به هم درکړم.
: ته به لامبو هم ماته را زده کوی؟
: هغه به هم دروښیم،
: زید لږ څند وروسته بیا وویل : طاهره! ماتاته یوه خبره ونه کړه.
: کومه خبره ؟ طاهر په اړخ واوښت ویی ویل.
: کله چی زه له خوړنه راووتم په لاره کی می هغه بوډا چی زما گریوان یی شلولی ؤ ولید، ما بی له دی چی سوچ وکړم پر مخ پر څپړ وواهه.
: ډیر بد دی کړی دی، که دی کله ولید بخښنه تری وغواړه.
: د بخښنی د منونکو نه خو دی هم نه دی، خو زه پری پښیمانه یم.
: ښه ده اوس ویده شه.

* * * * *

(٤)

دری میاشتی وروسته طاهر د بغداد د امیرانو په منځ کی د ښه شهرت او عزت خاوند شوی ؤ، ددجلی د سیند په غاړه یی یوه ښکلی مانی اخستی وه، له زید پرته یی څلور نور خدمتگاران او دری خدمتگاری درلودی، په طبیله کی یی د وزلوبی او نیزه وهلو لپاره اسونه وو، کله چی د قاضی فخر الدین له میلمستون نه خپلی مانۍته ولاړ تر تولو ړومبی یی د علماؤ پام ور واړاوه، په لومړی ورځ ده ته یو پر بل پسی د علماو پنځه ډلی ورغلی او د هری ډلی د علماو دا هیله وه چی دوی په ډله کی ورشامل شی، طاهر ټولو ته همدغه یو ځواب ورکړ چی: که تاسو ما اسلام ته وربولی نو زه داډ درکوم چی مسلمان یم، او اسلام په سهی معنی پیژنم، زما په مخکی هغه مسألی مه بیانوی چی له تیرو پنځو پیړیو راسی تاسو پری پوه نشوی، حُینی علماو غوښتل دی بحث ته ورکښیکاږی، خو د طاهر څو خبرو دوی پر دی هاوری کړل چی له دی ځوان سره یوازی سره او سپین نه بلکی د

علم خزانه هم شته.

له دی وروسته ورو ورو د علماؤ پام ور واوښت، په اس ځغلولو کی کمال هم د یوه عرب ځوان میراث گڼل کیږی، په مدینه کی احمد بن حسن د طاهر د روزنی او پوځی پالنی لپاره غوره استادان گومارلی وو، ځکه خو په ۱٦ کلنی کی د مدینی ټولو ځوانانو په نیزه وهلو او توره چلولو کی د ده پر کمال اعتراف کاوه، خو چی کله طاهر بغداد ته راغی نو ورته معلومه شوه چی دلته وزلوبی ته زیات ارځښت ورکول کیږی.

د شاهی مانۍ په مخه کی یو لوی میدان ؤ، چی پوځی رسم گذشت، د اسونو ځغلول، نیزه بازی او وزلوبه به پکی ترسره کیده، ددغه میدان یوه لوری ته د صدر اعظم او دولت د نورو لویو لویو امیرانو محلونه کتار وو، د ښار مخور او امیران به د لویو امیرانو په دی مانیو کی په برنډوکی ناست وو او د «پولو» او اس ځغلولو لویو ننداری به یی کولی، ښځو ته به په لوړو پوړونو کی ترکړکیو لاندی ځانگړی ځایونه جوړ شوی وو.

په دی ډگر د لوبو انتظام د یوه ځانگړی سړی ذمه واری وه، طاهر له دي سړی سره تر پیژندلو وړاندی له دغو لوبو سره د بلدیدو هڅه ضروری وبلله، د وزلوبی لپاره په ښار کی څو نور میدانونه هم وو، طاهر په یوه کی د دی لوبی زده کول پیل کړل او په څو اونیو کی په ښار کی ددی لوبی د مینه والو په منځ کی د یوه داسی ځوان آوازه شوه چی پلار یی په میرانه کی له صلاح الدین ایوبی رح نه توره په بخشش کی اخستی وه، د اولس غړ د امیرانو غوږونو ته ورسید، امیرانو لوی وزیر خبر کړ، او لوی وزیر کوتوال راوغوښت تری ویی پوښتل : موږ تر اوسه له دی ځوان سره ولی نه پیژنو؟

تر دی چی یو سهار طاهر په سیند کی لامبو وهله زید په منډه ورغی او په خنده ورته ودرید چیغی یی کری : په بیره راووزه د ښار کوتوال درسره لیدل غواړی!

طاهر راووت جامی یی واغوستی ویی پوښتل : ستا یقین دی چی هغه کوتوال دی؟

: هغه پخپله ویل چی کوتوال یم، له هغه سره شپږ تنه وسله وال سپاهیان دی، هغه ما په میلمستون کی کبینولی او راغلی یم، خدای دی وکری چی هغه په نیک نیت راغلی وی، طاهر وویل : د چا په نیت بیځایه شک کول ښه نه دی.

*****

(٥)

کله چی کورته ستون شو طاهر ته معلومه شوه چی کوتوال د لوی وزیر د ملاقات د بلنی احوال راوړی دی.

طاهر ورته وویل : زه به اوس چمتو شم او ځو به، بیا بلی کوټی ته ننوت، لږ ځنډ وروسته یی یوه ګران بیه چپنه اغوستی وه او له کوتوال سره ملګری شو.

د بغداد له صدر اعظم افتخار الدین سره د طاهر لومړنی لیدل ډیر لنډ وو، افتخار الدین له هغه نه څو پوښتنی وکړی چی: ته بغداد ته کله راغلی یی، د څه لپاره او له کومه ځایه راغلی یی؟

طاهر د هغه د پوښتنو په ځواب کی وویل : زماد راتلو څو ورځی دپاسه دری میاشتی کیږی، له مدینی نه راغلی یم او د اسلام د خدمت په خاطر راغلی یم.

لوي وزیر په بی پروایی وویل : د ډیر نیك هدف لپاره راغلی یی، خو دغه هدف ته د عباسی خلافت په خدمت کی ترلاسه کول غواړی که د کوم پټ تبولګی د غړی په توګه؟! ما اوریدلی دی چی د سلطان صلاح الدین ایوبی رح د توری په سبب خلك ستا ډیر درناوی کوی.

: دا د هغه غازی میره د توری درناوی کیدای شی، زه تر اوسه ځان د څه درناوی وړ نه بولم، پاتی شوه د عباسی دولت د خدمت خبره نو عرض کوم چی که زما په زړه کی دا جذبه نه وای نو خپل راتلونکی به می پر بغداد نه تاړه، زه د عباسی دولت سهی خدمت د اسلام خدمت ګنم.

: له سهی خدمت نه ستا مطلب څه دی؟

طاهر ناځاپه احساس کړه چی له دی نړی لیدونکی او تجربه کار سړی سره باید په خبرو کی زیات پام وکړی، له لږ سوچ وروسته یی ځواب ورکړ : د بهرنیو ګواښونو له احساس سره د بغداد دفاعی ځواك مزبوتول د عباسی دولت سهی خدمت ګنم.

افتخار الدین وویل : آیا ستا په نظر د محمد خوارزم شاه له بیرته ستنیدو سره بهرنی ګواښونه لری شوی نه دی؟

: خو د چنګیز خان خطر ورځ په ورځ زیاتیږی.

افتخار الدین په داډ منه لهجه ځواب ورکړ : زموږ لپاره نه بلکی خوارزم ته.

: آیا تاسو به د مغلو توپان ته خوارزم پوازی پریږدی؟

: دا په حالاتو پوری اړه لری، تر اوسه پوری خوارزم شاه له موږ نه بخښنه نه

ده غوښتی، نه یی مرسته غوښتی ده او نه زموږ پر دی باور دی چی چنگیز خان به د خپلو سوداگرو د بدل لپاره پر خوارزم حمله وکړی، ځکه هغه سوداگر هم زیاتره د بخارا مسلمانان وو.

: مگر ما اوریدلی دی چی د عباسی دولت له خوارزم سره بیرته اړیکی عادی شوی او د هغوی سفیر هم دلته را رسیدلی دی؟

افتخار الدین زر تری وپوښتل : تا د خوارزم له سفیر سره لیدلی دی؟

طاهر یو ځل بیا احساس کړه چی له تدبیر نه یی کار نه دی اخستی ځواب یی ورکړ : نه، زما له هغه سره څه کار دی؟

افتخار الدین وویل : ستا د شتمنی چی ما کوم داستانونه اوریدلی دی، که هغه سهی وی نو ته باید په بغداد کی ډیر پام وکړی، زموږ حکومت د کرنلاری په اړه له بهر نه هری مشوری ته د شك په نظر گوری او امیر زاده گان په دی اړه غیر مسوولانه گام اوچتوی.

طاهر ځواب ورکړ : تاسو داډه اوسی له ما سره چی څه دی هغه به د عباسی حکومت په خدمت کی لگوم، که اجازه وی زه یو سوغات ستا په حضور کی وړاندی کوم.

افتخار الدین په بیړه وپوښتل : د صلاح الدین ایوبی توره؟

: نه : توره ښایی ستا په وسله تون کی یو اضافی شی وی.

طاهر وویل او بیا یی له جیبه د طلا یو دبلی راوویست سریی بیرته کړ او لوی وزیر ته یی ورکړ.

افتخار الدین له دبلی نه یو ځلیدونکی غمی راوویست په ځیر ځیر یی ورته وکتل ویی ویل : ماته د سوغاتونو د ترلاسه کولو په هوس دلته نه یی راغوښتی، دادی له ځان سره وساته.

. طاهر وویل : که تا سو زه د لیدو لپاره نه وای راغوښتی هم دا غمی ما ستاسو لپاره ساتلی ؤ او یوه ورځ به می درته وړاندی کاوه، تاسو دغه وړوکی سوغات ومنی، لوی وزیر د غمی دبلی پر میز کیښیښود او لاسونه یی وپړکول یو څوك کوټی ته ورننوت، څو گامه وړاندی راغی په ملا خم شو او بیا د حکم په انتظار شو.

صدر اعظم ورته وویل : دی زموږ طبیبلی ته درسره بوزه او چی کوم اس یی خوښ شو هغه ورته زین کړه او ورته ویی سپاره، بیا یی طاهر ته لاس ورکړ ورته

وېی ویل :سبا ماښام ته زما میلمه یې، او زه به پرېکړه کوم چې عباسي دولت له تانه کوم خدمت واخلي؟

طاهر له لوی وزیر سره خدای پاماني وکړه تری روانیده چې یو زلمي ورننوت، لوی وزیر وویل : طاهره! دا زما زوی قاسم دی.

طاهر له هغه سره تاوده ستړي مشي وکړل، قاسم د شل دوه ویشت کلونو ښه تازه زلمي ؤ، د هغه په ځیره کې د نورو امیرانو د زامنو په څیر د آرامۍ، تنبلي او بې حسي علامې وې، له سترګونه یې دا احساسیدله چې په خپل لوړ نسب د حماقت ترحده پورې ویاړي، په شونډو یې موسکا وه، خوله دغه موسکا نه د نرمۍ او سادګۍ پرځای وحشت او چالاکي اوریده، د قاسم په لاس کې یوه نرۍ توره وه چې د توری وهلو په زده کړه کې کارول کیږي، هغه خول پر سر کړی او زغره یې اغوستې وه.

قاسم وویل : زه د توری وهلو زده کړې ته روان وم چې دلته ستا له راتګه خبر شوم، زه ستا تر لیدو د سلطان صلاح الدین ایوبي د توری لیدو زیات لیوال وم.
صدر اعظم زر تر زره د موضوع د بدلولو اړتیا احساس کړه وېی ویل : قاسمه ! دی به زموږ له طبیلې نه یو اس غوره کوي، دا مشهوره ده چې یو عرب د اس په پېژندلو کې اشتباه نه کوي ته ورسره ولاړ شه وګوره دی کوم اس خوښوي.

خو قاسم د اس د غوره کولو مسئله مهمه ونه بلله بیایی طاهر ته وکتل وېی ویل : که یې ته پلوری زه د صلاح الدین ایوبي رح توره پیرم! پلار جان به ددی توری دروند قیمت ورکړي، ته له جامونه یو عالم ښکاریږې ته به یې څه کړې؟

صدر اعظم خجالت شو او طاهر په خپلو پریشانیو د قابو کیدو هڅه وکړه وېی ویل : د داسې شي خرڅول ددې توهین او سپکاوی دی زه به یې له څه بیې او قیمت پرته در وبخښم، خو په یوه شرط.

: په کوم شرط؟

: هغه دا چې ته ځان تر ما ددی امانت ښه حقدار ثابت کړې، قاسم هیله من شو وېی ویل که ته یو عالم یې او زه یو سپاهي په توره تر تاز زما حق زیات دی. که نه نو راځه وېی ازمویه!

: دیر ښه که تا په توره وهلو کې زه مات کړم نو دا توره ستا شوه.

په توره وهلو «شمشیربازي» کې قاسم د حماقت تر حده پر ځان ډاډه ؤ، د هغه دا غرور بې ځایه نه ؤ، هغه د لرې لرې استاذانو نه دغه فن زده کړی ؤ، دده ژوند

تر اوسه دوه شیان وو، «پولو، او «توره وهل».
په پولو کی څو نور ځوانان هم دده سیالان وو، خو په توره وهلو کی تول دده پر کمال قانع وو، ځکه خو چی کله طاهر ده ته د سیالی بلنه ورکړه نو قاسم په کړس کړس وخندل او صدر اعظم طاهر ته په حیرانی وکتل ویی ویل : دا لوبه به ډیره په زړه پوری وی، خو زه غواړم چی نور خلك هم له دی ننداری نه خوند واخلی، ښایی د مسلمانانو خلیفه ته هم دغه مقابله په زړه پوری وی، مگر نن نه سبا ته به غوره وی، تاسو سبا سهار ته راشی، د غرمی او ماښام دواړو وختونو ډوډی به له موږسره وی، قاسمه! ته اوس ده ته اسونه وروښیه.

*****

(٦)

له لوی وزیر سره د دوهم ځلی خدای پامانی نه وروسته طاهر له قاسم سره له محل نه راووت، په پراخ انگړ کی د مرمر ډبرو سرك دواړو خواوو ته درنهو اوبو ډنډونه او شرشری وی، د ډنډونو یوی او بلی خواته شنه چمنونه وو، څو گزه وړاندی ددغه چمن او ډنډونو نه اخوا یو ښکلی بڼ ؤ او د ډنډونو اوبه په دوو ویالو کی بهیدلی، له دی ویالونه هر لوری ته په بڼ کی لښتی غځیدلی وو او باغ پری اوبیده.
هغه میدان چی د پولو او آس ځغلولو لوبه پکی ترسره کیده د محل د همدی برخی نه لاندی ؤ چی طاهر ورننوتلی ؤ.
په دوهمه دروازه بڼ پای ته رسیده او له هغه نه وړاندی د لوی وزیر د خدمتگارانو کورونه په یوه لویه ځلور دیوالی کی جوړ شوی وو د همدغو کورونو سره یوه لویه طبیله هم وه چی دوه نیم سوه اسونه پکی وو، او دا ټول د لوی وزیر وو، طاهر په طبیله کی دری ځله چکر وواهه، ځنی اصونه یی سرسری او ځنی یی په ځیر ځیر وکتل، بالاخره یی د یوه آس شا وټپوله ویی ویل : زما دا خوښ دی.
قاسم وویل : ډیر ښه، زه ستا ذوق ستایم، خو دا کله کله په دوو پښنو دریږی ددی دوه میاشتی کیږی چی طبیلی ته راغلی دی، دومره یاغی دی چی زه هم ونه توانیدم چی ویی روزم.
یوه حبشی خدمتگار پر اس زین کیښود او له طبیلی نه یی انگړ ته راویوست، قاسم د اس جلب ونیو او طاهر ته یی ورکړ ورته ویی ویل : سبانی وعده دی هیره نه شی! طاهر د خدای پامانی لپاره لاس ور اوږد کړ ویی ویل : ته داده اوسه زه به

توره له ځانه سره راوړم.

قاسم یو خادم ته اشاره وکړه راویې غوښت ورته ویې ویل : دا آس دده کره بوزه.

خادم د اس د جلب نیولو لپاره راوړاندی شو خو د طبیلی د دروازی نه بهر یې د اسونو د پښو غږ واورید او د سترګو په رپ کی دوه اسونه راننوتل، طاهر د اسونو سپروته وکتل، هك پك پاتی شو.

دا دواړه ځوانی نجونی وی، دواړو د سپینو وریښمو تنګی جامی او پر غمیو انځوری شوی سپینی خولی پر سر کړی وی، د سترګو او تندی نه پرته یې نور مخ په تور نری نقاب کی پټ ؤ، اسونه ډیر بدسیلیدل، دوی له اسونو پلی شوی، خادم د طاهر د اس جلب پریښود د هغوی اسونه یی ونیول د سترګو په رپ کی بل خدمتګار راغی او د طاهر د اس جلب یې واخست، نجونو طاهر ته په سوالیه نظر وکتل او وړاندی تیری شوی او قاسم هم له طاهر سره خدای پامانی وکړه او په هغوی پسی ورغی.

کله چی طاهر له خادم سره د طبیلی له انګړ نه راووت د محل د برندی له مخی سره تیریده دواړه نجونی په زینه کی ولاړی وی او طاهر ته یی کتل او قاسم طاهر ته اشاره کوله او څه یی هغوی ته ویل.

د وروستی دروازی نه له راوتلو وروسته د طاهر په مخکی یو پراخ سرك ؤ، د هغه یو لاس ته دجلی سیند او بل ته د بغداد د امیرانو د کوروتو کتار ؤ، نژدی پنځه سوه ګامه وړاندی پر سیند پل ښکاریده.

د هغو نجونو نومونه سکینه او صفیه ؤ، سکینه د قاسم خور وه، او صفیه د هغه د مرحوم تره لور.

له طبیلی نه دوتلو نه وروسته سکینی صفیی ته وویل : صفیی! تا خو دا ځوان ولید پر ځیره یی څومره سادګی وه، ته یی چی ولیدی وارخطا غوندی شو.

: ما خو هغه ته ورونه کتل، ستا په لیدو به وارخطا شوی وی.

: صفیی ! هغه د بغداد امیرانو سره ډیر توپیر درلود، موږ یی چی ولیدو زر یی سترګی ښکته کړی.

صفیی ځواب ورکړ : زه د قاسم د ټولو دوستانو په باب یو دول نظر لرم.

: مګر ما هغه د قاسم سره کله نه دی لیدلی.

صفیی وویل : هو هغه له ځیری نه د علم خاوند ښکاریده.

قاسم له داسی خلکو سره ناسته ولاړه نه لری.
کله چی دوی پر زینو ختلی قاسم پری غږ کړ او دواړه یی ودرولی، هغه چی ورنژدی شو ویی ویل : صفیی! یو ځناور گوری!
صفیی ځواب ورکړ : تا چی د ورځی یو ځل وینم نو د کوم ځناور د لیدو هیله به می په زړه کی کله پیدا شی؟
قاسم په موسکا کی د خپلی غوسی د پټولو هڅه وکړه ویی ویل : زه یوازی ستا تر نظره ځناوریم، خو زه اوس څوك دربښیم چی تر سبا پوری یی د بغداد ټول خلك ځناور وبولی.
سکینی تا هم ولید ! هغه ځوان چی په طبیله کی زما ترخنگ ولاړ ؤ، د هغه پلار د میړانی په انعام کی د سلطان صلاح الدین ایوبی توره ترلاسه کړی وه، نن هغه ماته بلنه راکړه چی که می په توره وهلو کی تری لوبه وگټله هغه توره به زما وی.
په دی مهال طاهر د برنډی له مخی سره تیریده، قاسم هغه ته په لاس اشاره وکړه ویی ویل : ددی سارایانو خوی هم ډیر عجیب دی، که یی په ژوند کی توره په لاس کی نه وی اړولی هم ځان به د توری وهلو د فن استاذ بولی، سبا ته به ډیره عجیبه ننداره وی، د پلار جان هیله ده چی دغه ننداره باید د مسلمانانو د خلیفه په مخکی وی.
صفیی وویل : که له هغه سره د سلطان صلاح الدین ایوبی توره وی او دی رښتیا هم سارایی وی نو زه ویرېږم چی دده پر ځای ته د خلکو د خندانه شی، راځه سکینی! سبا ته به دالوبه هم وگورو! زما ویره ده چی دی د صلاح الدین ایوبی توره ترلاسه کړی پښه به یی په ځمکه نه لگیږی.

# د طاهر نوی دوستان او دښمنان

په همدی شپه له لمانځه نه لږ وروسته طاهر په خپله د مجلس کوټه کی ناست ؤ یو کتاب یی لوست چی د کور په مخکی یی د څلورو اسونو یوه ګاډی ودریده، وروسته یی یوه خدمتګار خبر راوړ چی یوه پوځی منصبدار د لښکر د مشر پیغام راوړی دی، طاهر کتاب وتاړه ویی ویل هغه دننه راوله.

خادم ووت او لږ ځنډ وروسته یو د لوړ قد مزبوتو متو خاوند چی له رعبه ډکه څیره یی وه راغی، د هغه عمر د دیرشو کلونو په شاوخوا کی ښکاریده، له څیری نه یی خلوص، ذهانت او زړورتیا له لری ښکاریده، طاهر ورجګ شو لاس یی ورکړ ستړی مشی یی ورته وویل او بیا یی هغه له ځان سره نږدی پر کرسی کښیناوه.

نوی راغلی ځوان وویل : زما نوم عبدالعزیز دی، زه دی په غیاب کی پیژنم، اوس می د لښکر د مشر پیغام راوړی دی، هغه غواړی له تا سره ووینی خو ما غوښتل شخصاً هم له تا سره ووینم، ددی لپاره فرصت ته ضرورت دی، سمدستی زه په همدی کفایت کوم چی درته ووایم ته ما خپل دوست وبوله، او زه تاته د دوستی لپاره لاس په دی خاطر نه در اوږدوم چی ته ډیر شتمن یی، او یا له تاسره هغه توره ده چی پلار ته دی صلاح الدین ایوبی «رح» وربخښلی ده، بلکی ددی په خاطر چی ستا په زړه کی د خپل زړور پلار د نسبی د حقدار ثابتولو جذبه او هیله ده، تا قاسم ته د مقابلی بلنه ورکړی ده.

طاهر ځواب ورکړ : هوکی! ماته معلومه نه وه چی په بغداد کی به دغه توره دومره ارځښت پیدا کړی، زما په خیال ددی سهی حق دا نه دی چی د یوه امیر د زوی د وسله تون ګاڼه شی، ځکه ما هغه ته د مقابلی بلنه ورکړه.

عبدالعزیز وویل : تر کومه چی د توری چلولو خبره ده تا قاسم د یوه امیر زوی ګڼلی نو دا دی اشتباه کړی ده، زه پخپله تر اوسه د هغه په استعداد اعتراف ته

اړنه یم، خو د خلد د ماڼۍ په شاوخوا کې د امیرانو زامن د هغه په کمال اعتراف کوي، ځکه خو ته لږ پام کوه دا به درته غوره وي، که ته لویه بایلې بنایي تا ته د توري بایلل دومره مهم نه وي، خو د بغداد په پوځ کې به یو ډیر غلط منصب زیات شي، ځو ورځې وړاندې چې کله د علاوالدین خوارزم شاه پوځونه بغداد لوري ته راننوتي کیدل زموږ پوځونه یې د مخې تیولو لپاره وړاندې ورغلل، د صدر اعظم په هځه یې د هغه زوی د شلو زرلګیو د بنې لاس پوځ قوماندان وټاکه، خو په توله لاره دا حالت ؤ چې که به د هغه په خیمه د شپې لخوا شل تنو پهره کوله د ورځې به ده ځلوېښت تنه پهره دار غوښتل.

د هر سالار سره به یې ګستاخي کوله ویل به یې چې زه د عباسي دولت د صدر اعظم زوی یم، موږ ټولو احساس کړه چې په بغداد کې دغه زلمی په پخو تورو ځومره د لوبې شوق پوره کاوه هومره د جګړې په میدان کې د اصلي تورو له مقابلې نه ویرېږي.

ځکه یې په ځلورم منزل پرسر درد راغی، او په پنځم پړاو یې رخصت واخست او کور ته راستون شو، دده نیکمرغي وه چې د خوارزم پوځونه له نیمې لارې بیرته وګرځیدل او ده د خلیفه په وړاندې د غلز موکه وموندله، اوس د پوځ د مشر سره دا اندیښنه ده چې د سلطان صلاح الدین ایوبي توره دې د خلیفه په نظر د کوم مهم منصب حقدار او ور ثابت نه کړي، زه هم دا اندیښنه لرم، خو د لښکر د مشر په ځیر پریشانه نه یم، زه پوهیږم چې د بغداد د پرمختګ ورځ ګرځیدلې ده، او د لسګونو نا اهله مهمو منصبدرانو په منځ کې د یو نیم بل زیاتیدل دومره مهم نه دی، زه بغداد ته له ډیرو هیلو او امیدونو سره راغلی وم خو ...!

تر دې ځایه یې وویل او بیا عبدالعزیز چوپ شو او په ځیره یې مایوسي خپره شوه.

: خو څه ... ؟ طاهر وپوښتل.

عبدالعزیز وویل : زه نا امیده شوی یم، ما نور دلته اوسیدل نه غوښتل ، او که ته هم د اسلام د خدمت په هیله دلته راغلی وی نو ته به هم ډیر پاتې نه شي.

اوس مهال په مصر کې د هلال او صلیب جګړه بیا توده شوې ده، زه غواړم هلته ولاړ شم، هلته ماته اړتیا ده، هلته د اسلام هر مجاهد ته اړتیا ده، زما ځو تنه نور دوستان هم مصر ته تلو ته چمتو دي، زه تاته هم بلنه درکوم، او که ته هلته نه ځې نو لږ تر لږه موږ ته یو پیژند لیك راکړه، په مصر کې به خلك پیژني؟

زه پیژند لیك ددی لپاره نه غوارم چی خلك ارخُبنت راکړی بلکی ددی لپاره یی غوارم چی د بغداد هر سړی ته هلته د شك په سترګه ګوری، تردی چی که زه د لښکر د مشر لیك یوسم هم پر موږ به اعتماد ونه کړی او جاسوس به مو ګنی.

طاهر وویل : پر نصرانیانو د ملك عادل د پرله پسی بریو خبر به دی اوریدلی وی، زما په ګومان د مغلو فتنه د اسلام لپاره تر هغو څو چنده زیاته او خطرناکه ده.

عبدالعزیز مایوسه شو ویی ویل : ما هم دا لړ خطرناکه نه بلله، خو افسوس! په خوارزم کی چی کوم سړی زموږ له وروستی مورچل نه دفاع کوی هغه کاشکی دومره احمق نه وای، هغه یوازی پر خپل ځواك د غلط اټکل له لامله له ټولی نړۍ سره مقابلی ته چمتو دی، هغه یوازی د بغداد خلك نه بلکی ټول بهرنی د خلیفه جاسوسان بولی، د چنګیز خان ځواك ته یی د زور ازمویلو بلنه ورکړی، خو د داسی ویروونکی توپان سره یی د مقابلی په خاطر د اسلامی نړۍ د مرستی اړتیا احساس نه کړه، د خلیفه ناصر هم دا باور دی چی د چنګیز خان څخه د ژغورنی نه وروسته به هغه بیا پر بغداد حمله کوی، ځکه خو ... خو اوس ددی خبرو وخت لا نه دی راغلی، بیا به ګورو، اوس راځه، د لښکرو سالار به دی انتظار کوی.

طاهر وویل : ته ولی چوپ شوی پر ما اعتبار وکړه.

عبدالعزیز په ځیر ځیر طاهر ته وکتل ویی ویل : زه یوازی یو سپاهی یم او سپاهی په سیاسی معاملو کی د مداخلی حق نه لری.

: ودریږه! طاهر دا وویل او زر جګ شو له بغلی کوټی نه یی د صلاح الدین ایوبی توره راوړه او د عبدالعزیز په مخکی یی په موټی بنی لاس کیښود ویی ویل : زما پلار د وینی وروستی څاڅکی تویی کړل او دغه توره یی په انعام کی وګټله زه پر دی لاس ږدم او په هر نیك هدف کی له تاسره د وفاداری وعده کوم، ددی په بدل کی زه له تانه کومه وعده نه اخلم، ستا پر ځیره چی زما لومړی ځل سترګی ولګیدی وپوهیدم چی په بغداد کی ته خدای «ج» ماته د ملګرتیا لپاره را استولی یی.

عبدالعزیز د هغه په لاس لاس ورکیښود او د طاهر په ځیره یی سترګی وګنډلی ویی ویل : ښایی زه هم د چا په لټه کی وم، په بغداد کی ډیر خلك د چا په لټه کی دی، آیا تقدیر د بغداد په آرام ژوند کی د څپو او غورځنګونو پیدا کولو لپاره ته غوره کړی یی؟

ددی دنهولاړی اوبه د هوا توندی څپی ته انتظار کوی، دی ویده مجلس ته د اسرافیل شپیلی پوکلو اړتیا ده، که هغه ته وی نو زه له تاسره د ژوند تر وروستی سلګی د وفا وعده کوم، ما تیره شپه یو خوب ولید او اوس یی لکه چی تعبیر وینم، زه له ډیرو خلکو سره په یوه کښتی کی سپور وم، په کښتی کی یو سوری ؤ چی ورو ورو اوبه تری ننوتلی او موږ پری باوری وو چی دوبیږی به، موږ له ژوند څخه مایوس شوی وو، ناڅاپه له اوبو نه یو کمر راښکاره شو، کمر جګ شو او لوی شو یاغی څپی به ورسره جنګیدلی او بیرته به ماتی شوی کله کله به یی د لړ شیبی لپاره کمر په غیږ کی پټ کړ، په موږ کی یوه ځوان د کښتی جلب ونیو ویی ویل : دا کمر زموږ وروستی تکیه ده، خو موږ داسی احساسوله چی دغه کمر تر ډیره ددی څپو تاب نشی راوړای، ځینو مانوګانو دده مخالفت وکړ او د هغه نه یی د بیړی جلب واخست، هغه مایوسه شو په اوبو کی یی ورټوپ کړل، او په لامبو کمره ته ورغی وروخوت، ما او څو ملګرو می هم هغسی وکړل، خو نور مسافر په کښتی نښتی وو، موږ په کمره پاتی شوو او کښتی د اوبو څپو د یوه خس په څیر په ډیکو ډیکو لری یووړه، عجیبه دا وه چی ځینی خلك له دی کمره نه ښکته شول او کښتی ته ورغلل، زما سترګی وغړیدلی او د کښتی پای می ونه لید چی څه شوه؟

طاهر له لږ سوچ وروسته وویل : ایا ته د خوارزم هیواد د مغلو د سیلاب په مخکی وروستی کمر نه ګنی؟

عبدالعزیز ځواب ورکړ : هغه زموږ د دفاع وروستی مورچل کیدای شوای خو په اوسنیو حالاتو کی دا نشم ویلای چی د علاوالدین محمد شاه په مشری به د خوارزم پوځونه د مغلو، د سیلاب په وړاندی وروستی کمر ثابت شی.

هغه یو ځان غوښتونکی، مغرور او خیال پالونکی سړی دی، کله چی هغه پر بغداد حمله وکړه، د بغداد پر اوسیدونکو د مایوسی وریځی راخوری وی، او دا اندیښنه وه چی دده د بری د امکان په تصور به د خلیفه هغه پوځونه او منصبداران چی ترکان دی له هغوی سره یوځای شی، خو په لاره کی واوره واوریده، ده دا الهی عذاب وګاڼه او بیرته ستون شو، زما اندیښنه ده چی له چنګیز خان نه د لومړنی ماتی نه وروسته دا ونه وایی چی نور زموږ د بخت ستوری لویدلی دی، او دغه کمر به که یو ځل ډوب شو بیابه راښکاره نه شی.

طاهر وویل : نو ایا په دی صورت کی د بغداد په خلکو کی دا احساس

راوېښول ضروري نه دي چې ددې وروستی مورچل د ماتېدو په صورت کې به د مغلو سيلاب پر بغداد ور اوړي او موږ ته به رانژدې کېږي؟ آيا د شريکې دفاع په خاطر د خليفه او خوارزم شاه ترمنځ د اختلافونو د لرې کولو هڅې د يوه باتدبيره او هوښيار سړي ذمه واري نه ده؟

زما يقين دی چې که د خوارزم د هيواد او عباسي خلافت ترمنځ اتحاد وشي د نړۍ تر وروستی کونجه پر چنگيز خان پسې تلاى شو، زه د همدې هدف په خاطر بغداد ته راغلی يم او د همدغه هدف په خاطر ما د اميرانو او خليفه دربار ته د رسيدو لپاره ډېرو شرموونکو لارو غوره کولو ته مجبور وي، زه دوی له خوبه راوېښول غواړم، او که خدای مه کړه زه بريالی نه شوم نو دوهم پړاو به مې مصر او يا خوارزم وي.

عبدالعزيز ووېل : نو په خوب کې د کېښتې نه د کمره په لوری د لارې ښوونکی بل څوك نه ؤ ته وی، زه له تاسره ملگری يم زما څو تنه دوستان به هم له تاسره ملگري وي، که ته په بل څه مصروف نه وی نو دوی به سبا شپې ته راولم.

طاهر ووېل : سبا شپې ته زه د صدر اعظم ميلمه يم بله شپه يې دلته راوله.

عبدالعزيز ووېل : که سبا شپې ته ته د لوی وزير سره ميلمه يې نو بل ماښام به دی د لښکر مشر ميلمه کوی بيا به د نورو اميرانو نوبت وی او بيا ښايي خليفه هم تا د مهرباني د نظر وړ وبولي، خو رښتيا ووايه تا په لوی وزير څه جادو کړی دی؟ هغه د کوم عادی سوغات پروا نه لري.

د طاهر په دوه زړېتوب عبدالعزيز ووېل : ما دا پوښتنه له تانه ځکه وکړه چې خبر دی کړم، د لښکر مشر به نيغ درنه ونه پوښتي خو په پوښتنو کې به دا راز درڅخه معلوموی، خو ته دده د ځنډولو هڅه کوه او تر ټولو غوره سوغات دی خليفه ته وساته!

طاهر ووېل : ما لوی وزير ته يو غمی ورکړ، که مناسبه بولې نو د لښکر مشر ته به هم يو غمی ورکړم.

عبدالعزيز ووېل : ښه وو چې له مانه دې مشوره وغوښتنه د لښکر مشر د سوغاتونو په سبب د منصبونو ترلاسه کولو څخه بده منی، هغه د سوغاتونو پروركوونكو تل بد گومانه وی، اوس راځه هغه به ډېرانديښمن وی.

طاهر او عبدالعزيز يو بل ته لاسونه سره ورکړل او له محل نه راووتل په گاډی کې سپاره شول، په لاره کې عبدالعزيز ووېل : ستا د ميلمستياو لړۍ ښايي څو

ورځی اوږده شی، ځکه خو که مناسبه بولی نو زه به می له ملګرو سره بله ورځ سهار راشم، بله ورځ جمعه ده او موږ رخصت یو، له لمانځه نه وروسته به موږ پر اسونو یا په کښتئ کی په چکر ووزو.

لږ وراندی چی ولاړل طاهر وپوښتل : تا دا راته ونه ویل چی د لښکر مشر ماته د ملاقات شرف ولی راوباخښنه؟

عبدالعزیز وموسکل ویی ویل : کوم نوی راغلی سړی چی له لوی وزیر سره ګوری د لښکر مشر لیدل ورسره ضرور بولی، او له تاسره دلیدلو لپاره د هغه د ناکاری یو سبب دادی چی تا قاسم ته د مقابلی بلنه ورکړی ده، هغه دا احساسوی چی د قاسم نوی شهرت به په پوځ کی د هغه د یوه لوړ منصب سبب شی، ځکه غالباً هغه تاته وایی چی بچیه! که په توره وهلو نه پوهیږی نو د اسونو بندوبست زه درته کوم ته همدا نن شپه له بغداده ووزه، په کومه سیاسی موضوع له هغه سره مه ګرېږه، هغه هر سیاست پوه د بغداد لپاره خطرناك ګنی، د هغه په وراندی ځان یو ساده سپاهی وښیه ته به د هغه د پاملرنی او خواخوږی وړ وګرځی، که د علاوالدین محمد شاه یادونه راغله نو دامه وایه چی هغه د واوری اوریدل بد شګون وباله او بیرته ستون شو، هغه یوازی پر دی اوریدو خوښیږی چی په خوارزم شاه د ده ویره او هیبت خپور ؤ. که له دی وروسته دی جګ شو د هنداری مخی ته ودرید خپل بریتونه یی تاو کړل نو ته خامخا دا ورته ووایه چی د خوارزم ګیدړ د بغداد د زمری مخی ته د راتلو جرئت کله کولی شی؟

د لښکر د مشر د کور په مخه کی ګاډی ودریده، طاهر او عبدالعزیز دواړه پلی شول، یوه پهره دار دواړه پاسنی پوړ ته بوتلل، د ملاقات د کوټی په مخه کی یو وسله وال ساتونکی دریدلی ؤ، هغه له دواړو سره سترې مشی وکړل عبدالعزیز ته یی وویل : ته ډیر ناوخته شوی، ته همدلته ودرېږه زه به دی دننه ورسوم.

* * * * *

(۲)

ساتونکی د طاهر دننه له پریښودونه وروسته راغی له عبدالعزیز سره په خبرو اترو بوخت شو، لږ ځنډ وروسته یو حبشی غلام بهر ته راووت عبدالعزیز ته یی وویل : سالار دی دننه غواړی، عبدالعزیز کوټی ته ورننوت د لښکر سالار ورته وویل:

عبدالعزیزه ! دی یی کورته ورسوه او سبا ته دی دلته له راوستلو نه دمخه ښه

وازمویه، قاسم ما نن ولید چی له خپل یونانی استاذ سره یی تمرین کاوه، تاته معلوم دی دغه یونانی څوك دی؟

عبدالعزیز ځواب ورکړ : د هغه په باب زه زیات معلومات نلرم مگر اوریدلی می دی چی هغه تیره اونی د خپل پاچا له طرفه خلیفه او صدر اعظم ته سوغاتونه راوړی وو، او ددی دعوه کوی چی په صلیبی جگړو کی یی د مسلمانانو پرخلاف د زړورتیا ښودلو په سبب د فرانسی له پاچانه انعامونه اخستی دی، قاسم د بنی تنخواه په بدل کی هغه استاد نیولی دی.

د لښکرو بوډا مشر په غوسه شوندی وچیچلی ویی ویل : اوس به هغه له بیرته ستنیدلو وروسته وایی چی د بغداد د امیرانو زامن د توری چلولو د فن زده کولو لپاره د لویدیځ عیسوی استادانو ته اړ دی، ایا په تاسو کی داسی څوك نشته چی هغه ته وروښیی چی مسلمان په توره چلولو کی د چا ښوونی ته اړتیا نه لری؛ دغه د کمتری احساس به موږ ډوب کړی.

عبدالعزیز وویل : په دی اړه زموږ احساس له تا سره توپیر نه لری، خو کاشکی هغه سړی یوازی یونانی وای، هغه د صدر اعظم د زوی استاد هم دی، یو عام پوځی هغه ته د مقابلی بلنه کله ور کولی شی؟ که له هغه سره د مقابلی لپاره د یوه امیر زوی ته ضرورت نه وای نو تر اوسه به د هغه بدگومانی لری شوی وه، که طاهر دوی د یوه امیر زوی نه گڼلی هم دده سره د صلاح الدین ایوبی توره کافی ده چی د قاسم په زړه کی د رقابت جذبه پیدا کړی.

د لښکر مشر وویل : مگر دا لویه به د خلیفه مخکی کیږی، د قاسم له استاد سره د فرانسی د پاچا ستاینلیك دی، که یی شاگرد لویه وگټله او د صلاح الدین ایوبی توره یی ترلاسه کړه نو څوك ویلای شی چی څو کاله وروسته به د بغداد د پوځونو قیادت د څه ډول خلکو په لاس کی وی؟

عبدالعزیز وویل : زه د طاهر په باب داډه یم، که د شاگردنه وروسته په څه ډول استاد هم میدان ته راووت نو امکان لری دغه لوبه نوره هم په زړه پوری شی.

:«له شاگرد نه وروسته استاد!» ځوانه ته په سوچ او لری فکر کولو کی زموږ د بهرنیو چارو له وزیر نه په هیڅ صورت کم نه یی، له نن نه وروسته دی نوم د خپلو ذهینو سالارانو په لست کی لیکم.

له استاد نه وروسته شاگرد!

عبدالعزیز د خپلی موسکا د پټولو هڅه وکړه ویی ویل : صیب «له شاگرد نه

وروسته استاد!».

هوکی د شاگرد نه وروسته استاد! سالار په کړس کړس وخندل، که دغه ځوان زموږ هیلی ترسره کړی نو د هغوی دواړو څیری به د نندارې وړ وی.

گرانه تا خو ډیر لږی فکر کړی دی، اوس به تر ډیره ماته خوب رانه شی. نن صدر اعظم دا اندیښنه ښکاروله چی که نن کوم قصیده ویونکی شاعر راغی نو خلیفه به ددی په زړه پوری لوبی وعده هیره کړی او را به نه شی، زه به هڅه کوم چی نن دی خواته کوم شاعر را نه شی، خو ... ! هغه بیا یو ځل جدی شو، زیاته یی کړه : سبا ته دغه ځوان ښه وازمویه ویی گوره اوس یی کورته ورسوه تری راځه.

د لښکر د مشر له کوره چی راووتل په گاډیکی دواړه سپاره شول عبدالعزیز طاهر ته وکتل ویی ویل : له استاد نه وروسته شاگرد!

طاهر په موسکا وویل : ستا اتکل بلکل سهی ژ سالار له ماسره د ستړی مشی پر وخت زما متی وکتلی ویی ویل : ځوانه متی خو دی ښی مزبوتی ښکاری خو که په توره چلولو کی دې‌پرځان غلط حساب کړی وی نو زما غوره اسونه شته چی تا تر کوره ورسوی. بیا یی وپوښتل: د قاسم د یونانی استاد نوم څه دی؟

عبدالعزیز وویل : لوگس، خو اندیښنه مه کوه زما باور دی چی استاد تر شاگرد غوره نه دی.

طاهر په حقارت آمیزه لهجه وویل : زه دی ته نه یم پریشانه، زه افسوس په دی کوم چی کاشکی زما او دده مقابله په داسی دوستانه چاپیریال په پخو توروونه وای.

عبدالعزیز د سپوږمی په رڼا کی د طاهر څیری ته کتل، په هغه زړه وړونکی څیره‌کچی څه شیبه وړاندی د یوه عالم سړی وقار او سنجیدگی ترسترگو کیده، اوس د یوه پوځی‌دهیبت او وقار هنداره وه.

د طاهر د کور مخی ته چی ورسیدل عبدالعزیز هغه ته وویل : کوز شه ستا کور ته راورسیدو، خو هغه په کوم ژور چورت کی ډوب ژ عبدالعزیز یی ورو په اوږه لاس ور کیښود ویی ویل : په څه چورتونو کی ډوب یی؟ آیا هغه یونانی ته دی د توری وهلو سبق ورکاوه؟

طاهر تکان وخوړ ویی ویل : نه نه! زما لپاره دا مسئله دومره مهمه نه ده، ما څه نور سوچونه کول، ما سوچ کاوه چی چنگیز خان به اوس څه کوی؟ په ترکستان

کی سلطان علاوالدین څه کوی، په مصر کی څه کیږی او موږ په بغداد کی څه کوو، موږ له ژوندہ څومره لری یو.

طاهر له گادی نه پلی شو، له دروازی نه بهر زید د هغه انتظار کاوه، طاهر وویل : زیده! ته تر اوسه نه یی ویده شوی؟

زید د غوسی شکایت او مینی په لهجه وزته وویل : دا کله کیدای شی چی ته تش لاس د زمریانو غار ته ولاړ شی او ماته خوب راشی.

*****

(۳)

د شاهی محل په مخکی په یوه نیمه دایره کی د سیوری تر چترونو لاندی په دوو کتارونو کی امیران په کرسیو ناست وو، په دریم کتار کی د لاندی درجی منصبداران ولاړ وو، په مخ کی لږ اوچت په یوه تخت د ولی عهد ظاهر او د هغه ځوان زوی مستنصر کرسی وی، د ظاهر او مستنصر په مخکی په یوه طلایی پتنوس کی د سلطان صلاح الدین ایوبی توره وه، د چتر او شاهی محل د برنډی ترمنځ یوه تکه سره قالینه غوړیدلی وه، د محل په پاس برنده کی د وریښمینو پردو ترشا د شاهی کورنی او امیرانو ښځی ناستی وی، د مانیٔ په دوهم پوړ کی د یوه پراخ دالان له یوه ښکلی محراب نه لاندی یوه زرینه کرسی ښکاریدله او تر چترونو لاندی د ناستو ټولو خلکو سترگی د همغه کرسی په لوری وی، د ولی-عهد ښی لاس ته د صدر اعظم او د شهزاده مستنصر ترڅنگ د پوځ د مشر کرسی وی، او نور امیران بهرنی سفیران او د هیواد چارواکی د خپلو رتبو او منصبونو په تناسب ناست وو، د چنگیز خان د سفیر کرسیٔ د صدر اعظم ترڅنگ وه، او د علاوالدین محمد شاه سفیر د عماد الملك «د پوځ د مشر» ترڅنگ ناست ؤ.

په لومړی کتار کی په یوه سرکی د قاسم کرسیٔ وه او په هغه پسی په دوهم کتار کی طاهر ناست ؤ، د طاهر نه دری کرسیٔ لری د قاسم یونانی استاد، او د طاهر شاته په دریم کتار کی عبدالعزیز ناست ؤ، طاهر عبدالعزیز ته مخ ورواړاوه او ویی ویل : آیا زموږ مقابله به پردی قالینه وی؟

عبدالعزیز په موسکا ځواب ورکړ : دا قالینه یوازی ددی لپاره ده چی ستا مقابله د صدر اعظم له زوی سره ده، که ستا مقابله د شاهی کورنی له کوم غړی سره وای نو بیا به په دی قالینه گلان هم غوړیدلی وو.

طاهر په موسکا ځواب ورکړ : آیا د چوگان «اس ځغلولو» په لوبه کی به هم

قالیني غوړوی؟

عبدالعزیز ورو د هغه په غوږ کې وویل : نه، خو که زموږ د زوال همدغه حالت وي نو دا هم رواج وبوله، «لوګس» دې ولید ستا کیڼ لوري ته په څلورمه کرسۍ ناست دی، طاهر کیڼ لوري ته وکتل او ویې ویل :

دی خو له پوره تیارۍ سره راغلی دی.

عبدالعزیز وویل : ته به دې هر وخت په همدغه جامه کې وګورې، ښایي دې به په همدې جامه کې ویده کیږې هم، ته همت وکړه، د شاګردنه وروسته خامخا د استاد نوبت راځي، لکه چې د پوځ سالار له مستنصر سره په همدې خبره ګرېږي.

طاهر د پوځ د مشر خواته وکتل هغه په ټیټ غږ د مستنصر په غوږ کې څه ویل ، قاسم، طاهر ته مخ وروااړاوه او په لوړ غږ یې وویل : ته اندیښنه مه کوه زه به دا لوبه زر پای ته ورسوم.

ددې په ځواب کې د طاهر پر چوپتیا لوګس په ماته ګوډه عربي وویل : دومره بیړه مه کوه، که تا دا ننداره زر پای ته ورسوله نو لیدونکي به مایوس شي.

د شاوخوا ناستو کسانو سترګې د طاهر لوري ته ور اوښتې هغه مخ عبدالعزیز ته ور واړاوه د طاهر د تندې هغه رګ چې عبدالعزیز سهار څو ځلې لیدلی ؤ بیا راپورته شوی ؤ، یوه شیبه طاهر عبدالعزیز ته وکتل او بیا یې لوګس ته مخ ورواړاوه ویې ویل : ته داده اوسه لیدونکي به نه مایوسه کیږي ښایي ته هم مایوس نه شې، ترڅو ته په خپله ونه غواړې دا لوبه دوام لري.

د طاهر په خبرو کې بې اندازې اعتماد ؤ، او د خپل استاد په څیر قاسم هم پر خپل بدن یوه سپکه لړزه احساس کړه، بل لوري ته د وریښمینو پردو شاته د ښځو په دله کې صفیې، سکینې ته ویل : مانه درته ویل چې د قاسم ژبه تر توري تیره ده،

سکینې وویل : هغه به څه دوستانه خبره کوي.

صفیې وویل : که کومه دوستانه خبره وای نو له خبرو لړۍ به د ځواب تر حده نه غځیده. د قاسم له خولې به کومه تونده خبره وتلې وي، د هغه یوناني استاد به ورسره تائید کړی وي او اوس یې چې ځواب واورید دواړه د ملدو پیشوګانو په څیر غلي شول.

سکینې وویل : زما ورور خو د یوه زمري په څیر ناست دی، ته هره خبره په اټکلونو کوې، له تا سره څه دلیل دی چې قاسم به هغه ته کومه تونده خبره کړې

وی، له دومره لری نه ته خبره اوریدای شی او نه زه، اوس به لږ څنډ وروسته داسی پریکړه وشی چی د قاسم ژبه ډیره تیره وه که توره! قاسم به هغه ته داسی درس ورکوی چی بیا د توری نوم وانه خلی.

صفیی وویل : که یی قاسم ته داسی درس ورکړ بیا؟

سکینی وویل : صفیی له خدایه ښه دعا وغواړه، ستا له دی پردی سره دومره خواخوږی پر څه ده؟

صفیی ټکان وخوړ ویی ویل : زما له پردی سره نه د هغه غازی له زوی سره خواخوږی ده چی په بیت المقدس یی د فتحی بیرغ ورپاوه او په انعام کی یی توره وګټله زه نه غواړم چی د هغه زوی په دی ډك مجلس کی د پلار ددی سپیڅلی امانت نا اهله ثابت شی، او قاسم چی دا توره ترلاسه کړی هم څه به پری وکړی؟

: ایا هغه یو سپاهی نه دی؟

: سپاهی ! د لښکر د مشر له لور نه وپوښته چی هغه څه وړ سربښندوی سپاهی دی، که یی زیات پیژندل غواړی د عبدالملك د میرمنی نه پوښتنه وکړه، هغه یوازی پر قالینه د غیږنیولو پهلوان دی، پر ډبرینو لارو له څلور پړاوه مزله وروسته بیرته د لښکرو د مشر کورته راستون شو.

له نیکه مرغه د خوارزم پوځونه بیرته ستانه شول او ده د خبرو جوړولو لپاره پلمه وموندله، که نه ما اوریدلی دی چی ده به د شپی لخوا چیغی وهلی چی : ترکان راغلل تښتی ځانونه خلاصوی!

زه ریښتیا وایم که هغه ستا د وروړ پرځای د یوه عام سړی زوی وای نو له ده سره به یی داسی سلوك کاوه چی له جګړی نه راتښتیدونکو سره یی کوی.

سکینی وویل : دا ټول دلښکر د مشر شرارت دی، هغه د خلیفه تر نظره د قاسم د سپك ښکارولو په خاطر داسی کیسی مشهوری کړی خو نن به هغه ته هم معلومه شی چی د بغداد د پوځ د مشرتابه اصل حقدار څوك دی؟

صفیی څه ویل غوښتل چی نقیب له پاسنی پوړ نه کوم یو درجن القاب وکارول او ویی ویل چی د مسلمانانو خلیفه را روان دی، د چترونو لاندی ناستو امیرانو پاسنی کړکی ته وکتل او جګ شول په درناوی یی سرونه ښکته کړل، خو طاهر د سر ټیټولو پرځای نیغ سر حیران سپین ږیری خلیفه ته کتل چی څیره یی د ډیرو ګونځونه سمه نه ښکاریدله، دوو حبشی غلامانو خلیفه په طلایی کرسی کښیناوه ناڅاپه د کړکیو پر دی ولویدی او جارچیانو خلکو ته پر خپلو ځایونو د کیناستلو

حکم وکړ.

*****

(٤)

یو پوځي افسر د درېمګړي او ریفري په حیث میدان ته راغی یوه حبشي غلام ځو توري چې په لوبه کې کارېدلې، په یوه زرین پتنوس کې راوړې او وړاندې راغی،ولوبغاړي «ریفري» په اشاره طاهر او قاسم یو بل ته مخامخ ودرېدل له خپلو کرسیو څخه پاڅېدل او له پتنوس څخه یې یوه یوه توره واخستله، قاسم د خپل خول نقاب پر مخ راټیټ کړ طاهر هم د هغه په تقلید همداسې وکړل، په ننداره‌چیانو کې چوپتیا خوره شوه.

د تورو شرنګهار ورو ورو اوچت شو او له دې شرنګهار سره سره د ننداره‌چیانو خولې هم چوله شوې.

امیرانو چې په خپلو کرسیو ډډې وهلې وې آرام ناست وو، ورو ورو مخې ته راخم شول، د قاسم حملې ګړندۍ کېدلې او طاهر یوازې د هغه د ګوزارونو په دفاع بوخت ؤ. ننداره‌چیانو که یو لوري ته د قاسم په ګړندي توب او چالاکۍ اعتراف کاوه نو بل لوري ته یې په دفاعي جګړه کې د طاهر کمال ستایه، صدر اعظم په خپله کرسۍ کې په یوه او بله ډډه کېده او د کیناستلو هڅه یې کوله او د پوځ سالار په کرسۍ کې د پښو پرسرونو ناست ؤ، د قاسم استاذ لوکس د هغه د پرلپسې حملو ناکامۍ ونه زغملې شوه په فرانسوۍ ژبه څه وویل ودرید، خو له شانه یوه د ځواکمنو متو خاوند په اوږو لاس ورکېښوده او په زور یې بېرته پر خپل ځای کیناوه، هغه لږ ځنډ وروسته بیا د جګیدو هڅه وکړه خو لوکس پر خپلو اوږو تر پخوا زیات فشار احساس کړ.

بلې لوري ته د ښځو په ډله که صفیې سکینې ته وویل : سکینې! ایا ستا په ګومان د بغداد د یوه مهذب ځوان د مدینې غرنې ځوان ته د مقابلې بانه غلطي نه بولې؟ قاسم خو ویل چې تر پنځوسو شمیرلو پورې به لوبه پای ته ورسوي او ما خو اوس تر درې سوه پورې حساب کړې وې.

سکینې د صفیې د ځواب پرځای ځان ته د تسلي په دود وویل : لیونۍ ما هغه ته وویل چې لوبه اوږده کړه، هغه دې د یوه ماشوم په څېر لوبوي.

: زه ویرېږم چې کله هلك لوبه ورسره پیل کړي نو دده حالت به د رحم وړ وي.

سکینې وویل : ته د لس ورځې تمرین نه وروسته پردې پوهیږې چې ته ددې فن

استاده یی، ته د نارینه ؤ په لوبه څه پوهیږې!
صفیی وویل : زه پر ځان ستا د ورور پر غوره والي او برلاسی اعتراف کوم، خو دلته دده مقابله یوه نارینه سره ده هغه هم له سارایی سره چې له مقابلې پرته ماته نه مني، وګوره! قاسم اوس بې اختیاره وارونه کوي، او هغه بل تر اوسه پوري دفاع کوي، سکینې چې طاهر په دفاع کې ولید چې شاته درومې په خوښۍ راپورته شوه ویې ویل : څوك چې په وار کولونه پوهیږي هغه به له دفاع پرته نور څه وکولی شي؟
صفیی وویل : که وایې تر پنځوسو له سره حساب پیل کړم؟
سکینې ځواب ورکړ : نه اوس لږ ځند سترګی پټی کړه، زما ورور له نظره نه کړي، کله چې ستا دغه سارایی توره وغورځوله او کښیناست بیا سترګی وغړوه.
صفیی سترګی پټی کړي، په دومره خبرو کې تر اوسه دوی تعقوی دوا پرتیوه ته هم دعا ونه کړه خو چې دی سترګی پټی کړې دعا ته یې اراده وکړه نو معلومه وه چې دا به د چا د بری دعا کوي.
قاسم ددې د کاکازوی ؤ، ددې د کورنۍ د ټولو غړو امیدونه پر هغه پوري تړلی وو، پردی برسیره قاسم له صفیی سره مینه هم درلوده، او ددې هم له قاسم سره یو څه علاقه وه او تر هغه پوري چې هغه له پوځ سره نه و تللی او د بې زړه توب او بې غیرتی کیسې یې نه وې مشهوري شوي ددې کرکه نه تري کیده، او کله چې هغه د خوارزم شاه د مقابلې لپاره له پوځ سره پر اس سپور له کوره ووت صفیی د زړه له کومې وویل : قاسمه خدای (ج) دې روغ رمټ بیرته راستون کړه، او کله چې د بغداد خلك په میدان کې ستا د میړانې د کارنامو په ویاړ په غاړه کې د ګلونو امیلونه اچوي زه به د خپل بڼ ډېر ښکلي ګلونه ستا لپاره غوره کوم او که بیا سکینه راته وایې چې صفیی قاسم دې خوښ دی؟ نو پر ما به بده نه لګیږي.
خو کله چې قاسم بیرته راستون شو او د هغه د بې غیرتۍ له کیسو سره دده د شرابو څښلو کیسې هم عامې شوې نو دې دا احساس کړه چې له پیله یې تري کرکه کوله، او د قاسم لخوا د مینې اظهار ددې په زړه کې د نفرت او کرکې دغه ریښې نوري هم مزبوتې او ژوري کړي، خو اوس ددې د تره زوی قاسم له یوه پردي سره مقابله کوله.
هغه ناپیژندوی چې ددې همدومره پیژاند چې د یوه زړور پلار زوی دی او د هغه سره د صلاح الدین ایوبی (رح) توره ده، د هغه پلار هم د صلیب او هلال، په

مقابله کې د صلاح الدین ایوبي د یوه نومورکي سپاهي په حیث برخه واخستله، ځکه یې د هغه نومیالي مجاهد سره مینه وه او همداغې مینې خواخوږي پیدا کړې وه، خو آیا ددې د خواخوږي پوازینی سبب همدا و چې له دغه پردې سرې سره د ایوبي توره وه؟

صفیې په وار وار له خپل زړه نه پوښتل، او هر ځل ددې زړه دا ځواب ورکاوه چې نه! که له کوم بل زلمي سره دغه توره وای ښایې پردې یې هیڅ اغیزه نه وای کړې، صفیې ته هم د ځوانو مجنونو نه یوه یې، هغوی هم د لوبې له پیلیدو نه وراندې د طاهر د ښکلې ځواني په لیدو په زړونو کې دده د برې دعاګانې کوي.

ناڅاپه د ننداړچیانو خپ خپ ګونګوسي په زور ورو ناارو بدل شو خو صفیې دسترګو غړولو پرځای په تصور کې د دوی ځیرې لیدلې، د یوې شیبې لپاره دې قاسم ولید چې مغرور ولاړ دی او ماته خوړلی طاهر یې کسه ورته ولاړ دی، خو په دوهمه شیبه کې یې خپل د تره زوی لیده چې سر کښته ګوری طاهر یې په مخکې برېمن ولاړ دی، د وینو رشتی جوش وخوړ او زړ یې دعا وکړه : یا الله ! قاسم فاتح! ... خو بیایې ژبه ودریده، هغه ناپیژندوی چې د لومړي ځل لپاره یې ددې په زړه کې نرې نرې ځریکې راپورته کړې وې په ډیره بې وسي، ترې پوښتل آیا دا زما ګناه ده چې زه ستا د تره زوی نه یم؟!

د ننداړ چیانو زیات شور صفیه مجبوره کړه چې سترګې وغړوي د طاهر دفاعي حالت اوس په حمله بدل شوی ؤ او قاسم وارخطا شاته تلو او په میدان کې یې چکر واهه، قاسم دری ځلې په شاتګ کې وغورځیده، خو طاهر د هغه په ټټر د توري ور اینښودلواو په هغه د ماتې د منلو پرځای ددې انتظار کاوه چې بېرته راپورته شي، څلورم ځل چې هغه ولوید د بېرته جګیدو پرځای یې توره وغورځوله او چې طاهر ور وراندې شو هغه ته یې لاس ورکړ چې راپورته یې کړي قاسم د طاهر لاس لرې کړ او جګ شو ولاړ په خپله کرسۍ کېیناست هغه خول هم له سره لرې کړ او په غیږ کې یې ونیو، د سترې اس په ځیر سیلیده، پر مخ یې خولې راماتې وې، لوکس ورجګ شو د مخ د خولو پاکولو لپاره یې دسمال ور وراندې کړ، خو قاسم د هغه لاس هم ټنډ واهه او هغه ته یې ډېکه ورکړه کله چې لوکس پریشانه پخپله کرسۍ کېیناستلو عبدالعزیز ور تیټ شو په غوږ کې یې ورته وویل : دا دسمال د ځان لپاره وساته، تر اوسه د خلکو تسلي نه ده شوې هغوی ستا د لوبې او کمال د لیدو هیله هم لري.

لوکس ته د خپلو شوندو ژوولو نه پرته بله چاره نه وه.

* * * * *

(٥)

د بغداد امیرانو کرار کرار پر طاهر آفرین وایه خو د خوارزم سفیر ورجګ شو وړاندي ورغی او طاهر ته یی لاس وروکړ ویی ویل : ځوانه زه درته مبارکی وایم! د صلاح الدین ایوبی «رح» د زړور سپاهی له زوی نه زموږ همدغسی هیله وه.

طاهر خول له سره لری کړ د هغه مننه یی وکړه، عماد الملك د هغه خول تری واخست او د خولو وچولو لپاره یی یو دسمال ورکړ، طاهر د هغه له لاسه دسمال واخست او خولی یی پری پاکی کړی، چی له پاسه جارچی بیا غږ وکړ : د مسلمانانو خلیفه بیرته ځی! حاضر خلك ټول په احترام پاڅیدل، لږ شیبه وروسته جارچی د خلیفه د تللو اعلان وکړ او خلك ټول بیرته په خپلو خپلو ځایونو کښیناستل، طاهر د عماد الملك له لاسه خول واخست او خپلی خولی یی پاکولی، پر خپل ځای کښیناست، د پاچاهی د امیرانو سترګی پر صدر اعظم ښخی وی هغه خپل ذهنی درد د یوی سیاسی موسکا تر پردو لاندی د پټولو هڅه وکړه ویی ویل

: زه د مسلمانانو د خلیفه، د خلافت د ولی عهد شهزاده مستنصر او د بغداد د امیرانو له لوری طاهر بن یوسف، ته د مبارکی هدیه وړاندی کوم، او هیله کوم چی دغه توره چی دغه زلمی یی ځان دیر ښه حقدار ثابت کړی دی د عباسی سلطنت غوره خدمت وکړای شی.

دی وینا د حاضرینو دوه زره توب لری کړ او یو پر بل پسی راجګ شول طاهر ته یی لاسونه ورکړل.

د لښکر مشر یو ځل بیا له مستنصر سره په غوږ کی څه وویل او جګ شو په لوړ آواز یی وویل :

د شهزاده مستنصر بالله هیله ده چی په خپل لاس د طاهر په ملا د ایوبی «رح» دتوری د تړلو نه وړاندی یو ځل بیا هغه وازمویی زموږ په عزتمندو میلمنو کی یو داسی څوك شته چی دا دعوه کوی چی په دنیا کی د هغه نه ښه تورزن نشته، که طاهر زیات ستړی نه وی نو زه هیله کوم چی هغه زموږ د عزتمن، میلمه بلنه ومنی څکه چی که له طاهر سره د صلاح الدین ایوبی «رح» توره ده نو زموږ له میلمه لوکس سره د فرانسی د پاچا ستاینلیك دی.

لوکس چی دا واوریدل نه یی خه وویل او نه یی ولیدل سمدستی یی په سرخول کښیښود او په دګر ودرید. طاهر د اوبو پیاله پر سر واړوله په موسکا ودرید، عبدالعزیز په بیړه ورغی ویی ویل : ته ډیر ستومانه یی، د لوبی د زړ پای ته رسولو هڅه وکړه.

طاهر په داډ خول پر سر کښیښود ویی ویل : له ده سره به زما لوبه ډیره لنډه وی، ته چورت مه وهه.

حبشی غلام راوړاندی شو توره یی ورته وړاندی کړه، لوکس د یوی پرځای دوی توری واخستلی او یوه توره یی طاهر ته ور وغورځوله، طاهر تری ونیوله او د هغه د حملی انتظار یی وکړ، لوکس د طاهر د حملی طریقه لیدلی وه، هغه دده له ستومانی نه د ګټی اوچتولو هڅه وکړه، او حمله یی پری وکړه، خو ددی پرځای چی طاهر په توره د هغه د ګوزار دفاع کړی وای یو قدم شاته شو او د هغه ګوزار تش ولاړ، بیا چی کله د لوکس د توری څوکه په ځمکه ولګیده طاهر په ډیر زور په توره د هغه په توره واروکړ، د لوکس له لاسه توره ولویده او دی تش لاس په میدان ودرید او د خلکو کړس کړس خندایی اوریده.

شهزاده مستنصر د ولی عهد ظاهر په اشاره له میز نه توره پورته کړه او ور وړاندی شو د طاهر تر ملا یی وتړله، طاهر ته یی لاس ورکړ ویی ویل : زموږ په وسله تونونو کی تر دی زیاتی ښکلی او زیاتی تیری توری شته، خو کاشکی ستا غوندی څو سپاهیان هم وای، تاسو له دی ځایه مه ځی موږ درته ضرورت لرو، طاهر ځواب ورکړ : تر څو ستاسو ماته ضرورت وی زه به همدلته یم.

: راځه له پلار جان سره وګوره!

طاهر د ولی عهد کرسی ته نژدی شو، ولی عهد لاس ورکړ او ورته ویی ویل : ځوانه! زما د طبیلی غوره اس چی تر اوسه پوری یی ما د سپارلی ارمان پوره نکړای شو او زما د وسله تون غوره توره زه تاته په انعام کی درکوم نن به دغه شیان تاته در ورسیږی. دایی وویل او بیایی خپل زوی ته وکتل، ویی ویل : مستنصره ! د میلمنو رخصتول نورستا کار دی زه ځم طبیعت می خراب دی.

د ولی عهد له تلونه وروسته مجلس لږ نور هم بی تکلفه شو، هر یو راوړاندی کیده او له طاهر سره یی ستړی مشی کول، د نورو په لیدو د چنګیز خان نماینده هم طاهر ـه لاړ ورکړ ، خو له هغه سره په ستړی مشی کی طاهر په خپل بدن کی کمزوری لرزه احساس کړه.

مجلس ورو ړنگ شو، صدر اعظم چې رخصت شو طاهر ته یې وویل :زویه ! زما د شپې میلمستیا هیره نه کړې.

قاسم تر اوسه په کرسی ناست ؤ، صدر اعظم هغه ته لاس ونیو له کرسی نه یې پاڅاوه او له ځانه سره یې د محل په لوری بوتلو.

د تولو په پای کې د لښکر مشر او نور افسران د طاهر شاوخوا پاتې شول، د لښکر مشر عبدالعزیز ته وکتل ویې موسکل او ویې ویل : له استاد نه وروسته شاگرد!

عبدالعزیز وویل : له شاگرد نه وروسته استاد!

سالار په کرس کرس وخندل ویې ویل : عزیزه! ته د ښکار ډیر شوقي یې؟

زه سر له سبا تاته دری ورځې رخصت درکوم طاهر هم درسره بوزه! خو له اتو تنو زیات به نه ځې، د پردې تر شاصفیې سکینې ته ویل : سکینې ودی لید هغه سارایي.

سکینه چوپه وه، او کله چې صفیه له دې سره یوځای د خپلې ماڼې په لوری روانه وه دې په زړه کې په تولو لاره د سارایي کلمه تکراروله، دې ته ددغې کلمې معنی بدله شوې وه.

# صفیه

د شپې مهال د صدر اعظم پر دسترخوان د هغه ځو د نظر وړ خلك حاضروو، د قاسم د غیاب په باب صدر اعظم له طاهر نه بخښنه غوښتله، ویې ویل : قاسم د کوم دوست کره تللی دی، هغه پر خپل چلن ډیر پښیمانه ؤ، زما هیله ده چې سبا یا بله ورځ هغه پخپله تاته درشي، او زما هیله ده چې تاسو دواړه به یو د بل ډیر ښه دوستان شي.

طاهر وویل : دی به ما د خپلی دوستی وړ وهومي.

د ډوډی پر وخت له نورو میلمنو سره د یوی او بلی خوا خبرو اترونه وروسته صدر اعظم له طاهر نه وپوښتل: ایا تاته د لښکر مشر د کوم منصب وړاندیز نه دی کړی؟ ما اوریدلی دی چې ولی عهد او شهزاده مستنصر ستا سپارښت کړی دی؟

طاهر ځواب ورکړ : د لښکر سالار په دی اړه له ما سره هیڅ خبره نه ده کړی. او نه زه د ولی عهد او مستنصر د سپارښت نه خبر یم.

صدر اعظم په ځیر ځیر طاهر ته وکتل ویې ویل : که ته پوځ ته ځی نو زه دی پخپله د لښکر سالار ته خبره کوم، خو د پوځ په لوړو منصبونو ترکان مقرر دی، له هغوی نه وروسته ایرانیان دی، ځکه خو د یوه عرب منصبدار لپاره د پرمختګ ډیر چانس نشته.

طاهر وویل : زه د کوم منصب په تمه نه یم، زه یوازی د مسلمانانو د خدمت لپاره فرصت غواړم.

وزیر اعظم وویل : یوه معمولی منصبدار ته په عام ډول د خپلو لوړو افسرانو د خوشحالولو مسأله دومره مهمه وی چی دوی خدمت نشی کولی، زه غواړم چی ستا له استعداد نه پوره پوره ګټه واخستل شی ته په دی نازك وخت کی د عباسی خلافت لپاره شاندار خدمتونه ترسره کولی شی.

طاهر دا احساس کړه چی صدر اعظم پردی سربیره چی د قاسم پلار دی یو ښه او د قدر وړ انسان دی، او دده په اړه چی د بغداد خلکو کوم نظر دی هغه د تعصب او کینی پر بنیاد ولاړ دی، هغه وویل : ما به د بغداد د خلافت لپاره هری لویی قربانی ته چمتو وګوری.

صدر اعظم وویل : سمدستی د بغداد بهرنی معاملات ډیر ګډوډ دی او موږ ته د بهرنیو چارو لپاره هوښیارو، ذهینو او د اعتماد وړ خلکو ته اړتیا ده، طاهر ناڅاپه د خپل منزل زینه ولیده، ویی ویل : زه د خپل عقل او هوښیاری په باب څه دعوه نشم کولی، خو پر ما اعتماد کولی شی.

لوی وزیر وویل : زه به سبا ته د بهرنیو چارو له وزیر سره وګورم، کیدای شی په څو ورځو کی تاته یو ډیر مهم مسئولیت وسپارل شی، ښایی قاسم هم ستا د کار ملګری وی، ته د خوارزم د سفیر سره د اړیکو هڅه وکړه، او که ممکنه وی ته هغه ته دا باور ورکړه چی ته له هغو خلکو څخه یی چی پر خوارزم د مغلو یرغل نشی زغملی.

طاهر وویل : ایا هغه ته ددی باور ورکولو هم ضرورت دی؟

د اسلامی نړی کوم ذلیل ترین سړی به هم پر خوارزم د مغلو یرغل ونه زغملی شی، خو ایا ستا ګومان دی چی چنګیز خان به پر خوارزم حمله وکړی؟

صدر اعظم لږ سوچ وکړ او ځواب یی ورکړ:

تر څو چنګیز خان د بغداد په بی طرفی ډاډه نه شی حمله به ونه کړی، او که د دوی پوځونو پرمختګ پیل کړ امکان لری موږ ورته ووایو چی پر اختلاف برسیره پر کوم اسلامی هیواد ستاسو یرغل نشو زغملی، تازه خبرونه داسی دی چی د چنګیز خان لښکری د خوارزم په شمال کی راټولیږی، امکان لری موږ دا پیغام ور واستوو چی که ستاسو پوځونه پرمخ راغلل موږ به د خوارزم ترڅنګ دریږو. خو د خوارزم شاه د عمالو دا حالت دی چی له بغداد نه د مغلو هیواد ته تلونکی سوداګر هم جاسوسان بولی تر دی چی زموږ سفیران تلاشی کوی، دا څو ورځی کیږی چی له بغداد نه هیچاته هم د تاتار یانو هیواد ته د تلو اجازه نه ورکوی، زه ویریږم که د هغوی دغه حال وی نو د خوارزم سره به زموږ اړیکی د پخوا په څیر تیاره وی، او امکان لری چی موږ د ضرورت په وخت کی چنګیز خان ونه ویرولی شو.

څکه خو که په دغه نازکو حالاتو کی د خوارزم له سفیر سره ستا غوندی ځوان

له اړيکو نه څه گټه واخستلای شو نو په دی کی به د خوارزم او بغداد دواړو خير وی.
د هغه له تاسره د صلاح الدين ايوبی (رح) په واسطه زياته مينه پيدا شوی ځکه خو ته له دی فرصت نه گټه واخله، نن هغه ستا تر اغيزی لاندی راغی.
ترټولو د مخه هغه مبارکی درکړه، زما باور دی چی ته د خوارزم د هيواد په اړه ښی هيلی څرگندی کړی هغه به د ځان دوست کړای شی.
طاهر ځواب ورکړ : د خوارزم په باب د نيکو ارادو ښکارول به زما د زړه غږ وی، او زما يقين دی چی زه به دی په خپل اخلاص تر اغيزی لاندی راولم.
او که تازه د چنگيز خان د تنبيه لپاره تاکلی يم نو زه دا خپله نيکمرغی بولم.
لوی وزير وويل : تر اوسه دا پريکړه نه ده شوی چی دا مسئوليت چاته وسپارل شی، خو که ته د خوازم د سفير اعتماد ترلاسه کړی نو دا به ستا ډيره لويه کاميابی وی. ځکه چی د خوارزم دلارو بنديدو په صورت کی به زموږ استازی د ختيځ د لوړو غرونو له سختو لارونه تيريږی او يوه اوږده لاره به يی په مخ کی وی. او دغه لاره د وحشی او لوټمارو قبيلو په سبب نوره هم خطرناکه ده.
له دودی خوړلو او لږ او ډيرو نورو خبرو وروسته چی صدر اعظم طاهر رخصتولو ورته ويی ويل: زما هيله ده چی زما او ستا ترمنځ چی څه خبری وشوی هغه به نورو ته نه رسيږی.
طاهر وويل : که تاسو له مانه دا وعده وانه خلی هم زه دا خبری چاته نه کوم. په هر صورت اوس ستا د تسلی لپاره وعده کوم او زما وعده د يوه سياستمدار وعده نه ده د يوه سرتيری وعده يی وبولی.
د صدر اعظم په اشاره د هغه يو ملازم له مانی نه د طاهر بهر ته رسولو لپاره ورسره ملگری شو، له لويی دروازی نه چی ووتل، او په بڼ کی يی ښه کيښوده طاهر خدمتگار ته وويل : ته ورځه ماته لاره معلومه ده.
هغه لاس ورکړ ورته ويی ويل : ستا د کور ته رسولو لپاره به د دروازی نه بهر گاډی ولاړه وی.

*****

(۲)

طاهر د گلانو په منځ کی ورو ورو روان ؤ، د گلانو له وږمو ډکی تازه او صافی هوا دده زړه او دماغ ته تازگی او خوښی وربخښله، دغه ورځ دده د ژوند ډيره

بختوره ورځ وه، ده له سهاره تر اوسه د خپلو ډیرو خوبونو تعبیر لیدلی ؤ.
د توري وهلو مقابلې ده ته ډیرې د هدف دروازې خلاصې کړې وې، د ولي عهد غوره توره او اس ده ته رارسیدلي وو، شهزاده مستنصر یې پر ځان مین کړی ؤ، د بغداد امیرانو یې پر کمال اعتراف کاوه، بیا هم هغه دا اندیښنه درلوده چې صدر اعظم یې خفه کړی دی. د هغه په باب یې اوریدلي وو چې ډیر د کسات اخستونکې مزاج خاوند سړی دی او د هغه یو تدبیر دده په ټولو ارادو اوبه اړولی شي، خو پر دسترخوان د صدر اعظم ورین تندي او ښه چلن دغه تصور رد کړ، د هغه له خبرو دا ثابته شوه چې هغه یې تر ټولو ښه دوست او خواخوږی دی، د بغداد دغه جهان دیده سیاست پوه چې ده یې تر اوسه په لسګونو عیبونه اوریدلي وو اوس ده ته د انسانیت د غوره صفتونو یوه مجسمه او تصویر ښکاریده، طاهر ته قاسم ورپه یاد شو او په زړه کې یې وویل : کاشکې په میدان کې مې هغه دومره نه وای ذلیل کړی، صدر اعظم له دې پراخ نظری سره سره دده پلار دی او هغه به خامخا پرې خفه وي، پر دسترخوان د قاسم نه موجودیت ددې خبرې دلیل دی چې هغه تر اوسه په غوسه او ناراضه دی، طاهر ته د صدر اعظم دا خبرې ورپه یاد شوې چې قاسم به تر سبا یا بلې ورځې پخپله تاته درشي.
طاهر د لومړي ځل لپاره د قاسم په باب پخپل زړه کې د وروري احساسات حس کړل. ده فکر وکړ چې ښایي پلار یې پردې مجبور کړی چې ماته راشي، خو بیا به یې هم په زړه کې یو ځوروونکې احساس وي، غوره داده چې زه پخپله ورومبې شم، پخپله ده ته ورشم او ورته ووایم: قاسمه! زه ستا دوست یم، د بغداد او د عباسي خلافت په خاطر دواړه باید یو د بل دوستان شو، کاشکې ما اوس کورته د تګ نه وړاندې قاسم لیدلی وای، خو دومره په بیړه نه، د قاسم غوسه باید سړه شي، سبا ته به زه له عبدالعزیز سره ښکار ته له تلو نه دمخه له ده سره ګورم، او لوکس دده استاد دی په دې ښار کې پردی مسافر دی، زه به د هغه تسلي هم کوم.
ناڅاپه طاهر پر خپل لاس د چا د لاس تودوخه احساس کړه او له شانه یې واوریدل : ودریږه!
طاهر ټکان وخوړ لاس یې د توري په موټي کلک کړ او شاته یې مخ وګرځاوه، مخې ته یې کوتوال ولاړ ؤ، کوتوال پر خوله لاس کیښود ده ته یې د چوپتیا اشاره وکړه او ورو یې ورته وویل :

په ماپسی راځه!

طاهر د یوې شیبې لپاره سوچ وکړ او بیا ورپسې روان شو د کومې ناڅاپې حملې سره د مخ کیدو په خاطر یې ښې لاس د توري په موټي کلك نیولې ؤ. د گلونو له پټیو نه وړاندې له کوتوال سره په گڼو ونو ورننوت، کوتوال ورته وویل : همدلته ودریږه. او هغه بیا دیوې ونې شاته ورك شو د کوتوال له تلو نه وروسته ناڅاپه ده احساس کړه چې د خپلې لارې نه په راگرځیدو یې اشتباه وکړه، هغه د احتیاط لپاره توره وکښله او د ونو په منځ کې یې لږ خلاص ځای پریښود او د یوې ونې شاته غلې ودرید.

*****

(۳)

لږ ځنډ وروسته د ونو پاڼې وخوځیدې او یوه ځوانه نجلۍ د ونو د تیاره سیوری له منځه راښکاره شوه پرهغه ځای ودریده چې څه شیبه وړاندې طاهر دریدلی ؤ.

د سپوږمۍ رڼا د پاڼو له منځه تیریده او پردې لویدلې وه، هغه ښکلې وه، طاهر د سپوږمۍ په وړانگو کې د گلانو په سپینو پاڼو کې دومره تازگي او ښایست نه ؤلیدلی خو دا څوك وه؟ طاهر د یوې شیبې لپاره په حیرت کې ډوب شو او د ښکلا دغه ساده او معصوم تصویر ته یې کتل.

ځوانه نجلۍ پریشانه شوه یوه او بله خوایې وکتل، بالاخره یې زړه نازړه وویل : ته چیرته یې؟

طاهر توره په تیکی ننه ویستله او دونی له شاه نه رابهر شو نجلۍ زر پر مخ پرده وغوړوله او له یوې شیبې وروسته یې وویل ته زما په اړه څه بدگمانی ونه کړې، زه ستا د ښیگڼې لپاره یو څه درته وایم.

طاهر د نجلۍ د الفاظو د بخښنې نه زیات د هغې د غږ تر اغیزې لاندې راغی، نجلۍ له لږ ځنډ وروسته بیا وویل : تاسو په بغداد کې یو مسافر یاست کیدای شي دلته ستا دوستان هم وي خو دوستانو ته ورته دښمنان به دې ډیر وي، او امکان لري له کوم سړي نه چې ته په لاس کې د گل تمه لرې هغه درته یو زهرجن نښتر ساتلی وي، له قاسم سره پام کوه ستا په باب د هغه ارادې خطرناکې دي.

طاهر ځواب ورکړ : پرون ما له هغه سره لږ زیاتي وکړ، هغه به خامخا له مانه خفه و، خو زما باور دی چې زه به هغه بیرته راضي کړم، تاسو داده اوسې ما ته د قاسم لخوا هیڅ خطر نشته.

نجلی وویل : په بغداد کی ستا غوندی خوشباوره سړی ته ځای نشته، تاسو ځان ته داسی ځای وګوری، چی هلته د زړه وړونکی موسکا تر شا کینه، چل او دوکه نه وی غلی شوی، هلته چی د زړه او ژبی ترمنځ د ریا پردی نه وی، قاسم زه له تانه ښه پیژنم تاته به د هغه دوستی تر نیغی دښمنی زیاته خطرناکه وی.
طاهر له لږ سوچ وروسته ځواب ورکړ : نیک زړی نجلی! په دی مانۍ کی اوسیدونکی تر ما باید له قاسم سره زیاته مینه او خواخوږی ولری، زه پوښتلی شم چی ته څوک یی؟
نجلی ځواب ورکړ : ته باید پردی د پوهیدو هڅه ونه کړی زه یقیناً قاسم ته نژدی یم، خو زه دا نه خوښوم چی هغه له تا سره کیوزی.
: زه ددی سبب پوښتلی شم؟
: ددی سبب! نجلی پریشانه شوه ځواب یی ورکړ :
ددی سبب ماته معلوم نه دی، خو ته پرما اعتبار وکړه ستا ژوند په خطر کی دی، ته ځان ته د بغداد هیڅ ګوټ هم خوندی مه ګڼه.
: ته زما په باب دومره مه پریشانه کیږه، زما متی زما ساتنه کولی شی، او له دی نه پرته زه هیڅکله له مرګه نه یم ویریدلی. نجلی په غمجنه لهجه وویل : ښایی دلته زما د راتګ سبب همدغه وی چی ته له مرګه نه ویریږی. او زه تا له مرګه ویرول هم نه غواړم، خو ته دی په خپلو متو دومره اعتماد هم مه کوه، د توریالی توره له شانه د خنجر د ګوزار دفاع نه شی کولی.
طاهر وویل : ما قاسم دومره نامرد نه ګاڼه!
نجلی وو یل : قاسم نا مرد نه دی خو د کسات په جوش کی هغه هر څه کولی شی.
: زه به دده د کسات جوش سوړ کړم.
: زه به ستا د بری دعا کوم.
: ستا پر نصیحت عمل به کوم، خو دومره پوهیدل غواړم چی ته څوک یې؟
: ددی پوښتنی ځواب ما درکړی دی، ته ما یوه مسلمانه نجلی وبوله، چی په زړه کی یی د خپل اولس د توریالیو بچیانو لپاره عزت او درناوی دی. ستا په باب زه دومره پوهیږم چی ته د یوه زړور پلار زوی یی، له دی زیات زه نه پوهیږم او نه غواړم چی وپوهیږم. ته هم زما په باب د زیات څه پوهیدو هڅه مه کوه.
په ژوند کی زموږ لاری سره بیلی دی، ما دا احساس کړی چی ستا د ژوند

کښتي گرداب ته نژدي شویده، ضروري می وبلله چی سترګی دی خلاصی کړم، ما خپله ذمه واری ترسره کړه، زه ځم، ته لږ ودرېږه زه کوتوال درته، رااستوم هغه به دی لاری ته ورسوی.

نجلی طاهر حیران دریان په ونو کی پریښود او دا د ونو تر شا ورکه شوه، لږ شیبه وروسته کوتوال راښکاره شو، طاهر ته یی وویل چی په ده پسی ورځی، چی د ګلاتو پټیو ته ورسیدل کوتوال وویل : نور خو په لاره بلد یی ما ته رخصت راکړه!

د طاهر په زړه کی له کوتوال نه د هغی نجلی په اړه د پوښتنی هیله راپیدا شوه خو ژبی یی دزړه تائید ونه کړ.

*****

(٤)

طاهر د ډول ډول خیالونو په یرغل کی له مانی نه راووت د دروازی په مخکی ګاډی ولاړه وه، کوچوان خم شو سلام یی ورته وکړ، او دی بیله دی چی څه ووایی په چوپه خوله په ګاډی کی سپور شو.

طاهر له خپل زړه نه په وار وار دا پوښتنه وکړه چی : هغه څوك ده؟

پرون یی د طبیلی په مخکی دوی نجونی لیدلی وی، هغه غالباً له هغو دوو نه یوه وه، خو هغی دده په باب دومره اندیښنه ولی ښکاروله؟ هغه پر قاسم ولی دومره بدګومانه وه؟ ناڅاپه د طاهر په مغزونو کی یو خیال راوګرځید او پریشانی یې لری شوه، هغی نجلی ده ته داوربنودل غوښتل چی په بغداد کی اوسیدل ورته خطرناك دی، اوددی ادعا دثبوت لپاره یی دبغداد دخلکو ډیر بدتصویر ورته وړاندی کړ، آیا دا دقاسم شرارت نه دی ؟آیاداددی لپاره نه دی چی دی بغداد پرېږدی اووویرېږی تری ولاړشی؟

آخر دصدراعظم په مانی کی اوسیدونکی یوه نجلی چی خامخا به دقاسم څه خپلوی ورسره وی اویابه خدمتګاره وی له ده سره دومره خواخوږی اوهمدردی پرڅه ولری؟

خوهغه خادمه نه وه، هغه یوه شهزاد ګی ښکاریده دطاهر په سترګوکی دهغی ښکلی څیره راوګرځیدله هغه به خامخا دصدراعظم له کورنی سره اړیکی لری، دهغی په الفاظو کی خلوص ؤ، په څیره کی یی ساد ګی وه، داله فریب اوریانه ډیره ناخبره ښکاریدله کیدای‌شی‌له قاسم نه په څه خبره خفه شوی وی، خو په

هرصورت هغه پردی ژ اودلوړو کورنیو خلك دکور معاملی پردیوته نه وایی، نو بیادی ته څه معلومه شوه چی دی دیوه تورپالی پلار زوی دی، دې به داټول معلومات له کوم نارینه نه ترلاسه کړی وی اودغه سرې له قاسم نه پرته څوك کیدای شی ؟ قاسم به دکومی پردی شاته ناست وی اوله صدراعظم سره به یی دده خبری اوریدلی وی، او چی صدراعظم یی ده ته ډیر مایل لیدلی نو دده دلاری نه لری کولو لپاره به یی دادسیسه جوړه کړی وی ، دغی نجلی ته به یی خبری وربښودلی وی اودده دتیرویستلو لپاره به یی را استولی وې اوس به نجلی قاسم ته ورغلی وی او ورته وایی به چی ماهغه ډیر وویراوه هغه به تاته راشی اوبخښنه به درنه وغواړی، ستا په وړاندی به په زنگنو کښیني اوددوستی لاسونه به درته را وغځوی.

ددی خیالونو نه طاهر ډوی نتیجی واخستلی ، یو داچی قاسم دخپل پلار دترټنی اوگواښ په سبب پرخپل پخوانی چلند پښیمانه دی اوجبران ته یی چمتودی.

خواوس غواړی چی ددوستی لپاره زه وروړومبی شم، ددی مقصد په خاطر هغه زما په زړه کی دڅان په نسبت هیبت او ویره پیدا کوی.

دوهم داچی که له دی پیښی وروسته طاهر رومبی ددوستی لاس ور اوږدوی نودی به گومان کوی چی ددی نجلی دگواښونو په وجه وویریده، څکه خوده داغوره و بلله چی دقاسم د دروازی ور تکولو پرځای دهغه په انتظارشی.

دی نجلی چی څومره دقاسم دخطر ناك ښودلو هڅه وکړه په همغه اندازه هغه ساده اوبی آزاره ښکاریده اوطاهر چی کورته ورسید دقاسم په اړه یی داسی احساس ژ لکه مشر ورورپی چی دسرکشه او کشر وروړپه اړه لری، د ځوانی نجلی په اړه دده احساس داژ چی د امیرانو د لونو نه یوه وه چی ټول عمر یی په ریا اومکر کی تیرېږی او دروغ رښتیا ټاپټول ورته کمال ښکاری، خو د شپی له ویده کیدو نه دمخه کله چی دی په خپله بستره وغځید په دی ټولو پیښو یی له سره غور کاوه، په زړه کی یی له ځانه وپوښتل:

آیا هغه ساده او معصومه نجلی دومره دروغ ویلی شی؟

ددی سوال د ځواب په اړه سوچونو به دی له داسی ذهنی کیفیت سره مخ کړ چی د زړه او دماغ سره مختلف غږونه انسان کومی پریکړی کولو ته نه پرېږدی.

* * * *

(۵)

سبا ورځې ته له سهاره تر ماسپښین پورې قاسم له کوره ورك ؤ ، صفیې به لږ څنډ وروسته د ماڼي له خدمتګارانو نه دده په هکله پوښتنه کوله، ماسپښین مهال دې ته معلومه شوه چې قاسم راغلی دی او له خپلو پنځلس شل تنو ملګرو سره د محل په ختیځ لوري یوه کوټه کې ناست دی.

د محل دغه کونج د سیند لوري ته ؤ، او د برنډې نه د مرمرو زینې د سیند تر غاړې پورې غځېدلې وې. د اوبو له مخ نه لږ پاس د اوسپنو پنجرې د زینې پرورروستي پله ټینګې وې، پردې اوسپنیزو میخونو وړوکې ښکلې کښتۍ تړلې وې، د زینې له دې پوړ نه د سیند غاړه د خلافت ماڼۍ او د پوځې اعلی سالار له ماڼۍ سره د نورو امیرانو ماڼۍ ښکاریدلې چې د سیند په غاړه په یوه لیکه جوړې شوې وې، او د هرې ماڼۍ په مخ کې د سیند په غاړه زیات شمیر کشتۍ ښکاریدې.

صفیه د قاسم له ارداو نه خبره وه، اوس یې چې دا واوریدل چې له خپلو پنځلس شل تنو دوستانو سره ناست دی ددې اندیښنه نوره هم زیاته شوه، له لږ سوچ وروسته د مزبوتي ارادې سره د محل ختیځ لوري ته ور روانه شوه، په دې کونج کې به په پاسني پوړ کې ماښام مهال کله کله ښځې راټولیدلې او د دجلې د سیند په زړه پورې منظرو ننداره به یې کوله، په دریم پوړ کې یو لوی دالان ؤ، له دوهم او دریم پوړنه لاندې د سیند تر غاړې تاو راتاو زینې ښکته شوې وې، او ددې زینو، دروازه د سیند خواته برنډې له کونج سره وه.

صفیه د دریم پوړ له دالان نه تیره شوه برنډې ته ورسیده، په تنګو زینو ښکته کوزه شوه، د لاندې کوټې له چت نه لږ لاندې د هغو زینو دروازه وه چې لاندې یوه دهلیز ته تللې وې، ددې دهلیز مخه د ښې په لوري وه، او قاسم به کله کله همدلته له کوم اندېوال سره د سطرنج لوبه کوله.

له پاس او لاندې لوري دغه دهلیز ته له دې زینو پرته بله لاره نه وه، په کومه کوټه کې چې قاسم ؤ د هغې یوه کړکۍ همدې دهلیز ته خلاصیدله ، صفیه د یوې کړکۍ ترڅنګ کېښناستله پرده یې لږ یوې خواته کړه او لاندې یې کوټې ته وکتل.

قاسم له پنځلس شل داسې کسانو سره په مجلس بوخت ؤ چې د بغداد شریفو خلکو له دوی نه ښه خوله نه وهله، صفیې هغوی ټول له قاسم سره لیدلي وو، په هغوی کې لوکس هم ؤ خو نن د پخوا پرخلاف زیات اندېښمن او په چورتونو کې ډوب ؤ.

قاسم وویل : د بدنامی داغ په وینو مینځل کیدای شی، هغه ماته دوکه راکړه، په پیل کی یی داسی وښودله چی هغه په گوزار کولو نه پوهیږی او ما یوازی په دی گومان چی دا لوبه زر پای ته ونه رسیږی بی پروایی وکړه.

که زه پوهیدای چی زما د متهو له شل کیدو وروسته به هغه په دومره گړندی حمله پیل کوی نو ما به لومړی دا لوبه زر پای ته رسولی وای، او له لوکس سره هم هغه دوکه وکړه، پر لوکس یی د اتکل پرخلاف فشار زیات راوړ، خیر اوس به سره گورو!!

لوکس ویل : لږ تر لږه زه د ځان په اړه نه وایم چی له ما سره یی دوکه وکړه، د هغه بری د برلاسی نیتجه وه، زه چی پر څه خفه یم هغه دا چی موږ د میړنیو په څیر خپله ماته ولی ونه منله او د دوستی لاس مو ور اوږد نه کړ.

د لوکس له خولی ددی خبری اوریدل تولو ته حیرانوونکی وو او تولو په حیرانی ورته کتل.

کوټی ته یو بل تن ورننوت او اوس تولو د لوکس پرځای هغه ته کتل.

قاسم پوښتنه وکړه : څه خبر دی راوړی دی؟

نوی راغلی سړی وویل : هغوی د سیند په همدی غاړه له دی ځایه پنځه میله لری خیمی ودرولی، اوس دوی ښکار ته وتلی دی، او دشپی مهال ...!

قاسم د هغه خبره ورپوره کړه ویی ویل : د شپی مهال په په‌خواړه خوب ویده وی، پردی غاړه پاس لوری ته که لاندی؟

: لاندی ځنگل ته نژدی.

:دوی څو تنه وو؟

: تول اته تنه!

: نور څوك څوك دی؟

: عبدالعزیز، عبدالملك، مبارك، او افضل، نور پوځی افسران دی، د هغوی نومونه می نه دی زده، هو یو یی د طاهر خدمتگار ؤ.

قاسم وپوښتل : ستا په گومان موږ په اسونو ولاړ شو که به په کښتیو کی تگ راته غوره وی؟

هغه ځواب ورکړ : که په اسونو ولاړ شو نو دا به راز پاتی نه شی، موږ په کښتیو کی په شپه شپه کی بیرته راستنیدای شو.

قاسم لوکس ته وکتل، که ته له موږ سره ملگری نه کوی، همدلته پاتی شه په

یوه تن زما په گومان څه فرق نه راځی.

لوکس ځواب ورکړ : زه د هغو خلکو څخه نه یم چی په غلطو او خطرناکو لارو خپل دوستان یوازی پریږدی. زه له تاسو سره یم خو دا ضرور وایم چی تاسو چی کوم کار کوی، دا د میړنیو لاره نه ده. لږ تر لږه به پر ویده دښمن په حمله کی زما توره له تیکی راونه وزی.

قاسم په خندا وویل : ستا گومان دی چی موږ اتلس تنه د هغو اتوتنو په ویدو د وژلو په اراده روان یو! نه ! موږ به هغوی راویښ کړو مخ او لاسونه به مینځی او ښنی به وسلی را اخلی او مقابله به ورسره کوو، که له دی وروسته دوی بیا وتښتیدل نو زه نه غواړم چی په وینو یی توره سره کړم. زه د هغوی وژل نه غواړم غواړم ویی تښتوم او وزغلی، زه چی له ځانه سره ډیر سړی بیایم غواړم هغه وویروم چی وتښتی.

لوکس وویل : که هغه مقابلی ته چمتو شی نو بیا ؟

قاسم ځواب ورکړ : بیا به له دوی سره هماغه سلوك کیږي چی څوك یی د خپل مقام نه پیژندونکو سره کوی.

تا اوس ماته شکایت کاوه چی عبدالعزیز به په زور پر کرسی کښینولی، که تاته د ځان عزت نه وی نو له ماسره یی ضرور شته، د طاهر د یوه دوست لخوا دا یوه مقدمه ده، که موږ د دوی د سترگو خلاصولو لپاره څه ونه کړل نو د بغداد هرله لوړی مست به زموږ په اوږو راسپریږی.

: مگر ستا پلار جان!

: که پلار جان ته زموږ ارادی معلومی شی نو ښایی د سیاسی مصلحتونو په وجه مو ایسار کړی، خو زما باور ډی چی زه د خپل بریالی پروگرام نه وروسته ورته کیسه وکړم نو دی به تاسو ټول میلمانه کړی.

لوکس لږ په غمجنه لهجه وویل : نو زه له تا سره یم.

قاسم خپل ټول دوستان مخاطب کړل ویی ویل : په یاد ولری په هر صورت طاهر باید له بغداده کوچ وکړی دا زموږ په گټه ده، هغه د پوځ د اعلی قوماندان او خلافت دربار ته لاره پیدا کړی ده، او که هغه کوم لوی منصب ته ورسید نو په هر ډگر به خپل دوستان رامخی ته کړی، موږ ټولو ته به بیا د پرمختگ لاری بندی شی.

*****

(٦)

صفيې چې پر څه د پوهېدو هڅه کوله هغه ورته څرګند شول جګه شوه او په خپ خپ تګ له دهلیز نه زینو ته ورسیده او پاس وختله، د هغې په ذهن کې په وار وار دا الفاظ راګرځېدل، : د سیند پردی غاړه، له دی ځایه نژدی پنځه میله لری، لاندی لوری ته، د هغې د زړه ټکانونه کله تیزیدل او کله ورو کیدل، د خیالونو تر احساساتو لاندی کله دریدله او کله به یې ګړندی ګامونه واخستل، هغې یو ځل بیا د طاهر خبرول غوښتل.

غوښتل یې ژوند یې وژغوري، مګر د څه لپاره؟

آیا ددی لپاره چې هغه یو زړور ځوان ؤ؟

یا ددی په خاطر چې په بغداد کې مساپر ؤ، یو سارایی مساپر، بیایی سارایی سارایی څو واری په زړه کی تکرار کړل. او یو خوږ والی ، یوه خوښی او یوه لذت یی پکی احساس کړ، دی په زړه کی وویل : کاشکی زه هم یوه سارایی وای، او د دښتی په توند شمال کی می د هغه لمن نیولی شوای، دې ته د مرمر ډبرو دغه شانداره مانی د سارایی له کیږدیو نه نیمګړی ښکاره شوه، دې په هغو زړه ورونکی فضا کی ساه اخستل غوښتل چې د آزادی په بهونو کی د مینی چینی پکی خوټیږی، هلته چې مکر او ریا لا د انسانیت څیره نه ده مسخه کړی، هغې بیا په زړه کی وویل : صفیی خپل زړه ته دوکه مه ورکوه، د هغه او ستا د تړی ترمنځ، یو داسی سمندر دی چې څوك تری پوری وتلی نه شی.

هغه یو عام سړی دی او ته د صدر اعظم وریره یی، ته د هغه ژوند وژغوره نو دا یو د خیر کار دی. له دی نه زیات داسی خوبونه مه وینه چې تعبیر نه لری.

صفیه د سکینی په لټون پسی یوی کوټی ته ورننوته سکینې تکیې ته ډډه وهلی وه او یو کتاب یی لوست، هغې صفیی ته وکتل ویی ویل : صفیی چیرته تللی وی؟ ما ډیره ولټولی راشه ماته ددغو شعرونو مطلب ووایه!

: سکینی ! راځه نن پر اسونو چکر ووهو!!

سکینه حیرانه شوه ویی ویل : اوس ؟

صفیی وویل : نه لږ وروسته!

سکینی کتاب ته وکتل او په بی پروایی یی وویل : ماښام به ولاړی شو.

صفیه سکینی ته نژدی کښیناستله ویی ویل : نن به موږ د میدان پرځای د سیند پر غاړه ځو، سکینی ځواب ورکړ : ستا مقصد دا دی چې د بغداد خلك مو

ښی وېښتنی او پلار جان مو د اس له سپارلی هم ایسارګاکړی، په یاد دی نه دی چی یو ځل موږ د دجلی څنډو ته تللی وو پلار جان څومره غوسه شوی ؤ.

صفیی وویل : په پرده کی موږ څوك پیژنی؟

: زموږ آسونه خوپیژندل کیږی.

دایی چی واوریدل صفیه په چورتونو کی ډوبه شوه، او هغی په دی اړه زیات بحث لازم ونه باله.

ترماښامه سکینی څو ځلی تری وپوښتل : صفیی ته ډیره غمجنه یی، ته ووایه په څه خبره دومره پریشانه یی؟

خو هغی هر ځل دا ځواب ورکاوه : سکینی نن می بدن خوږیږی. پر اس د یوی اوږدی منډی نه وروسته به می طبیعت ښه شی.

د صفیی په ټینګار سکینه تر ماښام لږ د مخه تګ ته چمتو شوه، کله چی دوی پر اسونو سپری شوی او له ماڼی نه بهر ته راووتلی نو صفیی د خپل اس جلب راکش کړ او څو ځلی یی لغتی ورکړی چی ښه یی یاغی کړ ویی ویل : راځه سکینی د سیند په غاړه یوه منډه ووهو. زر به بیرته راوګرځو، په دی غاړه هسی هم د ښار د خلکو تګ راتګ لږ دی. که بیا هم څوك زموږ اسونه وپیژنی د شکایت جرئت به ونکړای شی، په دی کی بیا څه بدی ده؟

آخر هغوی هم زموږ میندی وی چی له نارینه ؤ سره اوږه په اوږه په غزاګانو کی شریکی وی.

سکینی وویل : د سیند په غاړه خو څه جګړه نشته، صفیه بی ځوابه شوه ویی ویل : زه وېوهیدم ته ویریږی. خو زه داډ درکوم زما خنجر به ستا ساتنه کوی.

سکینی وویل : زه ولی له چانه وویریږم. آیا له ماسره خنجر نشته ؟ راځه!

د سکینی د ارادی د بدلیدو له ویری صفیی سمدستی اس د سیند غاړی په لوری راوګرځاوه او د سترګو په رپ کی دوی دواړی د ابادیو نه ووتلی، لږ وړاندی چی ولاړل سکینی چیغی کړی صفیی ودریږه!

وړاندی تګ خطرناك دی صفیی ! صفیی!

ایا تا د حسن بن صباح جنت ته د رسیدو اراده کړی ده؟

د صفیی تدبیر کامیاب شوی ؤ، هغی همداسی غوښتل چی سکینه تر لږ ځنډه ورسره ملګری شی هغی بیله دی چی اس ودروی مخ راوګرځاوه او دی ته یی داسی وښودله چی د اس درولو او راګرځولو هڅه کوی په لوړ غږ یی وویل : سکینی !

دغه اس نن لږ سرکشه شوی غوندی دی. زه یی لږ مزاج ور برابروم، ته که له وړاندی تلو نه ویره لری، ودریږه زه به اوس بیرته راوګرځم.

سکینی وویل : ته څومره احمقه یی! مانه وو درته ویلی چی پردی اس یوازی قاسم سپریدلی شی.

ته مه ورنژدی کیږه!

صفیی مخ راوګرځاوه ځواب یی ورکړ : اوس به ددی جوش سوړ شی. زیات نه زیات نو دوه میله نور به وزغلی.

سکینی تر لږ نوری لاری ورسره ملګری وکړه بالاخره یی اس ودراوه او د ډیری پریشانی په حالت کی یی د صفیی ګرندی اس ته کتل چی ترشا پاتی ګردونو کی پټ او د سترګو په رپ کی پناه شو، او سکینی ورپسی کتل او تر ډیره پوری په همغه ځای ولاړه وه.

تر لمر لویدو پوری ډیر وخت و، سکینی چی د سیند په غاړه شاوخوا د بزګرانو څو کلی ولیدل نو خطر یی احساس نه کړ.

څو ځلی ښه غوسه ورغله او ویی غوښتل چی بیرته ستنه شی، خو بیا به یی په زړه کی وروګرځیدل چی کورته ولاړه شی څه به وایی؟ بیا به یی اراده بدله شوه، ناڅاپه یی ذهن ته ورغلل چی په یوه ځای دریدل یی ښه نه دی، نو په عادی تګ یی اس پریښود نژدی نیم میل وړاندی یی اس بیا راوګرځاوه او تر نیم میل پوری یی بیرته ښار ته لاره ووهله او بیا یی اس ودراوه.

د لویدیځ پر افق د شفق سرخی خپریدله، دونو سیوری په تیزی سره اوږدیدل، مرغان له فصلونونه د خپلو ځالو په لوری راالوتل، د سکینی اندیښنه ورو ورو زیاتیدله، بیایی هم خپل زړه ته تسلی ورکوله چی : هغه دومره نا دانه نه ده خامخا به ډیره لری نه وی تللی، دا به زما د پریشانه کولو په خاطر چیرته د کومی ونی ترشا پټه شوی وی، که زه بیرته ستنه شم نو دا به اس وزغلوی او له ماسره به ملګری شی او بیا به په کړس کړس وخاندی او بیا د هغی په ذهن کی وروګرځیدل چی که خدای (ج) مه کړه هغی ته څه پیښه شوی وی نو بیا!

بیا هم زه باید ولاړه شم، زه به پلار جان ته ووایم چی د هغی اس یاغی شو او دسیند په څنډه وړاندی ولاړه.

له ډیر فکر وروسته سکینی د بیرته تلو پریکړه وکړه خو بیا یی هم په دی تمه چی صفیه به راشی اس ودراوه او شاته به یی وکتل، او په انتظار به شوه.

# د قاسم کسات

طاهر د عبدالعزیز له دوستانو عبدالملك او مبارك سره ډېر زر بلد شو مبارك یو ځواکمن او ساده زړی سپاهی ؤ، په تعلیم کی هم هغه له ټولونه وروسته ؤ، د دوستانو په مجلس کی به هم هغه د خبرو په وخت زیات شرمیده، خو په سیند کی په لامبو، په گڼو ونو کی د هوسی په ښکار او په هوا د مارغانو په غشو ویشتلو یی د طاهر پام ځان ته ور واړاوه، طاهر په زید او مبارك کی ډېر صفتونه شریك ولیدل، زید چی څومره له نورو خلکو سره په خبرو کی د خجالت احساس کاوه هومره زر له مبارك سره په مجلس بلد شو.

افضل یو نیك خویه ځوان ؤ، په خبرو کی هغه زیات هوښیار ؤ، خو د نورو په نسبت تنبلی او آرام طلبۍ طاهر د هغه په باب څه ښه رایه نه درلوده، په ښکار کی افضل تر ټولو لاری له ملگرو سره یوځای ؤ، بیایی اس په یوه ونه وتاړه او په درانه خوب ویده شو، ماسپښین مهال یی چی په سیند کی لمبل زید پردی خبره خوښ ؤ چی له ژورو اوبونه لری یی یو بل ملگری هم پیدا کړ.

طاهر چی د کوم زلمی نه اغیزمن شو هغه عبدالملك ؤ، په قد له عبدالعزیز نه لږ ټیټ خو په بدنی لحاظ مزبوت ؤ، مخ یی لږ اوږد او بیضوی ؤ.

پراخه تندی، تورو غټو سترگو د هغه بنی ته ځانگړی وقار او ښکلاوربخښلی وه. هغه د بغداد په غوره مدرسو کی روزل شوی ؤ او د بغداد په رواجی او معمولو علومو کی یی پوره لاس درلود. او څومره چی طاهر د هغه د پخو نظریاتو نه تر اغیزی لاندی ؤ تر هغه څو چنده زیات هغه د طاهر په ښه ذهانت او علمیت اعتراف کاوه.

طاهر او عبدالملك چی لږ شیبه له یو بل سرد مجلس وکړ داسی یی احساسوله چی له ډیری اوږدی مودی راسی یو بل سره پیژنی.

موسی او نصیر سوچه سپاهیان وو، د هغوی له علم او ادب سره هیڅ اړیکی نه وی، یوازی د عبدالعزیز شخصیت او خلوص هغوی ټول سره راغونډ کړی وو او د دوی په ډله یی ور شریك کړی وو او کله به چی نور ملګری د ونو تر سیوری لاندی ناست وو په مهمو مسایلو به یی خبری اتری کولی، دوی دواړه به لږ لری یو له بل سره په جګړه بوخت وو.

موسی ویل : ما چی کومه هوسی ښکار کړی ده هغه ستا له هوسی نه په وزن کی زیاته ده، او ښکر یی ستا له هوسی نه ښکلی دی.

نصیر به د هغه د دروغجن ثابتولو هڅه کوله ویل به یی : تا به په خوب کی هم ما غوندی هوسی نه وی ښکار کړی.

زید ته به د دوی جګړه د هغو علمی بحثونو نه زیاته په زړه پوری وه جګ به شو دوی ته نژدی به کښیناست، هغوی دواړه چی پر یو بل د خپلی خبری منلو نه مایوس شول نو زید یی حکم غوره کړ. زید د هوسی تر ښکلا او دعوی زیات د نصیر له جوش نه اغیز من شوی ؤ او د هغه په پلوی یی پریکړه وکړه.

موسی هغه دی ته چمتو کاوه چی پر خپله پریکړه له سره غور وکړی، خو نصیر وویل : بس نور د دریم ګړی له پریکړی نه وروسته ته د خبرو حق نه لری. موسی پر زید خپل قهر داسی سوړ کړ کله چی دوی په سیند کی لمبل موسی په ټوکه د زید سر دوه دری ځلی په اوبو کی ډوب کړ او غوټی یی ورکړی، زید له اوبو نه را بهر شو او ده ته یی د غیږو بلنه ورکړه. او کله چی موسی دغه بلنه ومنله او له اوبو نه راووت مبارك، افضل، او عبدالعزیز طاهر او عبدالملك پریښودل او تر دوی راچاپیر شول. زید موسی راوغورځاوه او پرشایی کښیناست ویی ویل : اوس ددی ټولو د وړاندی ووایه چی زما پریکړه سهی وه، موسی تر لږ ځنډه د لاس او پښو له وهلو وروسته په خندا وویل : زه اعلان کوم چی ستا پریکړه بلکل سهی وه.

زید وویل : وعده وکړه چی بیا به په اوبو کی ماته غوټی نه راکوی!

موسی وعده وکړه او زید بیا هغه پریښود.

* * * * *

(۲)

د مازدیګر له لمانځه نه وروسته دی خلکو د غشو ویشتلو تمرین پیل کړ، خو طاهر، عبدالعزیز او عبدالملك د سیند د غاړی په چکر ووتل، لږ ډوبیدو ته نژدی

ؤ، او دوی بیرته خیمو ته د راستنیدو اراده وکړه چی له لری یی یو سپور ولید چی ډیر گړندی را روان ؤ، سپور چی رانژدی شو عبدالعزیز وویل : دا خو کومه ښځه معلومیږی، او د طاهر په زړه کی څه اندیښنه راوگرځیده، او چی اس نژدی ورغی دغه اندیښنه نوره هم زیاته او په پریشانی بدله شوه.

دا صفیه وه، د تندی او سترگونه پرته یی نور مخ په پرده کی پټ ؤ، هغی لږ وړاندی اس ودراوه، او په مذبذب حالت یی دوی دری واړو ته یو پر بل پسی وکتل، له یوی شیبی چوپتیا نه وروسته یی اس څو گامه نور هم ور وړاندی کړ او په طاهر یی سترگی ښخی کړی، ددی سترگو د څه ځوروونکی احساس ترجمانی کوله، د نجلی له دوه زړه توب نه عبدالملك اغیزمن شو طاهر ته یی وویل : هغه تاته څه ویل غواړی ورشه!

طاهر ور وړاندی شو تری وبی پوښتل : ته ماته څه ویل غواړی؟

نجلی پر خپلی ژر ژر ساه اخستلو د قابو کیدو هڅه کوله وبی ویل : هو زه ددی لپاره راغلم چی تاته ووایم چی قاسم ... نن شپه ...؟

طاهر په طنزیه لهجه د هغی خبره ور بشپړه کړه وبی ویل : موږ به ووژنی، ځکه خو باید د بغداده سل میله لری ولاړ شو، زما په گومان ما پخوا هم له تا سره د ملاقات شرف ترلاسه کړی، د صفیی په زړه دروند گوزار وشو، هغی په لړزیدلی او زخمی غږ وویل : ماته د بغداد له توکمارو او حاضر ځوابو ځوانانو نه بیل بللی، په هر صورت زه خپل فرض پوره کوم، قاسم د شپی مهال له خپلو پنځلس شل تنو ملگرو سره په کیښتیو کی راځی او پر تاسو حمله کوی، تاسو له دی ځایه ولاړ شی او یا د تفریح لپاره بل ځای وټاکی په دی کی ستاسو خیر دی، که نه نو سبایی په بغداد کی څوك دا ونه پوښتی چی څوك ووژل شول او چا ووژل؟

د طاهر شك په یقین بدل شوی ؤ، هغه وویل : ستا د زحمت څخه مننه! تاسو قاسم ته ووایی چی یو هوښیار سړی دوه ځله یوه حربه نه ازمویی، ما تاته پخوا هم ویلی وو چی زه د دښمنی پرځای د هغه دوستی کول غوره گڼم، خو چی هغه زما دویرولو لپاره کومی لاری غوره کوی دا د هر سلیم فطرت خاوند انسان ته بدی ښکاری. زه هغه ته تر غاړی وتو ته چمتو یم. خو د هغه په پښو کی لویدوته هیڅکله نه یم تیار.

صفیی ته د طاهر هر تکی په زهرو ککړ یو نشتر ؤ، دی ته د خپل خلوص او ایثار مسخره کیدل له زغم نه وتلی وو، له غوسی نه په ریږدیدلی غږ یی په زوره

وویل : ته یو وحشی، جاهل او مغرور سارایی یی، ته دا گنې چې زه قاسم را استولی یم، او زه د هغه په وینا دلته راغلی یم، پرون هم تا زما په باب دا اټکل کاوه او ولاړې چې زه د هغه د لاس اله یم او ستا د د ویرولو لپاره دروغ درته وایم. ما ستا په پیژندلو کې اشتباه کړې وه، ته له قاسم سره توپیر نه لرې. ... زه بې عقله وم ... اوس زه درته وایم چې په خیمه کې دې ډیوه بله کړه، او آرام ویده شه چې قاسم ته دې په موندلو کې زحمت نه وي.

صفیې دومره وویل او په سلگیو شوه، او طاهر ددې د الفاظو تر تریخوالی ددې د سلگیو او د سترگو د اوښکو د څاڅکو نه زیات تر اغیزې لاندې راغی. هغه د کوم گل پر پاڼو د شبنم په څاڅکو کې دومره ښکلا او جذابیت نه ؤ لیدلی لکه ددې له ښتو نه په ځلیدونکو غمیو کې یې چې لیده، سوچ یې وکړ چې که ددې نجلی په اړه یې اټکل غلط وي نو بیا؟

صفیې د یوې شیبې لپاره سترگې په خپل لستوني کې پټې کړې او بیا یې په داسې نظر طاهر ته وکتل چې غوسه هم پکې وه، او رحم هم د اس جلب یې راوگرځاوه خو عبدالملك چې د دوی خبرې اوریدلی وې او یوې نتیجې ته رسیدلی ؤ گړندی ورغی او د اس جلب یې ونیو ویې ویل : عزتمندې! زه لتا سره د خبرو حق نه لرم، خو په داسې موکه له څه ویلو پرته نشم پاتې کیدای، ماته دانه ده معلومه چې ته او طاهر له څه وخت راسې سره پیژنې، په هر صورت ستا اوښکې ستا د اخلاص شاهدې وایي. طاهر ستا په پیژندلو کې اشتباه کړې ده، خو ته دا اشتباه د بخښنې وړ وبوله، دی په بغداد کې مساپر دی، ددې ځای له حالاتونه خبر نه دی ستا په باب د غلط اټکل سبب یې غالباً دا دی چې طاهر قاسم یو میړنی ځوان گڼي او د هغه په اړه بد اټکل نشي کولی. هغه ته دانه ده معلومه چې د بغداد د امیرانو ذهنیت او سوچ څومره مردار دی، زه قاسم پیژنم او د طاهر لخوا له تانه معافي غواړم، ته به د طاهر په خبرو خامخا آزرده شوې وې خو که نن شپه د قاسم په اړه دده خوشیاوری لرې شوه نو بیا به دې چې څومره په پښیمانۍ ستا سره مخ کیږي د هغې اټکل ته نه شې کولی. زه پوهیږم چې ته به په څومره ستونزو دلته رارسیدلی وې. تا پر موږ زیات احسان وکړ، زه تاته داد درکوم، چې موږ به له دې خطر نه د ځانونو ژغورلو هڅه وکړو. او زه دا داد هم درکوم چې طاهر به هم احسان هیروونکی ونه گوري، که گستاخي نه وي نو زما په گومان ته صفیه یې؟

صفیې ځواب ورکړ : هوکې! خو که ستا سوسره زما په اړه دلته په راتلو څه بدګومانې پیدا شوې وي له خپلې ښځې نه دې پوښتنه کولی شې، که ته عبدالملك یې نو ستا میرمن ما ډیره ښه پیژني.

عبدالملك وویل : ته داډه اوسه، زه ستا په باب هیڅ بدګومانې نشم کولی.

د صفیې د غوسې اور سوړ شوی ؤ، طاهر یې د پښیمانۍ او خفګان په سبب ځوړند سرولید ویې ویل : که دې په خپل چلن پښیمانه وې نو زه هم د خپلو توندو خبرو معافي غواړم. زه یو ځل بیا وایم چې قاسم د شپې مهال راځي. تاسو خبر اوسئ، او زه دا هم غواړم چې قاسم ته څه زیان ونه رسیږي تاسو وعده وکړئ!

عبدالملك وویل : زه وعده کوم چې د قاسم د سر یو ویښته به هم ضایع نه شي.

طاهر سرپورته کړ ویې ویل : که زه ووایم چې پښیمانه یم ته مې د بخښنې وړ بولې؟

صفیې وویل : نه، اوس نه! او بیایې اس ته پونده ورکړه.

طاهر خجالت شو تر سترګو پناه کیدونکې اس ته یې کتل، عبدالملك د هغه په اوږه لاس ورکښیښود ویې ویل : ته دا نجلۍ پیژنې؟

طاهر ځواب ورکړ : نه !

: زه پوښتنه کولی شم چې دا دې لومړی چیرته او کله لیدلې؟

: پرون شپه د صدر اعظم د مانۍ په بڼ کې، خو دا څوك ده؟

: د قاسم د تره لور صفیه!

: پردې سربیره ته ګومان کوې چې زما رایه غلطه وه؟

: ستا اټکل څکه غلط دی چې دا د قاسم د تره لور وه، او ددې پلار د بغداد له ټولو امیرانو سره توپیر درلود، اوس راځه د لمانځه وخت دی.

طاهر ورسره روان شو، عبدالعزیز چې تردې شیبې پورې چوپ ؤ، طاهر ته یې وویل : ته باید دومره پریشانه نشې، هغې ستا بخښنه رد نه کړه بیایې عبدالملك ته وویل : ستا په نظر موږ باید څه وکړو؟

د جګړې په صورت کې که څه هم موږ اته کسه یو خو دوی ته مو ښه سبق ورکولی شوای خو تا وعده وکړه چې د قاسم د سر یو ویښته به هم نه ضایع کیږي، خو چې کله توری ټکر شي بیا د مقابل لوري د ویښته زیانیدو لحاظ ساتل ګرانیږي.

عبدالملك وویل : ما له هغه سره د قاسم د ځان ساتنې وعده کړې، خو دا وعده

می نه ده کړی چی د هغه په غاړه کی به د ګلونو امیل وراچوو!
عبدالعزیز وویل : نو نن به هغه ته داسی درس ورکړو چی ټول عمر یی په یاد وی. خو ستا باور دی چی قاسم به د شپی مهال پر موږ حمله وکړی؟
عبدالملك ځواب ورکړ : ددی نجلی په باب چی ماته څه معلومات دی زه د هغی په رڼا کی که ددی پر خبره باور ونه کړم ګناه یی ګنم، قاضی عبدالرحمن دی ته د قرآن او حدیثو درس ورکړی، زما میرمن هم د هغه شاګرده وه. ځکه دواړه یو بل ښی سره پیژنی زما میرمن د دوی په باب ډیر غوره نظر لری.
عبدالعزیز پوښتنه وکړه : تا هغه څه وړ وپیژندله؟
: ستا پام نه شو دا د قاسم پر اس سپره وه.

*****

(۳)

صفیی سترړی شوی اس کله تیز او کله ورو زغلاوه خپل کورته نژدی نیم میل لری یی سکینه را لاندی کړه، سکینی په دریدو دریدو کی په لاره کی څو څو ځله هغی ته کنځلی وکړی او بیا به له مینی مجبوره شوه ددی د سلامتی دعا به یی وکړه.
کله به یی ویل : صفیی ! که ته په خیر او خیریت را ستنه شی نو دومره دیناره به خیرات ورکړم.
او کله به یی شونډی وژوولی وبه یی ویل : صفیی ته یو ځل راشه زه به درسره داسی سلوك کوم چی ټول عمر دی په یاد وی. ستا سره چکر ته راوتل خو پریږده زه به درسره خبری هم نه کوم.
صفیی ! لیونی، بی عقلی، ناپوهی! ماښام شو، ته چیرته ولاړی، زه چی کورته ولاړه شم څه ځواب به وایم، تر سبا پوری به په ټول ښار کی دا مشهوره شی چی صفیه ورکه شویده.
او چی کله صفیه دی ته نژدی شوه ویل یی : خورجانی سکینی! دا کیدای شی ته له مانه خفه شی؟ لږ ماته راوګوره زه صفیه یم ، ستا کشری صفیه! نو سکینی ته دا پریکړه ګرانه شوه چی هغی ته څه ووایی؟
صفیی بیا وویل : خوری! زما خوری! ستا د دومره خفه لیدو پرځای خو دا ښه ده چی له اس نه غورځیدلی او مړه شوی وای.
سکینی وویل : ته ډیره بی عقله یی!

او بیا یی په سترگو کی اوښکی راډنډ شوی، لږ وړاندی چی ولاړل سکینی وویل : که د حسن بن صباح کوم سړی په مخه درغلی وای بیا به دی څه کول؟

صفیی په خندا ځواب ورکړ : ما به ورته ویل چی ستاسو په جنت کی د حوری جوړیدو حقداره زه نه یم سکینه ده.

سکینی وویل : که د کور خلکو زموږ لټون پیل کړی وی څه پلمه به ورته کوو؟

صفیی په داډ ځواب ورکړ : تر اوسه ماښام دی د سپوږمی په شپو کی څو ځله موږ ماسختن کور ته راستنیدلو.

د سیند پله ته چی نژدی شول صفیی دوی کیښتی ولیدلی د فاصلی د زیاتوالی په سبب دی په کیښتی کی سپریدونکی ونه لیدل خو د کښتیو گړندی تگ یی چی ولید وپوهیده چی قاسم او ملگری یی دی.

*****

(٤)

قاسم له خپلو ملگرو سره تر مشوری وروسته د طاهر دوی له خیمو نه دوه سوه گزه لری د سیند پر غاړه کیښتی ودرولی.

د سیند پر غاړه چی پلی شول ټولو پر خپلو مخونو پردی راکش کړی او د سپوږمی د رڼا نه د ځان ساتنی لپاره د وړاندی ونو منځ ته ولاړل او غلی غلی د خیمو په لوری ورغلل، خیمو ته نژدی د یوی گڼی ونی په سیوری کی ودریدل، او له لږ غوږ نیولو وروسته یو تن وړاندی ورغی هغه په خپ خپ تگ تر خیمی چارپیر راوگرځیده او بیایی خیمی ته وکتل او بیرته خپلو ملگرو ته راغی ویی ویل : دننه په یوه کونج کی اور بل دی او هغه څادر ورباندی غوړولی او په درانه خوب ویده دی، زموږ لپاره همدغه غوره موکه ده.

قاسم وویل : مگر د دوی اسونه نه ښکاری!

یوه تن ځواب ورکړ : که اسونه دوی په ځنگل کی د څریدو لپاره خلاص نه وی پریښی نو بیا به چا په غلا بیولی وی اوس موږ باید وخت ضایع نه کړو.

د قاسم په اشاره ټولو توری وایستلی لوکس ور وړاندی شو قاسم یی تر مټ ونیو ویی ویل : تا وعده کړی وه چی ویښوی به یی او د تیښتی او یا مقابلی موکه به ورکوی.

قاسم ځواب ورکړ : که ستاسو نه څوك راسره ملگری نه کوی نو جلا کیدای شی، که درته اړتیا شوه نو راوبه دی غواړو خو په یاد ولره! ته زموږ په دی کار

کی راسره شریك یی، که دی دا راز ونه ساتلای شونو کوم جرم چی پر مورِ په گرانه ثابتیدای شی پر تا به اسانه ثابت شی، که ته په بغداد کی پاتی وای نو له دی جرم نه به دی ځان ژغورلی وای، خو ما د همدی لپاره راسره راوستی، که اوس بیرته ستون شی هم دانشی ثابتولای چی ته له مورِ سره یوازی د یوه نندارچی په حیث ملگری وی، که توره نه شی کښنلی نو دا وعده به ضرور کوی چی خوله به دی چوپه وی.

لوکس څه سوچ وکړ او ویی ویل : ما د یوه دوست په حیث خپل فرض ادا کړ، نور که ستا دا پریکړه ده زه درسره یم.

قاسم وویل : زما له تانه همدا تمه وه، اوس زه غواړم چی دغه لویه لړ په زړه پوری کړو، ستا به هم دا اعتراض نه وی چی مورِ هغه راوبیښ نه کړ. امکان لری هغه له مقابلی پرته تیښتی ته چمتو شی او مورِ ته هسی دده په وینو د تورو سروکولو ضرورت نه شی، که هغه دا وعده وکړه چی بیا به بغداد ته نه ځی نو امکان لری هسی لږ تپی هم نه شی، زه دا غواړم چی د هغه خیمه وغورځوو مورِ باید بیره وکړو.

د قاسم پردی وړاندیز دده ځینو ملگرو هغه وستایه او آفرین یی پری ووایه، دوی د ونی له سیوری راووتل په، رغړیدو د خیمی شاوخواته ورسیدل، د قاسم په اشاره یی په یوه وخت د خیمی تنابونه غوځ کړل، یوه لوری ته یی کش کړه او لرگی یی وغورځول. د یوی شیبی لپاره د هغوی ټولو زړونه په زوره زوره درزیدل، د یوی شیبی لپاره د دوی غوږونه په ځمکه د غورځیدلی خیمی نه لاندی د ډول ډول غږونو د اوریدو په انتظار وو، او لږ شیبه وروسته د دوی سترگی د ویدو په لټ اوښتلو په ځار ښخی وی،

خو د قاسم او ملگرو اندیښنی ورو ورو په تشویش او پریشانی بدلی شوی، ټولو یو بل ته په معنی دار نظر وکتل، څو ځایه د خیمی د رخت راوتلی برخی ددی لپاره کافی وی چی خیمه تشه نه ده.

لوکس غلی قاسم ته وویل : کیدای شی دوی مورِ لیدلی یو او زمورِ له شمیر نه ویریدلی وی، ته ورته غږ وکړه او د سر د امن وعده ورکړه زما باور دی چی د بغداد پرینبودلو ته به چمتو شی.

په خیمی کی یوه لوری ته اوریلیده، د قاسم یو ملگری ورجگ شو اور ته یی اشاره وکړه ویی ویل : که دوی د سوی په خوب ویده وای هم د اور تودوخه به یی

احساسوله.

قاسم په لوړ غږ وویل : نور په دوکه کار نه کیږي، که ځان ژغورل غواړی نو د بغداد پرځای کوم بل لوری ته روان شه، ستا پرسر اتلس توری ولاړی دی، خیمی اور اخستی دی، د بغداد د پریښودو وعده کوی که نه؟

کله یی چی څه ځواب وانه ورید قاسم ور وړاندی شو د توری په څوکه یی یو راوتلی ځای وکوت، پردی هم چی ویده شوی پروانه کړه نو یی توره لړه په زوره چوخ کړه، خو دا یی احساس کړه چی لاندی د انسان پرځای کوم کلك شی دی، دده په لیدو دده نور ملګری هم پر خیمه وروختل یو تن یو بل راوتلی ځای په لغتو وواهه او ویی ویل : لاندی ډبری دی انسان نه شته. هغوی پر ډبرو خادرونه غوړولی او موږ یی تیر ایستلی یو، ځی له دی ځایه ځانونه باسی.

قاسم دوه دری راوتلی ځایونه په تورو ووهل او ویی ویل : دوی زموږ له راتګه خبر شوی او تښتیدلی دی.

خو څوګامه وړاندی یی یو دروند غږ واورید: موږ دلته یو تاسو د تیښتی کوشش مه کوی!

د قاسم ملګری د کومی ناڅاپی حملی د مقابلی لپاره تیار شول خو شاوخوا هیڅوك نه ښکاریدل.

چا بیا وویل : تاسو ټول اوس زموږ د غشو تر دم لاندی یاستی او باور وکړی زموږ د یوه هم نخښنه بی ځایه نه لګی.

قاسم احساس کړه چی خبری کوونکی د مخامخ ونی ترشا دی، هغه خپلو ملګرو ته د سیند په لوری ورو ورو د شا تګ مشوره ورکړه.

د ونی له شانه بیا غږ اوچت شو : د تیښتی هڅه بی ګټی ده، ستاسو شاته سیند دی، مخامخ، ښی او کیڼ لوری ته زما غشی ویشتونکی ناست دی. که ستاسو باور نه راځی نو هر لوری ته چی غواړی څلور ګامه واخلی بیا وګوری، نه تاسو موږ لیدای شی او نه مو وسلی رارسیږی.

قاسم د ډیری وارخطایی له امله چیغی کړی:

ته څه غواړی موږ هسی د ساعت تیری لپاره راغلی وو توکی مو کولی.

: موږ هم هسی د ساعت تیری لپاره په ونو ختلی یو.

: زما په خبره باور وکړه ما هسی ته ویرولی!.

: ته زما پر خبره باور وکړه هسی تاسو ویروو!

قاسم وویل : ایا دا به مناسبه نه وی چی له ونی نه راکوز شی او دلته دواړه خبری سره وکړو!

د ونی له شانه غږ راغی : د لاندی راکوزیدو له بلنی نه دی مننه! زه هم دلته ډیر تنګ ناست یم. خو پخواله دی چی زه درکوز شم ته به یو زحمت باسی!

: هغه څه؟

: ته دی ملګرو ته د تورو غورځولو امر وکړه!

قاسم وویل : ایا، دا به ښه نه وای چی تا د خبرو په وخت کی د ځان او ما د رتبی خیال ساتلی؟

د ونی له شانه آواز راغی : ګستاخی معاف!

ستا په مخ پرده ده او زه دی له غږ نه نه پیژنم!

قاسم وویل : نو ددی مطلب دا دی چی تاسو زموږ د راتګ له خبریدو نه پرته دومره احتیاط کوی؟

له لږ ځنډ نه وروسته آواز راغی: موږ د سیند په غاړه ناست وو د سپوږمی د شپی ننداره مو کوله، ښایی دا به ستاسو بدمرغی وه چی موږ ستاسی کښتی ولیدی د خطر په احساس کی مو اشتباه ونه کړه.

په خیمی کی د اور شغلی ژبغراندی شوی وی، قاسم خپلو ملګرو ته وویل : تاسو دلته څه کوی نه ګوری خیمی اور اخیستی، کش یی کړی اوبو ته یی وغورځوی!

له ونی نه دروند آواز اوچت شو: ودریږی!

که تاسو کوم یو لږ د یوی اوبلی خوا کیدو هڅه وکړه نو درته ښه به نه وی، موږ د خیمی پروانه لرو، که تاسو موږ ددی بار د بیرته وړلو نه خلاص کړو نو موږ به هم تاسو د کښتیو له بیرته بیولو نه وژغورو، توپیر یوازی دا دی چی زموږ د خیمو ابری به د چا درد دوانه کړی خو ستاسو له کښتیو نه به کب نیوونکی کاز واخلی.

اوس تاسو د کومی بلی کیسی له پیلولونه دمخه توری وغورځوی، قاسم خپلو ملګرو ته وکتل او توره یی وغورځوله، خو له ونی نه غږ راغی : تاسو له موږ نه لری نه یاست زه غواړم چی له تاسونه هر سړی په نوبت راشی ددی ونی په بیخ کی توره وغورځوی او بیرته پر خپل ځای ودریږی.

قاسم وویل : موږ د داسی ماتی له منلو نه مقابله غوره ګنو که په تاکی جرئت

وی نو راکوز شه او مقابله وکړه.
د وني نه غږ راغی : د خدای ج احسان دی چی تا موږ د مقابلی وړ وبللو، خو زه په باور درته وایم چی زموږ توری پڅی نه دی. تا زموږ د تورو د تیره والی او د خپلو سرونو د قیمت غلط اټکل کړی دی، که بیا هم تاسو د مقابلی بلنه راکوی تیار یو، په تاسو کی کوم سړی چی ځان زورور گڼی راوړاندی دی شی!
له موږ نه به هم یو تن در کوز شی، همدغسی به یو پر بل پسی له تاسو سره د زور ازمویلو موکه ومومی، خو که په دی کی خپله گټه نه گوری نو زه د خپلو ملگرو لخوا دا وعده درسره کوم چی د وسلی له غورځولو وروسته به تاسو ته د تلو اجازه وی!
قاسم خپلو ملگرو ته وکتل او له څه سوچ وروسته یی یوه تن ته اشاره وکړه، بیا وړاندی ورغی او د وني لاندی یی توره وغورځوله بیرته ولاړ پر خپل ځای ودرید، پر هغه پسی دوهم او بیا دریم او همدغسی ټول ولاړل دونی لاندی یی توری و غورځولی او بیرته په خپلو ځایونو ودریدل.
وروسته بیا یو تن له وني نه کوز شو، دا عبدالعزیز ؤ توره یی وکښله وړاندی ورغی او د قاسم او ملگرو په مخ کی ودرید، له لږ سوچ وروسته یی وویل : زه د غږ په پیژندلو کی اشتباه نه کوم زما په گومان زه د صدر اعظم د زوی سره په ملاقات مشرف یم؟
قاسم له خپل مخ نه نقاب لری کړ او ویی غورځاوه، عبدالعزیز غږ وکړ : طاهره! عبدالملکه!
راځی کوز شی دا قاسم دی، موږ گومان کاوه چی کوم دښمن راباندی یرغل راوړی دی.
د عبدالعزیز ملگری یو پر بل پسی توره ایستلی دوی ته ورنژدی شول.
قاسم وویل : ته ډیر هوښیار یی موږ هسی د ساعت تیری لپاره راغلی یو.
عبدالعزیز وویل : ستا ډیره مهربانی ده، موږ ستا خبری واوریدی.
قاسم وویل : تاسو له موږ سره وعده کړی وه چی موږ توری وغورځوو نو تاسو به مو لاره نه نیسی؟
عبدالعزیز ځواب ورکړ : زه پر خپله وعده ولاړ یم، خو ما ستا ملگری نه وو لیدلی، تاسو دوی ته ووایی چی نقابونه لری کړی.
د قاسم په اشاره هغوی لږ څند دوه زړی وو او بیایی نقابونه لری کړل. عبدالملك

لږ ور وړاندې شو په هغوی کې یې څلور تنه پوځي منصبداران وپېژندل ویې ویل :
عزیزه ! د قاسم نفوذ تر پوځ پورې رسیدلی دی دوی پېژني ! زما په گومان ددې څلورو تنو له موږ سره د میلمنو په حیث پاتې کېدل ضروري دي.
عبدالعزیز ځواب ورکړ : ما د دوی ټولو د امن وعده کړې ده، قاسمه ته تلای شې خو یوه خبره ښه واوره! که ته له خپلو ارادونه وانه وړې نو ډېر به درته تاوان وکړي.
که د طاهر یو ویښته زیانیږي نو زه به د صدر اعظم د مانۍ مخې ته پنځوس زره سپاهیان راولم، او زموږ سره به ستاسو توري دا شاهدي وايي چې زموږ دښمن څوك ؤ؟
که د صدر اعظم لپاره زموږ په زړونو کې درناوي او عزت نه واي، نو نن به ستاسو سره زموږ چلن بل ډول ؤ، که د دجلي اوبه زموږ مړي خوندي اوغلي کولی شي نو ستا مړي هم خوندي کولی شي.
په هر حال اوس ولاړ شه او که دې بیا په زړه کې د انتقام اور لمبې کولی نو دا په یاد ولره چې تر سبا پورې به په بغداد کې پنځلس شل تنه نور هم داسې ځوانان پیدا شي چې له ډېر لوی قوت نه به زموږ کسات واخستلای شي.
دایي وویل بیا عبدالعزیز خپلو ملگرو ته پام واړاوه ویې ویل : زید او نصیره! تاسو هغه توري پورته کړې. زید او نصیر د ونې لاندې توري اوچتې کړې، عبدالعزیز خپلو نورو ملگرو ته اشاره وکړه او یوې خواته روان شول. قاسم او د هغه ملگرو د بې شانه مایوسۍ په حالت کې د ونو په منځ کې دوی ته کتل چې ورو ورو یې له سترگو پناه کېدل.
په ځنگل کې تر نیم میل مزله وروسته عبدالعزیز او ملگري یې هغه ځای ته ورسیدل چې اسونه یې تړلي وو له لږ خبرو او مجلس وروسته یې پرېدي اتفاق راغی چې دوی باید په بېړه بغداد ته ستانه شي او بیا په اسونو سپاره شول.

* * * * *

(۵)

لمر راختلی ؤ چې قاسم یوې نوکرۍ وخوځاوه او له خوبه یې راویښ کړ، هغه په لټه واوښت، وغځېد سترگې یې وغړولې نوکره یې ورټله او بیرته یې سترگې پټې کړې.
نوکري ورته وویل : جگ شه ماسپښین کېدونکی دی.

آغا دی غواړی ! هغه حکم کړی دی چی زر تر زره ورته حاضر شی.

قاسم وغورمبیده جگ شو او د صدر اعظم کوټې ته ورغی، صدر اعظم دیوی کړکی مخی ته ولاړ ؤ بهر ته یی کتل، مخ یی راواړاوه او قاسم ته د کتلو نه پرته یی وویل : قاسمه! ته د شپې چیرته وی؟ د یوی شیبې لپاره قاسم ددی خبری ځواب ور نکړای شو، هغه پر خپله پریشانی راقابو شو ویی ویل : د شپې له یوه دوست سره میلمه وم، هلته په خبرو اترو کی راباندی ناوخته شوه.

وزیر اعظم مخ ورواړاوه او ورته ویی کتل، قاسم دده د کتو تاب رانه وړ سترگی یی ښکته واچولی، وزیر اعظم دده په لاس کی یو لیك ورکړ ویی ویل : زویه ! ته تر اوسه د دروغو په فن کی دومره نه یی هوښیار شوی چی ماته دوکه راکړای شی دا ولوله!

قاسم د لیك له لوستلو نه وروسته پلار ته وکتل د هغه په کتو کی دا پوښتنه وه چی اوس ستا څه حکم دی؟

صدر اعظم په یوه وړوکی میز پرتی توری ته اشاره وکړه ویی ویل : طاهر له دی لیك سره ستا توره هم را استولی ده، دا د هغه شرافت دی که نه نو ولی عهد او شهزاده ته هم ور رسیدای شی.

قاسمه ! تا ډیر بد کړی دی، تا باید په داسیْ هوښیار سړی داسی کوږ گوزار نه وای کړی.

قاسم ځواب ورکړ : پلار جانه ! دا هسی توکی وی، طاهر دومره هوښیار نه دی. دا یوازی د عبدالعزیز له لاسه وشول.

صدر اعظم وویل : هغه څوك دی؟

: هغه د پوځ یو معمولی افسر دی.

: خو د پاتی اوولس تورو په وړاندی کولو به د هغه اهمیت ډیر زیات شی. په پوځ کی پخوا هم ستا په باب چا ښه نظر نه درلود، اوس دی پخپله په لاره کی نوی ازغی وکرل، قاسمه! تا ډیر بد وکړل ما غوښتل طاهر ستا د پرمختگ د لاری یوه زینه شی، هغه به ما د ځان نائب معرفی کاوه او ته به د چنگیز خان دربار ته د سفیر په حیث تللی وی. خو اوس ... !

قاسم لږ اندیښمن شو ویی ویل : نو اوس ؟!

: اوس له دی پرته بله چاره نشته چی دی بهر ته چیرته واستوو او تاته په بغداد کی لاره خلاصه شی. تاته معلومه نه ده چی ولی عهد یی سپارښت کری دی

چی په پوځ کی هغه ته مهمه ذمه واری وسپارل شی، قاضی فخر الدین خلیفه ته ددی ځوان په ستاینه کی ځمکه او آسمان سره یو کړی دی. د دی ټولو خبرو نتیجه به دا وی چی په بغداد کی به د ده د ملګرو پرمخ په هر ډګر د پرمختګ لاری خلاصی وی، او ستا لاره به تړلی وی.

قاسم وویل : نو ته دی په کوم مهم کار پسی ولی نه استوی؟

: زه دا کولی شم، خو له دی نه دمخه ستا ددی حرکت په سبب چی دده په زړه کی کوم شك پیدا شوی دی هغه باید لری شی، که نه نو هغه به ماته هم تل په شك ګوری، تر اوسه پوری هغه زما په باب نیك ګومان لری، همدغه سبب دی چی هغه ستا شکایت د بل چا پرځای ماته راوړ.

قاسم وویل : ته دا غواړی چی زه بخښنه تری وغواړم!

: نه داسی نه! هغه به پرتا نور هم بدګومانه شی، غوره دا ده چی هغه زه ځانته راوغواړم، د هغه د وړاندی له تاته پوښتنی وکړم. خو زه له دی نه دمخه ستا لخوا اطمینان غواړم چی کوم حماقت به نه کوی، له پوځ نه چی کوم ځوانان ستا سره تللی وو د لښکرو سالار ته د هغوی په باب لیکم چی زر تر زره یی برطرف کړی.

: خو پلار جانه! هغوی زما دوستان دی زما مرسته یی کوله په دی کی د هغوی څه ګناه ده؟

سمدستی له ما سره دا مسئله مطرح نه ده چی دوی ګناهکار وو که نه، طاهر د ولی عهد، شهزاده او د پوځ سرلښکر تر درباره رسیدلی دی، د طاهر دوستانو ته زه باید دا وښیم چی زه له دوی سره څه دښمنی نه لرم، خلیفه که طاهر د مصر د پاچاهی جاسوس ونه ګنی نو امکان لری چی له ما سره د مشوری پرته یی په کوم مهم منصب وګوماری، په دی صورت کی به بیا دده د مخالفینو پرخلاف دده ترټولو ستره وسیله د ده شتمنی وی. او زه دا نه غواړم چی داسی سړی دی دښمن شی چی خدای ج یی په متو کي د غرونو د تل څیرلو او له آسمانه د ستورو راشکولو ځواك ایښی دی.

هغه یو د قدر وړ او مخلص زلمی دی، د داسی سړی دوستی ګټوره او دښمنی یی خطرناکه وی، هغه ته زما ضرورت دی او د هغه پرخلاف ستا کوم سپارښت نشم زغملی. امکان لری له مانه وروسته همدغه زلمی د بغداد صدر اعظم شی. او ته به په خپلو حماقتونو پښیمانه یی، او دا هم امکان لری چی هغه د کوم بل امیر پلوی شی او زما د عظمی صدارت منصب رانه واخلی.

# د طاهر بن یوسف تیاری

چنګیز قراقرم خپل مرکز ټاکلی ؤ، د هغه هیواد ډېر پراخه او پوځونه یې بې شمیره وو، خو پر اسلامي نړۍ یې د حملې په مخ کې یو نه تسخیرېدونکی دیوال لیده، دغه مورچل چې د مغلو د لښکرو د سیلاب د څپو حوصله ورماتوله د علاو الدین محمد خوارزم شاه ستره واکمني وه چې بریدونه یې یوې خواته تر هندوستان او بغداد او بل لوري ته د اورال تر بحیرې او فارس خلیج پورې رسیدل.

کله چې د بغداد واکمني د امن په زانګو کې ویده وه، د لویدیځ او ختیځ یرغلګرو ته د خوارزم او مصر توریالي په مخ کې ولاړ وو، چنګیز خان د خوارزم د هیواد د سهي ځواك نه خبر نه ؤ، ځکه خو هغه له یرغل نه وړاندې له خوارزم شاه سره ښې اړیکې غوښتې چې د تولو هسکو ټیټو او ځواك نه یې معلومات ترلاسه کړي. ځکه خو د دواړو هیوادونو ترمنځ د امن تړون وشو چې بیا د همدې تړون په سبب د دواړو لوریو ترمنځ د سوداګرۍ لارې پرانستل شوې.

له خوارزم شاه سره د مغلو د سوداګرۍ اړیکو په سبب د مغلو لپاره د جاسوسانو استولو کار ډېر اسانه شو، خو ډېره موده نه وه تیره شوې چې د خوارزم د سرحد یوه والي د بخارا د څو تنو سوداګرونه مالونه واخستل او دوی یې په دې تور ووژل چې دوی د چنګیز خان جاسوسان دي او د خوارزم د حالاتو د معلومولو لپاره را استول شویدي.

چنګیز خان خوارزم شاه ته خپل استازي واستاوه او د والي پر دې چلند یې احتجاج وکړ، خو د بخارا سوداګر د خوارزم شاه رعیت ؤ له هغوی سره د چنګیز خان خواخوږي د خوارزم شاه دا بدګوماني نوره هم زیاته کړه چې مغل کوم کار له خپلو خلکو نه نشي اخستی هغه د بخارا د سوداګرو په واسطه ترسره کوي. ځکه خو هغه په غوسه شو او د چنګیز خان د ایلچي د وژلو امر یې وکړ، ځینو امیرانو د هغه د پوهولو هڅه وکړه چې که هر څه وي د استازي وژل روا نه دي، خو سلطان

علاو الدين محمد خوارزم شاه يو خپلسرى واكمن ؤ هغه د چا خبره ونه منله استازى يى وواژه او د هغه د نورو ملگرو ږيرى يى ورووسوځولى او بيرته يى چنگيز ته واستول.

چنگيز خان دا سپكاوى ونه زغملاى شو، دا پيښه يى چى واوريده جگ شو په يوه غونډۍ وخوت او تر ديره وخته لمر ته په سجده پروت ؤ. «مغلو لمر نمانځه او دوى به لمر او سپوږمى ته د راختلو او پريوتلو پروخت سجدى كولى».

بيا يى په لوړ غږ وويل : په بى زواله اسمان كى دوه لمرونه نشته، نو پردى ځمكه هم دوه خاقان بايد نه وى!

د چنگيز خان او خوارزم شاه ترمنځ جگړه حتمى وه خو چنگيز د خوارزم تر پوځونو زيات له دى نه په ويره كى ؤ چى كه د لمر پالو پرخلاف خداى پال ټول سره يو شول نو دوى به د گوبى په دښته كى هم د پناه ځاى ونه مومى.

* * * * *

(۲)

له دى پيښو نه وړاندى د خليفه ناصر او سلطان خوارزم شاه ترمنځ زړه بداوى پيدا شوى ؤ، خوارزم شاه له خليفه نه غوښتى وو چى د بغداد په جوماتونو كى دده نوم هم په خطبه كى د خليفه له نامه سره يوځاى ياد شى. خو كله چى دا غوښتنه ونه منل شوه نو په خپله واكمنى كى يى د خليفه نوم له خطبى نه وغورځاوه او پر بغداد يى يرغل وكړ، په لاره كى پرى د اټكل پرخلاف واوره واوريده او ده هغه يو بد شگون وباله او بيرته راستون شو، له دى وروسته كه څه هم د دواړو هيوادونو ترمنځ اختلافات لرى شوى وو خو خليفه د بغداد په بريدونو د يو ځواكمن گاونډى موجوديت ځان ته يو لوى گواښ باله.

چنگيز خان له دى اختلافونونه خبر ؤ، خو د هغه دا باور نه ؤ چى د دوى د حملى په صورت كى به د بغداد اولس د بى طرفى حالت وساتلاى شى، هغه له دى نه ويريده چى كه خليفه خپل اختلافات هير كړل او د خوارزم په ملاتړ يى د جهاد اعلان وكړ نو له افريقا نه تر هندوستانه د ټولو اسلامى هيوادونو لښكر به د دوى د غوبل كولو لپاره راټول شى، ددى انديښنو په پام كى نيولو سره چنگيز-خان په قراقرم كى په پراخه پوځى تيارى بوخت شو.

له خوارزم شاه سره د اړيكو تر خرابيدو وړاندى چنگيز په دى فكر كى ؤ چى د خوارزم د هيواد له نيولو پرته دده د نړى نيولو خيال سم تعبير نه لرى.

که خوارزم شاه هغه ته پلمه په لاس نه وای ورکړی هم له څو کلونو زیات ده د یرغل انتظار نه شو کولی او د مغلو په لاس د خوارزم تباهی به څو کاله ځنډیدلی وه، د ځواکمن گاونډی نه بی پروایی او یا په کمزوری گاونډی رحم د چنگیز خان د مسلك خلاف ؤ.

له صدر اعظم سره د طاهر د لومړنی ځل لیدونه څو هفتی پخوا خلیفه ناصر ته د خوارزم شاه په لاس د چنگیز خان د استازی د وژلو خبر رسیدلی ؤ او په څو ورځو کی دغه خبر په بغداد کی ډیر مشهور شو.

طاهر چی له ښکار څخه راستون شو د خوارزم میلمستون ته ورغی.

د خوارزم سفیر عماد الملك څومره چی د طاهر د توری چلولو تراغیزی لاندی راغلی ؤ تر هغو څو چنده یی د خبرو تر اغیزی لاندی راغی، د طاهر د لوړو ارادو نه د خبریدونه وروسته یی وویل :

کاشکی په بغداد کی ستا په څیر نور څو ځوانان هم وای!

طاهر ځواب ورکړ : په بغداد کی زما په څیر ډیر ځوانان شته خو افسوس کوم چی ستاسو حکومت چی څرنگه پر خلیفه بدگومانه دی همغسی د بغداد پر اولس هم بد گومانه دی.

او د خلیفه په باب هم زه دا ویلای شم چی که خدای ج مه کړه په خوارزم څه مصیبت راغی نو هغه ته به بی طرفه پاتی کیدل ممکن نه شی، لږ تر لږه د صدر اعظم په باب زما دا باور دی چی هغه سره له دی چی د قاسم پلار دی، په سینه کی یی د یوه مسلمان زړه دی او خلیفه ته به غلطه مشوره ورنکړی.

عماد الملك وویل : ستا غوندی خوش باوره انسان باید پنځه شپږ سوه کاله پخوا پیدا شوی وای، اوس دنیا ډیره بدله شوی ده.

طاهر وویل : کیدای شی د خلیفه په باب زما رایه سهی نه وی خو د صدر اعظم په باب زه په پوره باور ویلی شم چی د خوارزم په اړه یی نیت خراب نه دی.

د عماد الملك پر شونډو یوه حقارت آمیزه موسکا وغوړیده ویی ویل : که زه د صدر اعظم په باب ستا غلط فهمی لری کړم نو بیا ؟

: تاسو به ما د ځان د اصلاح لپاره هر وخت چمتو وگوری او بیا به زما ځای د بغداد پرځای خوارزم وی.

: تاسو وعده کوی چی دغه راز به له تا سره وی؟

: زه وعده کوم!

عماد الملك جگ شو يو وړوکی صندوق يی خلاص کړ او د يوی نری څرمن ټوټه يی پورته کړه د طاهر په لاس کی يی ورکړه پر هغی دا مطلب ليکلی ؤ

د مسلمانانو خليفه د خوارزم شاه په لاس د مغلو د خاقان «تولواك» د استازی وژل يو نه بخښونکی جرم بولی او دا يقين درکوی چی که تاتاری خاقان دغه ظالم پاچا ته د څه سزا ورکولو اراده لری نو د اسلامی نړی لخوا به د هغه په ملاتړ غږ اوچت نه شی او د اسلامی نړۍ‌د روحانی پيشوا دعاگانی به د خاقان په حق کی وی.

ستاسو مخلص وحيد الدين د بهرنيو چارو وزير.

له دی مطلب نه لاندی په چينی ژبه څو حروف ليکل شوی وو طاهر په هغو گوتی کښيښودی له عماد الملك نه يی وپوښتل :

دا څه ليکل شويدی؟

عماد الملك ځواب ورکړ : دا د چنگيز خان د سفير تصديق دی، هغه ليکلی دی چی ستا خاص خدمتگار خليفه خپل همنظره کړی دی.

طاهر له لږ چورت نه وروسته وويل : ستا په گومان دغه خاص خدمتگار څوك دی؟

عماد الملك ځواب ورکړ : وحيد الدين دی نور څوك دی!

طاهر وويل : نه دا بل څوك دی، د خليفه داسی اعتمادی چی په بغداد کی چنگيز خان ته جاسوسی کوی.

عماد الملك وويل : که وحيد الدين نه وی نو بيا صدر اعظم دی.

: نه زما په گومان له صدر اعظم او وزير خارجه نه پرته کوم بل څوك دی ته دا ليك پيژنی؟

: نه زه نوم لوستی شم!

: خو پوښتنه دا ده چی د بهرنيو چارو وزير د مغلو له سفير نه ددی ليك د تصديق پرځای ولی ددغسی پيغام استولو غوښتنه نه ده کړی؟

عماد الملك ځواب ورکړ: ددی دوه سببه کيدای شی، يو دا چی له کومه وخته را په دی خوا چی د جاسوسی په تور سوداگر پانسی شوی دی زموږ حکومت له چنگيز خان سره د بغداد د تاتاری سفير د ليکونو او پيغامونو لاره تړلی ده، هغه څو ځلی قراقرم ته د تلو لپاره د لاری اجازه وغوښته خو زموږ حکومت انکار کړی دی.

اوس د چنگیز خان د ایلچي وژل کیدل د هغه د پیغام او یا دده پخپله تلو امکانات بلکل ختم کړي دي، زموږ له هیواد نه د تیریدو نه پرته هغه دوی نوری لاری لري، لومړی دا چي د اروپا او روس له لاری چین ته واوړي او له هغو دنګو غرونو نه تیر شي چي اوسیدونکو یې د مغلو وحشت او بی رحمی لیدلی ده، هغوی به کوم تاتاري او یا د هغوی پیغام وړونکی بی پوښتني ووژني، بله لاره دا ده چي دوی د سمندر له لاری هندوستان ته ولاړ شي او له هغه ځایه قراقرم ته مخه وکړي، په دی لاره به دوی له هغه دنګ غره سره مخ شي چي مرغه پر پکی نشي وهلی.

طاهر وپوښتل : دغه لیکنه ستالاس ته څه وړ درغلی؟

عماد الملك ځواب ورکړ : د خلیفه ناصر هوښیاری موږ دی ته مجبور کړو چي خبر شو، هغه ددغه خدمت لپاره یو ترکی نسبه خوارزمی غوره کړی ؤ. دغه څرمن یې د هغه د حپلی دننه ایښي وه، خو زموږ د سرحدونو څارونکی د جاسوسانو په پیژندلو کی دیر مهارت لري، د سرحد والی استازی وژلی دی او ددی لیك نقل یې پاچاته او اصل یې ماته راواستاوه.

: خلیفه پردی پیښو خبر دی؟

: ما له صدر اعظم سره ولیدل، هغه ته ما دا نه دی ویلی چي اصلی لیك ماته رارسیدلی دی، خو ما یو نقل هغه ته هم ورکړ.

: وزیر اعظم تا ته څه ځواب درکر؟

: هغه بی شمیره سوګندونه خوړل، د بهرنیو چارو وزیر ته یې کنځلی کولی زه یې په خپله مانۍ کی ایسار کړم پخپله خلیفه ته ورغی، بیرته چي راغی راته ویې ویل چي خلیفه د بهرنیو چارو وزیر غوښتی دی، د خلیفه اراده ده چي هغه محل ته ور وغواړي او ویې نیسی، له دی نه وروسته په همدی ماښام زه وزیر اعظم دویم ځلی وروغوښتم او راته ویې ویل چي د بهرنیو چارو وزیر چیرته غلی شویدی او لټون یې دوام لري.

: هغه تر اوسه پیدا شوی دی که نه؟

: نه!

: پر دی سربیره ته لا وایی چي خلیفه او صدر اعظم په دی دسیسه کی نه دی شریك؟ ماته خو داسی ښکاري چي د بهرنیو چارو وزیر یو لوری له اسلامی نړی او بلی خواته له خلیفه او صدر اعظم سره غداری کوی، دده دورکیدو سبب هم

همدغه کیدای شي.

عماد الملك وویل : کیدای شي ستا نظر سهی وي او ماسپښین مهال د خلیفه د استازي دي غوښتني چي زر تر زره له ما سره ولاړ شي    اشتباهی کړي وي، خو دا هم امکان لري چي هغه خلیفه ته ورغلی وي او خلیفه او صدر اعظم د خپلی بدنامی له ویری هغه چیرته غلی کړي وي، امکان لري ده له هغه شربتونه کوم غوړپ څښلی وي چي د څکلو نه وروسته یی څوك د خلیفه د محل د کړو وړو لارونه ژوندی نه شي راوتلی.

: که ستا دا نظر سهی وي چی ده هر څه د خلیفه او صدر اعظم په خوښه کړي وي نو دا بیا څه وړ کیدای شي چی هغه ته دی زهر ورکړي او ویی وژني؟

: د داسی مهم پلان له ناکامی وروسته خلیفه هغه د کوم نیك چلن مستحق نه گڼي.

که یی د وژلو پرځای چیرته غلی کړي وي نو معنی یی دا ده چی خلیفه او صدر اعظم ددي پیښی د برالا پلټنی نه ویریږي، زما د تسلی لپاره به یی سزا ورکوله، خو هغه چی توره په لاس جلاد لیدلی وای نو د خلیفه او یا صدر اعظم راز به یی نه ساته هر څه به یی پخپله افشا کول.

طاهر وویـل : تـه یـوازي د تصویر یـو مخ گوري، داسی ولی نـه وایی چی دا دسیسه یوازي د بهرنیو چارو د وزیر وه، او هغه د سزا له ویری چیرته غلی شوی دی؟

: زه ددي خبری له امکان نـه انکار نه کوم خو حالاتو د هری خبری د تیارو گوټونو د اړخونو په لیدو عادت کړي یو.

طاهر : ته پر ما اعتماد لري؟

عماد الملك ځواب ورکړ : پر تا د اعتماد لپاره همدا بس دی چی ته یو میړنی زلمی یی، د یوه مجاهد زوی یی، زه د داسی سړی د ایمان شهادت چی صلاح الدین ایوبی «رح» توره ورکوی په خلوص کی د شك جرئت نشم کولی.

: ستا باور دی چي چنگیز خان به پر خوارزم حمله وکړي؟

: که د وزیر خارجه دغه پیغام ور رسیدلی وای نو تر اوسه به یی حمله کړي وای.

: او که د صدر اعظم له لوري دا پیغام ور ورسیږي چی که پر خوارزم حمله وکړي د بغداد هر مسلمان به د خوارزم تر بیرغ لاندی راټولیږي نو بیا ؟

: بیا خو زما باور دی چی چنگیز خان به د اسلامی نړی په لوری د سترگو اړولو جرئت هم ونکړای شی.
: که زه د صدر اعظم نه داسی پیغام ترلاسه کړم نو ته له ما سره د خوارزم له خاوری نه د تیریدو مرسته کوی؟
:زه به د صدر اعظم هر اقدام ته د شك په سترگه گورم خو که تاسو دغسی پیغام ترلاسه کړی نو زما باور دی چی قراقرم ته ورسیږی هم ددی پیغام مفهوم به بدل نه شی.
خو ته ددی خبری څه هیله لری چی صدر اعظم به داسی پیغام هم واستوی او تا به د استازی په توگه استوی؟
دی پوښتنی طاهر د یوی شیبی لپاره وارخطا کړ، د هغه په زړه کی شك پیدا شو چی که ورته ووایی چی صدر اعظم د چنگیز خان دربار ته د ده د استولو اراده څرگنده کړی ده نو د عماد الملك بدگومانی به زیاته شی، هغه ځواب ورکړ:
زه به له صدر اعظم نه وغواړم او که هغه ځواب راکړ نو بیا به د بغداد په جامع جومات کی اعلان وکړم چی خلیفه او صدر اعظم اسلامی نړی پر چنگیز خان پلورلی، تاسو به وگوری چی زما دغه غږ به د هر ځوان او بوډا غږ شی، زه به له تانه هغه وخت لیك وغواړم چی له ماسره به د صدر اعظم لیك وی او تاته به یی درښیم.
عماد الملك ځواب ورکړ : زه د صدر اعظم د لیك د لیدو پرته تاته د اجازه لیك درکولو ته تیار یم.
طاهر جگ شو هغه ته یی لاس ورکړ ویی ویل : نه اوس نه !
زه له صدر اعظم سره د خبرو اترو نه وروسته بیا درته راځم، طاهر د عماد الملك د کور نه راووت پر سړك یی زید ولید چی را روان دی، زید په غوسه وویل : زه ستا په لټون ستړی شوم، د وزیر اعظم استازی راغلی و ته یی ورغوښتی یی، هغه ویل چی تا هر ځای ولید سمدستی یی راواستوه، عجیب بی عقل سړی ژ، ماته یی ویل چی ته خو بلکل سارایی ښکاری او چی کله ما د غیږی نیولو چلینج ورکړ په کړس کړس یی وخندل او ولاړ.
طاهر وویل : هر چاته د غیږی نیولو بلنه مه ورکوه.

* * * * *

(۳)

پنځه ورځې وروسته یو ماښام له لمانځه وروسته عبدالعزیز او عبدالملك د طاهر کورته ورغلل، طاهر په یوه کوټه کې ناست ؤ او یو کتاب یې لوست، عبدالعزیز چې کوټې ته ورننوت ویې ویل : زما گومان ؤ چې ته به د سفر په تیاری بوخت یې!

طاهر ورجگ شو، سترې مشې یې ورسره وکړل او ویې ویل : د سفر لپاره خو له پرون راسې تیاری نیسم، خو نن صدر اعظم ته خلیفه دا فرمان واوراوه چې بله ورځ د روژې میاشت پیلیږي او په روژه کې ماته سفر گران دی. ځکه خو به د اختر په سبا ماته د روانیدو اجازه راکوي.

عبدالعزیز وویل : عجیبه ده خلیفه ستا د تکلیف دومره خیال ساتی، ایا تا د چنگیز خان په نوم د هغه لیك ترلاسه کړی دی؟

طاهر ځواب ورکړ : هغه لیك د صدر اعظم سره دی ما یې متن لوستی او د خلیفه مهر مې هم پرې لیدلی دی، وزیر اعظم هغه لیك عماد الملك ته هم وربښودلی دی هغه ماته ویلی چې د رخصتیدو په ورځ به یې درته وسپارم.

عبدالملك وویل : مگر ستا د سفر د ځنډیدلو لپاره د روژې د میاشتې پلمه ماته چندان داومنه نه ښکاري، آیا تاونه ویل چې ماته په سفر کې روژه نیول گران نه دی؟

طاهر وویل : ما خو ډیر ټینگار وکړ، ما وویل چې ځوك د عربو په تبجتو ریگونو کې روژه نیولی شي د شمال ختیځ د غرونو په ساړه شمال کې به یې په سفر کې روژه ډیره اسانه وي. له دې نه پرته ددې سفر ارځښت دومره زیات دی چې معمولی زحمتونه باید پکې په پام کې ونه نیول شي خو صدر اعظم وویل چې د اختر په ورځ خلیفه د نیزی وهلو او اس ځغلولو لوبه گوري، د هغه هیله ده چې زه هم په دې لوبه کې شریك وم.

عبدالملك وویل : دا پلمه له هغې بلې نه هم زیاته نامعقوله ده، عزیزه! ته راته ووایه په داسې حال کې چې د چنگیز خان لښکرې د خوارزم په شمال ختیځ کې راغونډیږي او خلیفه د هغه گواښ ضروري بولي نو بیا د یوې میاشتې لپاره د طاهر ایسارول په څه مقصد کیدای شي؟

عبدالعزیز په خپله پراخه تنده لاس راتیر کړ ویې ویل :

د خلیفه او صدر اعظم په مصلحت پوهیدل گران دي، کیدای شي د رمضان ترپایه دې خپله اراده بدله کړي، د بوداتوب په سبب خلیفه د پریکړې حوصله له

لاسه ورکړی، د داسی لوی تموپ د وهلو لپاره هغه ته د یوه کال او یا یوی میاشتی فکر کولو فرصت دومره لویه خبره نه ده. هو زه له یوی خبری اندیښمن یم، طاهره! له تا سره نور څوك روانیږی؟

طاهر ځواب ورکړ :

ما د تاسو دوارو په اړه ورته وویل خو وزیر اعظم ونه منله هغه راته وویل چی ته له ځانه سره دری څلور تنه نوکران بیولی شی.

عبدالعزیز ځواب ورکړ : دا اندیښنه د خوارزم سفیر هم ښکاروله چی زما کوم بل ملگری هلته د خلیفه کوم بل پیغام یو نه سی. خو زه نه پوهیږم چی د خلیفه د لیك په لیدو به څنگه چنگیز خان د یوه معمولی نوکر پر خبره اعتبار کوی، له دی پرته به د احتیاط په خاطر عماد الملك د لاری تولو پهروته خبر ورکوی چی له ما نه پرته به نور تول تلاشی کوی زه هم د دوی څارنه کوم.

عبدالملك وویل : که له دوی نه کوم یوه د مغلو د سفیر کومه نخښنه هلته وراندی کړه نو بیا ؟

طاهر وویل : تاسو ددی فکر مه کوی، ما تر دی پوری بندوبست کړی دی چی د مغلو حکومت ته ترننوتلو دمخه به د دوی جامی او پایزار تول بدلیږی.

عبدالعزیز وویل :

بیا هم ته هوښیار اوسه، داسی نه شی چی د خوارزم له حدودو نه له تیریدو وروسته ته په کوم سرای کی ویده وی او چی کله سهار راپاڅی نو ملگری به دی د خلیفه له لیك سره تری تم وی، ته به دوی لټوی او دوی ؟ قراقرم ته رسیدلی وی.

طاهر تر لږ خندا په چورتونو کی دوب شو بالاخره یی وویل : ته فکر مه کوه له دوی سره به لږ تر لږه دا احساس ضرور وی چی له ما پرته بیرته نشی راتلای.

: مگر دا هم کیدای شی چی دوی ته د قراقرم اوبه او هوا له بغداد نه ښه ورولگیږی، څکه خو زید خامخا له ځانه سره بوزه.

طاهر ځواب ورکړ : زید خو زه د کور د ساتنی لپاره دلته ضروری بولم، تاسو ډاډه اوسی له دی ځایه چی له ماسره هر ډول خلك ولاړ شی هغوی به له یوه پړاو مزله وروسته د لوی وزیر یا خلیفه پرځای زما تر اغیزی لاندی وی، که د انعام هوس کوم څوك غدار کولی شی نو له هغه نه زیات انعام یی بیرته سمی لاری ته هم اړولی شی.

عبدالملك وویل : زه اوسنی د بهرنیو چارو وزیر مهلب بن داؤد یو خطرناك سړی

بولم، دوه کاله پخوا هغه په بغداد کی بلکل نا آشنا ؤ، خو په څو میاشتو کی یی دا حالت دی چی د ورځی یو ځل خامخا له خلیفه سره گوری، د وحید الدین له غلی کیدونه دمخه یی دی مرستیال ؤ، خو عجیبه دا ده چی له وحید الدین نه دده لیده کاته له خلیفه سره زیات وو.

په ځینو ملاقاتونو کی به یی د چنگیز خان استازی هم ورسره بیولی ؤ، ځکه خو دا غوره ده چی د هغه یو سړی هم ورسره بو نه زی.

طاهر وویل : زه به دا خبره په پام کی نیسم، تاسو ته معلومه ده چی مهلب بن داود له کوم ځایه راغلی دی؟

عبدالملك ځواب ورکړ : دا چاته معلومه نه ده خو داسی ویل کیږی چی بی حسابه دولت ورسره دی او خلیفه او شهزاده مستنصر ته یی ډیری گران بیه تحفی ورکړی دی.

*****

(٤)

صفیه سهار وختی له درانه خوبه راویښه شوه، په کوټه کی یی په خپه روښنایی کی یوی او بلی خواته وکتل غمجنه غوندی شوه او بیرته یی سترگی پټی کړی، نن یی بیا یو خوږ خوب لیدلی ؤ، نن بیا په ډیره په زړه پوری فضا کی الوتلی وه، هلته چی آزاد مرغان د مینی بدلی وایی دی په چوپ کتلو کی چاته زاری کړی وی او هغه ددی د زاریو په ځواب کی ویلی وو: صفیی! ساده کیږه مه زموږ د ژوند لاری سره بیلی دی.

د صفیی پر شونډو غمجنه موسکا وځلیده ویی ویل : زما سارایی ! ته ډیر ضدی یی!

هغی دویم ځلی سترگی وغړولی جگه شوه بلی کوټی ته ولاړه اودس یی وکړ او په لمانځه ودریده، د لمانځه نه وروسته یی لاس په دعا اوچت کړل او ؛ پخوا په شان یی د دعا وروستی الفاظ دا وو: زما الله! هغه له هر آفت نه په امان کړه!

د دعا له پای نه وروسته صفیه جگه شوه خپلی کوټی ته ولاړه او کړکی یی پرانستله بڼ ته یی وکتل. بیا یی له ځانه سره یوه خوږه سندره زمزمه کوله او بل لوری ته د یوی هندارې مخی ته ودریدله، ددی غږ چی د پسرلی د موسم د مرغانو له غارونه زیات خوږ ؤ، ورو ورو جگیده.

خو لږ وروسته یی په هنداره کی کوم بل څوك ولیدل ناڅاپه چوپه شوه، په بیره

یی شاته راوکتل قاسم ته یی وکتل ویی ویل : قاسمه!
قاسم په موسکا وویل : صفیی ته ولی چوپه شوی ستا غږ ...!!
صفیی په ترخې لهجې د هغه خبره ورغوڅه کړه ویې ویل:
زما غږ دیر ښه دی خو ته د غلو په څیر زما کوټی ته د راتلو هیڅ حق نه لری...
ورځه که نه سکینی ته ناری کوم.
قاسم وویل : صفیی! ما څه گناه کړی ده، ستا له مانه ولی دومره کرکه ده! که ستا دا سندری زما لپاره نه دی نو د چا لپاره دی؟
صفیی! ما دومره مه رټه! ته پوهیږی چی زه له تاسره څومره مینه لرم!
صفیه له غوسی نه تکه سره شوه ویې ویل : قاسمه! ولاړ شه تر اوسه دی پر ماغزو د شپې د شرابو اغیزه شته.
قاسم خپله غوسه راقابو کړه ویی ویل : صفیی! تاته معلومه ده چی ما شراب پریښی دی، که بیا هم زما کوم بد عادت وی هم د ژوند په اوږده سفر کی دواړه د یوی کښتی سپاره یو، ځکه خو ماته دومره د بی قدری په نظر کتل پرېږده، دا به د دواړو په خیر وی.
صفیه په تنگ شوه ځواب یی ورکړ : قاسمه! ورځه!
زه ستا په کښتی کی د سپریدو پر ځای د سیند په گرداب کی ډوبیدل غوره گنم.
قاسم خجالت شو ویی ویل : دومره سره وضعه ښه نه ده، په ما کی به په زرگونو کمزوری وی خو زه ستا یم، زه ستا د یوی موسکا لپاره له مرگ سره لوبیدلی شم، په اور کی ورغورځیدای شم، له غرونو سره جنگیدای شم، زه ستا لپاره...!
صفیی وویل : هو! هو! ولی ودریدی؟ ووایه زه ستا لپاره د آسمان ستوری راشکولی شم، د سمندر په تل کی غوټی خوړلی او غمی راویستلی شم، د لویو لویو ظالمو پاچاهانو له سرونو تاج اخستلای شم، له تندرونو سره دغری وهلی شم، له توپانونو سره لوبیدلی شم، خو یو انسان کیدای نه شم، قاسمه دا بدگومانی کله درته پیدا شوی چی ته شاعر هم یی؟
قاسم پر خپله بی عزتی د قابو کیدو هڅه وکړه ویی ویل :
صفیی ! زما احساسات مه توهینوه، زه شاعر نه یم.
: ستا احساسات! هغه خو ددی وړهم نه دی چی توهین کړای شی، ته که دلته

په تم کیدو تینګار کوی نو زه درنه ځم، خو که په ما پسی راغلی نو نیغه کاکا ته ورځم!

صفیی دا وویل قاسم ته یی په کرکه او نفرت وکتل له کوټی نه ووتله د محل له باغ نه یی څو ګلان وشکول او بیا د ګنړو ونو منځ ته ولاړه، له ښاخونو نه د شبنم څاڅکی راتوئیدل خو دی یی احساس نه کاوه. دا هغه ځای ؤ چی له طاهر سره یی لومړی ځل یوازی دیدن شوی ؤ او له کومی ورځی راسی چی طاهر د خلیفه له پیغام سره د قراقرم په لوری رخصت شوی ؤ، د بڼ دی ګوښی ته ددی پام ور اوښتی ؤ، ددغو ونو پاڼی او ګلان دی ته د نورو ونو نه بدل او په زړه پوری ښکاریدل.

نن د قاسم سره د خبرو اترونه وروسته پر زړه له درانه بوج سره راغلی وه، د لمر لومړنی وړانګی د ونو د پاڼو نه په جل بل ځلیدلی او ځمکی ته رسیدلی، صفیی آسمان ته وکتل او په ډیره غمجنه لهجه یی وویل:

طاهره! تاته ښایی دا معلومه هم نه وی چی زه څوك یم او ته زما لپاره څوك جوړ شوی یی؟

# د خلیفه استازی

د خوارزم له بریدونو نه چې تیر شول طاهر او ملګري یې د مغلو د هیواد په برید کې په سرحدي پهره کې لږ ایسار کړل، د پهرې مشر د دوی د آرام او راحت هر ممکن کوشش کاوه، بیا هم طاهر او دده ملګرو داسې ګڼله چې دوی یې په یوه خیمه کې تر څارنې لاندې نیولي دي، دوی ته په شاوخوا غونډیو کې د ګرځیدو اجازه نه وه، طاهر به چې په ماته ګوډه تاتاري ژبه له کوم سپاهي نه څه پوښتنه کوله نو ځواب یې نه ورکاوه. د پهرې له افسر نه پرته له دوی سره چا د خبرو حق نه درلود، د مغلو جاسوس به د سیوري په شان له دوی سره یو ځای ګرځیده، طاهر افسر ته څو ځلې وویل چې هغه د چنګیز خان په نامه د بغداد د خلیفه مهم پیغام راوړي دی خو هر ځل یې دا ځواب اوریده چې : لوی خان ته پیغام استول شوی دی چې هدایت وکړي تاسو به ور واستوو.

نژدې درې اونۍ وروسته یو مغل افسر له څو سپاهیانو سره دې پهرې ته ورغلل هغوی له طاهر نه د تکلیفونو بخښنه وغوښتله او ورته وېې ویل :

لوی خان تاسو ته په حضور د مشرف کیدو وېاړ درکوي.

له دغه افسر سره څو هفتې په سختو غرنیو لارو له مزله وروسته یوه ورځ طاهر او دده ملګري د قراقرم هغې درې ته ننوتل چې د سترګو تر څاره د مغلو د لښکر خیمې پکې دریدلې وې، د درې څلورو خواو ته دنګ غرونه ولاړ وو.

وزیر اعظم له بغداد نه له طاهر سره درې تنه استولي وو، یو تن کمال نومیده د دوهم نوم ابو اسحق و او دریم چې عراقي ؤ جمیل نومیده، درې واړو د صدر اعظم له هدایت سره سم په لاره او سفر کې د طاهر ښه درناوی او اطاعت کاوه، په لاره کې څو ځلې د هغوی تلاشي وشوه ځکه خو طاهر په دې داډه شو چې که په دوی کې کوم یو د خلیفه او یا وزیر اعظم ځانګړي پیغام راوړي وي هم د خپل ریښتینتوب لپاره به څه نخښه او دلیل وړاندې نکړای شي او چنګیز خان به داډه نکړای شي، خو کله چې د مغلو هیواد ته داخل شول طاهر په دې خبره پریشانه

شو چې ابو اسحق په تاتاري ژبه ښه پوهیږي، او هغه د چنګیز خان تر هستوګنځۍ پورې تر رسیدولتاتاري سردار سره ښه بلد شوی ؤ، په مزله کې طاهر څو ځله ابو اسحق له تاتاري سردار سره له نور کاروان نه وړاندې یا وروسته په راز دارانه خبرو اترو او روغبړ ولید.

د خیمو ښار ته له رسیدلو سره سم چې چنګیز خان د نړۍ د نیولو لپاره په تیارۍ بوخت ؤ، مغل سردار د یوې لویې خیمې مخې ته ودرید له اس نه پلې شو او طاهر ته یې وویل : تاسو په دې خیمه کې استراحت وکړئ زه به لوی خان خبر کړم.

له دې نه وروسته یې څو سپاهیانو ته چې له خیمې نه بهر ولاړ وو او د دوی لاره یې څارله اشاره وکړه، هغوی راوړاندې شول د طاهر او د هغه د ملګرو د اسونو جلبونه یې ونیول، دوی هم له اسونو نه پلې شول او د یوه تن په لارښونه خیمې ته ننوتل.

خیمه په بخملي پردو او ایراني قالینو ښکلې شوې وه طاهر او ملګرو یې د مازدیګر لمنځونه ادا کړل، له دعا نه وروسته طاهر له ابو اسحق نه وپوښتل : تا په لاره کې له هغه مغل سردار سره څه خبرې کولې؟

ابو اسحق په یوه معنی داره موسکا خپلو ملګرو ته وکتل او ویې ویل : هغه ماته د چنګیز خان او ما هغه ته د خپل خلیفه په باب خبرې کولې.

: تا په ټوله لاره له مانه دا خبره ولې پټوله چې ته په تاتاري ژبه پوهیږې؟

: که تا له مانه پوښتلي وای ما به ځواب درکړی ؤ.

: صدر اعظم ته معلومه ده چې ته په تاتاري ژبه پوهیږې؟

اسحق لږ وارخطا شو ویې ویل : صدر اعظم د ما غوندې معمولي خلکو د پیژندنې زحمت کله ګالي؟

که ستا دلته زما په خبرو څه اعتراض وي نو زه به هیڅکله هم له تا سره ونه ګرځیږم.

: زه ستا پر خبرو اعتراض نه لرم خو که څوك له تانه د بغداد په اړه څه پوښتنه وکړي نو ښه فکر کوه او بیا ځواب ورکوه.

ابو اسحق ځواب ورکړ : زه خپله ذمه واري احساسوم. لږ څند وروسته تاتاري سردار د دوی خیمې ته ورننوت او طاهر ته یې وویل :

لوی خان به سبا سهار ته له تاسو سره ګوري، ما ستاسو د خوراك، څښاك

بندوبست یوه ایرانی نوکر ته سپارلی هغه ستاسو مسلمان ورور دی تاسو ته به هیڅ تکلیف نه وي.

کله چی طاهر له مغل سردار سره خبری کولی ابو اسحق له خیمی نه بهر ووت او کله چی تاتاری سردار هم له خیمی نه بهر ته ووت طاهر جگ شو او د خیمی نه یی بهر ته وکتل، ابو اسحق څو گامه لری له تاتاری سردار سره خبری کولی.

ماښام مهال د طاهر دری واړه ملگری د چکر په پلمه بهر ته ووتل او هغه وخت بیرته راستانه شول چی طاهر د ماسختن لمونځ ادا کړی ؤ او د ویده کیدو په تکل ؤ.

طاهر چی دوی ښه ورتل نو ابو اسحق وویل : زه درنه بخښنه غواړم، بیا به داسی غلطی نه کوو، دغه مغل ډیر وحشیان دی، موږ د چکر لپاره ووتو د یوی خیمی ترڅنگ تیریدو چی څو تنو مغلو سپاهیانو را ایسار کړو او په زور یی سرونه راباندی وخریل کوپړی یی راباندی توری کړی، د خدای ج شکر دی چی ته راسره نه وی، ابو اسحق دا وویل او بیا یی پگړی له سره لری کړه او زیاته یی کړه:

وگوره موږ یی په څه حال اخته کړی یو!

د ابو اسحق او د هغه د ملگرو سرونه یی ریښتیا خریلی وو، او د ویښتانو پرځای تور غوری پری ځلیدل.

طاهر وویل : دغه خلك ډیر احمق دی، زه به چنگیز خان ته د دوی پر دی سلوك احتجاج کوم.

ابو اسحق وویل : دلته سر خریل کومه خبره نه ده یوه سپاهی ویل چی د سر خریل هم د میلمه پالنی په دود کی شامل دی، د خدای ج شکر دی چی دوی د خپلو خنجرونو د تیغ د تیره توب ازمویلو لپاره زموږ ویښتان غوره کړل، که نه نو د یوه تاتاری لاس دومره شاه رگ ته نژدی له خطره خالی نه وی.

*****

(۲)

سبا سهار طاهر د چنگیز خان له استازی سره شاهی محل ته روان شو، د شاهی محل په دره کی په یوه مناسب لوړ ځای څو ښکلی او شانداری خیمی وی، د غونډی پر لوری تللی لاری یوی او بلی خوا ته د انسانی کوپړیو څلی دریدلی وو او د لاری په اوږدو کی دواړو خواو ته کتار کوپړی ایښی وی. د طاهر له ښی نه

مغلی سردار وپوهیده ورته ویی ویل :

دا یوازی د لویو لویو سردارانو ککری دی، دوی یی د خپل حیثیت په مناسبت دلته ایښی دی، د ټیټی طبقی ککری مو دلته نه دی راوړی، پاس به تاسو د لوی خان د خیمی په مخکی د هغو واکمنو او پوځی سردارانو د ککرو انبار ووینی چی زموږ د عظمت په وړاندی یی له سرټیټولو نه ډډه کوله، د لوړو کورنیو د ښځو او ځونو کوپړیٔ چی د لوی خان او شهزاده گانو له خدمت نه یی سرغړاوه د هغوی د ککر یو وړوکی منار د ملکی د خیمی مخی ته دی.

په غونډۍ چی وختل مغل سردار یوی بلی غونډۍ ته اشاره وکړه ویی ویل : هلته وگوری دلوی خان شانداره مانی هلته جوړیږی.

په وړاندی غرونو کی ډیره عالی ډبره لیږه ده، ما اوریدلی دی چی د بخارا، سمرقند، او بغداد په مانیو کی ډیری غوره سپینی او سری ډبری کاریدلی دی.

طاهر ځواب ورکړ : هغه ډبری پر دی سربیره چی ښکلی دی ډیری کلکی هم دی، ستاسو لوی خان ولی د کوپړیو مانی نه جوړوی؟

: که د انسانی کوپړیونه د خښتو کار اخستل کیدای شوای نو موږ ته دا مشکله نه وه، په شمال ختیځ او شمال لویدیځ کی په ډیرو ښارونو کی د کوپړیو ډیر انبارونه بی کاره پراته دی.

د غونډۍ په څوکه په یوه پراخه میدان قیمتی غالی غوړیدلی وه، او د میدان دری لوریو ته د خیمو کتارونه وو ځای پر ځای ایستلی توری پهره داران ولاړ وو، استازی د یوی خیمی په مخکی ودرید او طاهر یی بهر پریښود پخپله خیمی ته ننوت، له لږ ځنډ وروسته هغه بیرته راووت او طاهر یی دننه ورسره بوت. له دوو پراخو کوټونه چی تیر شول طاهر او همغه استازی یوی وړوکی بلی کوټی ته ننوتل، په کوټه کی یوی خواته نژدی څلور لویشتی لوړه چوتره وه چی قیمتی غالی پری غوړیدلی وه، د چوتری نه لاندی کتار څو تاجونه ایښی وو.

په کوټه کی یو سړی چی له چینی او پگړی نه مسلمان ښکاریده ولاړ ؤ، هغه راوړاندی شو طاهر ته یی د ستړی مشی لپاره لاس وراوږد کړ او ویی ویل : زه د مغلو د لوی خان په دربار کی خپل یوه مسلمان ورور ته ښه راغلاست وایم، طاهر چی هغه ته لاس ورکړ په بدن یی لرزه احساس کړه، او له لږ دوه زړه توب وروسته یی وویل : ته دلته څه کوی؟

: زه دلوی خان په دربارکی دعربی او فارسی ترجمان یم.

: ته تر دی ځایه څه ډول راورسیدی؟
: لوی خاقان جوهر پیژندونکی هم دی او سخی هم، زه هم د سوداګرو له یوی قافلی سره دلته راغلم، د لوی خاقان یوه ترجمان ته اړتیا وه، هغه زه څو میاشتی له ځان سره ایسار کړم، خو له هغه وروسته د دوی قدردانی زه د همدی ځای کرم او د تل لپاره یی واخستلم، لوی خاقان د تشریف راوړو په حال کی دی زه خو خبری غواړم درته وښیم. هغه زیاته چاپلوسی نه خوښوی خو بی تکلفی او بی پروایی هیڅکله نه بخښی، که ته ورسره په تاتاری ژبه پخپله خبری وکړی ډیر پری خوښیږی که ته په تاتاری نه پوهیږی نو د هغه چینایی ژبه هم زده ده، له دی دوو ژبو وروسته لوی خان فارسی غوره بولی، هغه د فارسی څو جملی زده کړی هم دی خو له عربی ژبی نه یی وحشت دی.
طاهر ځواب ورکړ : ستا د مشوری نه مننه، خو زه په تاتاری ژبه نه پوهیږم، په فارسی پوهیږم خو زه ویریږم چی هغه ستا پر ترجمانی برسیره پخپله هوښیاری زما د خبرو په مطلب غلط ونه پوهیږی، که تا ته د عربی ژباړه ستونزی لری بیله خبره ده که نه نو زه د خپل مطلب د پوهولو لپاره عربی غوره او مناسبه ګنم، که دی په ترکی پوهیږی نو زه په ترکی ژبه هم ښه پوهیږم.
: ګوره دا غضب ونه کړی! له کومی ورځی راسی چی خوارزم شاه د لوی خان استازی وژلی دی د هغه له ترکی ژبی نه سخته کرکه پیدا شویده.
هو! د خبرو پر وخت دا خیال ساته چی ستا غږ د لوی خان له آواز نه اوچت نه شی، ته ډیر بختور یی چی لوی خان په داسی ځانګړی ځای کی د ملاقات شرف دروبخښلو، په داسی تخلیه کی د هغه مبارك لاس له دربار نه زیات له فیضه ډك وی.
طاهر وویل : زه ستا له نیکو مشورو نه یو ځل بیا مننه کوم خو ته زما په باب بدګومانی مه کوه، زه دلته د خیټی په خاطر نه یم راغلی.

*****

(۳)

ترجمان د خپل خجالت د لری کولو په خاطر څه ویل غوښتل خو د چوتری له شانه وړه پرده اوچته شوه هغه ورو طاهر ته وویل : لوی خان تشریف راوړی!
یوه شیبه وروسته پر چوتره طاهر هغه جابر او ظالم انسان لیده چی د وحشت او بربریت افسانی یی په ختیځ او لویدیځ کی مشهوری شوی وی. ترجمان دواړه

لاسونه پرسینه نیولی وو او د رکوع په حالت ولاړ ؤ، چنگیز خان په غوسه طاهر ته وکتل او په چوتره کښیناست ترجمان هم نیغ ودرید، د هغه په کتو کی پړی خفگان له ورایه ښکاریده چی طاهر ولی دده تقلید ونه کړ، طاهر هماغسی چنگیز-خان ته کتل او دا داسی گستاخی وه چی په دک دربار کی ښایی چنگیز خان نه وای زغملی خو په دی گوښه کی یی ترجمان له زغملونه ناتوانه ؤ بالاخره یی ورو وویل : سترگی ښکته واچوه! خو پر طاهر دی گواښ هیڅ اثر ونه کړ، څو شیبی له چوپتیا نه وروسته د بغداد د خلیفه د استازی او د چنگیز خان خبری داسی پیل شوی:

ترجمان چنگیز خان ته په خطاب کی : د بغداد د خلیفه استازی د لوی تولواك او د تاتار خاقان اعظم په دربار کی چی د هغه د لورینی او مهربانی لاس دوستانو ته د رحمت سبب دی او توره یی د دښمنانو پر سرونو د تندر په څیر راپریوزی په ډیر ادب او احترام سلام وړاندی کوی.

چنگیز خان : زه د بغداد د استازی په لیدو خوښ شوم، ده ته داد ورکړه چی دلته به یی سر ته هیڅ خطر نه وی.

ترجمان : طاهر ته په عربی ژبه په خطاب کی : لوی تولواك ستاسو په راتگ خپله خوښی څرگندوی او دا هم فرمایی چی دلته ستاسو ویره بی ځایه ده، له تاسو سره به شاهانه مهربانی وشی او بیرته به مو خوښ واستوو.

طاهر : زه د انعامونو په هیله دلته نه یم راغلی، که د تاتار پاچا دومره مهربانه وی نو ماته دی د خلیفه د لیك له وړاندی کولو نه وروسته د اسلام د تبلیغ فرصت راکړی.

دا به زما لپاره لوی انعام وی.

ترجمان : د خلیفه استازی د لوی خان د مهربانی مننه کوی او د بغداد د خلیفه د لیك وړاندی کولو اجازه غواړی.

چنگیز خان : اجازه ده.

ترجمان : لوی خاقان حکم درته کوی چی د خلیفه لیك وړاندی کړه!

طاهر ور وړاندی شو په وریښمین توکر پیچلی لیك یی وړاندی کړ، چنگیز خان هغه پرانیست او ترجمان ته یی ورکړ او د اورولو امر یی ورته وکړ په عربی ژبه د لیك لنډ مضمون داسی ؤ:

«د تاتاریانو پاچا چنگیز خان باید وپوهیږی چی پر موږ د خدای ج او د هغه د

رسول صلی الله علیه وسلم له لوري د اسلامي نړۍ د ټولو مسلمانانو د عزت، آبرو او آزادي دفاع فرض شوی ده، د خوارزم له پاچا سره زموږ څه اختلافات شته، خو پر اسلامي نړۍ له بهر نه د کومې حملې او ګواښ په خاطر موږ نه يوازې د خوارزم شاه په ملاتړ مجبور يو بلکې د هغه تر بيرغ لاندې به د يوه معمولي سپاهي په څير جګړه د ځان لپاره نيکمرغي بولو، که دا رښتيا ده چې د تاتار پاچا د خوارزم پر سرحدونو پوځونه راټولوي نو موږ ګواښ کوو چې د خوارزم پر خلاف د جګړې اعلان به د ټولې اسلامي نړۍ پرخلاف د جګړې اعلان وبلل شي، ددې ليك په ځواب کې موږ د مغلو له پاچا نه دا اوريدل غواړو چې دوی به په خوارزم حمله نه کوي.

د مسلمانانو د خليفه ابو العباس احمد ناصر الدين لخوا.

ترجمان د څه ځانګړي تغير او تبديل پرته ليك په تاتاري ژبه وژباړه، طاهر حيران ؤ چې د چنګيز خان تندی معمولي تريو نه شو، هغه په پوره اطمينان پر خپل ځای ناست ؤ او په معنی داره موسکا يې طاهر ته کتل.

د هغې په سترګو کې دا لوستل کېدل چې ده ته دغه ليك له يوې په زړه پورې ټوکې پرته هيڅ اهميت نه لري.

چنګيز خان : خپل خليفه ته زموږ له لوري دا پيغام ورسوه چې موږ له اسلامي نړۍ سره، د دښمنۍ اراده نه لرو، خوارزم شاه له موږ سره ډير زياتی کړی دی، بيا هم موږ پر هغه د تيري او حملې اراده نه لرو.

ژباړن : تاسو خليفه ته د خاقان اعظم لخوا دا پيغام ورسوئ چې ستا په سپارښت خاقان اعظم د خوارزم شاه تيروتنه بخښلې او پر اسلامي نړۍ له حملې نه ډډه کوي.

طاهر : زه به دا پيغام خليفه ته ورسوم، له دې نه پرته بايد عرض وکړم چې د خليفه ليك د بغداد د اولس د احساساتو ترجمان دی ستا په اړه دا مشهوره ده چې په زړه کې دې د خپل پوځي ځواك د ښکارولو اراده پر هرې وعدې او تعهد برې مومي، خو که تاسو پر خپلې دې وعدې پابندي ونه کړه او پر خوارزم مو حمله وکړه نو ټول بغداد او له ختيځه تر لويديځه ټوله اسلامي نړۍ به د سارايي توپان په څير ستا سو په مخکې راپورته کيږي.

ترجمان : د خليفه استازي په ډير ادب او درناوي عرض کوي چې د اعليحضرت دغه پيغام به خليفه ته اوروي، ستا دا وعده د اسلامي نړۍ د تسلي

لپاره کافی ده، خو که تاسو پر خوارزم حمله وکړه نو د بغداد او نورو اسلامی هیوادونو خلك به خپل حکومتونه د خوارزم پر ملاتړ مجبور کړی او هغوی ټول به د مغلو د لښکر د سیلاب په مخ کی له دردناکی تباهی سره مخ شی.

چنگیز خان : موږ چی چاته دوست ووایو، بیا د هغوی له لوری بی اعتمادی نه خوښوو.

ترجمان طاهر ته وکتل ویی ویل : لوی خان پردی بی اعتمادی ښکاره‌لو سخت خفه شو، ځکه خو مهربانی وکړه چوپ شه.

طاهر : ډیر ښه! اوس زه د لوی خان په مخکی د تبلیغ اجازه غواړم.

ترجمان : په دوه زړه توب، د خلیفه استازی د تاتار د اولس د مذهبی عقایدو نه زیات اغیزمن دی، او هغه ددی اجازه غواړی چی د اسلام په اړه څه ووایی.

چنگیز خان :ده ته زموږ لخوا ووایه چی موږ له وفادارو مسلمانانو څخه کرکه نه کوو.

ترجمان : طاهر ته په خطاب کی : لوی خان ډیر مصروف دی او تاته د رخصت اجازه درکوی او دا هم فرمایی چی له وفادارو مسلمانانو سره دښمنی نه لری.

طاهر پریشانه شو ترجمان ته یی وکتل او ویی ویل : که هغه اوس مصروف وی ماته دی بل وخت د تبلیغ موکه راکړی.

چنگیز خان وپوښتل : د خلیفه استازی څه غواړی؟

ترجمان وویل : دی د جناب عالی مننه کوی او عرض کوی چی که تاسو په څه خبره خفه شوی یاست بخښنه غواړم.

چنگیز خان وویل : زه افسوس کوم چی مصروفیت می نور د ناستی اجازه نه راکوی که څه هم د خلیفه استازی ډیر په زړه پوری سړی ښکاریږی، له ده نه وپوښته چی کله روانیږی؟

ترجمان طاهر ته په خطاب کی وویل : خان اعظم فرمایی چی موږ زیات مصروف یو ځکه خو د بیا لیدو امکان نشته د یخنی موسم راروان دی غوره دا ده چی ته زر تر زره بغداد ته روان شه، دلته ډیر مسلمان علما شته چی موږ ته د اسلام په اړه معلومات راکوی.

چنگیز خان د شا کوټی ته ولاړ.

* * * * *

(٤)

له خیمې نه بهر د چنګیز خان څو زامن او څو تنه مغل سرداران په یوه قالینه لمر ته ناست وو پخپلو کې سره ګړېدل، د یوه ځوان په پوښتنه ترجمان له طاهر سره معرفي کړل، هغوی طاهر له خان سره کښیناوه او د بغداد په باب یې تري پوښتني پیل کړې، طاهر د ځینو پوښتنو ځوابونه ورکړل او چې کله هغوی د بغداد د پوځ او د کلاګانو د ځواکمنې په اړه وپوښتل ده ورته وویل چې زه ددې پوښتنو له ځوابونو نه ناتوانه یم.

د چنګیز خان یوه زوی وویل : تاته لکه چې بدګوماني پیدا شوه موږ دغه پوښتني په څه بد نیت نه دي کړې، له بغداد سره زموږ اړیکي دوستانه دي. او موږ د خپلو دوستانو په اړه ضروري معلومات خپل فرض ګڼو، دا هم باید درته ووایو چې له بهرني نړۍ نه زموږ معلومات لږ نه دي دا وګورې!

د چنګیز خان زوی له جیبه یو دسمال راوایست او د طاهر په مخکې یې وغوړاوه او ویې ویل : ښایي تا د بغداد تر دې بشپړه نقشه پخوا هیڅ نه وي لیدلې.

پر دسمال نقشه واقعاً دومره بشپړه وه چې طاهر په حیرانۍ کې ډوب شو.

یوه مغلي سردار طاهر ته په معنی داره موسکا وکتل ویې ویل : اوس ته له موږ سره په بې تکلفي خبرې کولی شې، طاهر لا نقشې ته کتل چې یو خدمتګار راغی په تاتاري ژبه یې څه وویل او دغه خلك ټول جګ شول د خیمې په لوری روان شول، طاهر چې کله دسمال بیرته ورکاوه د چنګیز خان زوی وویل : که دا نقشه ستا خوښه شوې وي درسره وايي خله له ما سره نوري هم شته.

طاهر ځواب ورکړ : نه! د بغداد نقشه زما پر زړه لیك ده.

کله چې دغه خلك یوې خیمې ته ننوتل ترجمان طاهر ته وویل : ته هم غضب کوې! ددې سړي په زړه کې چې د ککرو منارونه دروي د اسلام لپاره ځای له کومه شي؟

طاهر ځواب ورکړ : زه دده په بې پروایي افسوس نه کوم، خو پر دې خفه یم چې ما خپله ذمه واري پوره نکړای شوه.

ترجمان وویل : تاسو زما احسان په یاد ولرئ، چې لوی خان ته مې ستا د ډیرو ترخو الفاظو تریخوالی وررونه ښود.

طاهر ټکان وخوړ ویې ویل : ستا مطلب دا دی چې تا زما د خبرو مفهوم بدل کړی دی؟

ترجمان د یوې منافقانه موسکا سره ځواب ورکړ : نه! ما ستا ځینې خیالونه په مهذبه طریقه څرگند کړل.

طاهر وویل : له مهذبې طریقې نه ستا مطلب د چاپلوسانه طریقې څخه دی؟

ترجمان ځواب ورکړ : د مهذبې طریقې څخه مطلب هغه لاره ده چې اوس یې په ډیکه له درباره راونه ایستلو ستا سره یې ښایې څه رعایت کړی وای خو پر ما به یې خامخا غوسه سړوله.

طاهر وویل : کله چې ما ویل چې د مسلمانانو پر یوه حکومت به د تاتاریانو پر حمله د ټولې نړۍ مسلمانان متحد شی، د چنگیز خان موسکا دا ثابتوله چې یا هغه پر خپل پوځې ځواك زیات ویاړی او یا زما خبرې هسې تش گواښونه گڼی.

ترجمان وویل : لوی خان د مرگ په دروازه ولاړ هم د موسکا همت لری، پردې علاوه هغه پوهیږی چې د اولسونو د برخلیك پریکړې پر الفاظو نه بلکې په عمل کیږی، که زه ستا پرځای وای بیرته به بغداد ته تلم او د مغلو د پوځې ځواك په اړه به می د خلیفه غلط فهمی لرې کول خپله ذمه واری بلله، تاسو تر اوسه هیڅ نه دی لیدلی تاسو له ما سره راځئ!

طاهر له ترجمان سره د غونډۍ بلې ډډې ته ولاړ هغه لورې ته هم د غونډۍ نه لاندې په دره کې وړې وړې زیاتې خیمې دریدلې وې، ترجمان یو ځای ودرید هلته ودریدلیو خیمو ته یې اشاره وکړه ویې ویل : ته نه پوهیږی چې د غرونو دغه لړی تر کومه ځایه رسیدلی ده، او ماته دا هم نه ده معلومه چې د تاتاریانو پر پوځ څومره نورې دغسې درې ډکې دی زه دا هم نشم ویلی چې مغل به پر خوارزم حمله وکړی که نه، یوازې دومره پوهیږم که لوی خان له خوارزمیانو نه د بدل اخستلو پریکړه وکړه نو د نړۍ هیڅ قوت یې پریکړه نشی وربدلولی، او که د ټولې اسلامی نړۍ پوځونه هم د تاتاریانو مخې ته راووزی هم د دوی د لښکرو سیلاب به یې خاشاکو په څیر ورسره په مخه کړی.

هغه غونډۍ به د ریگونو یو بند ثابتې شی ځکه خو که ستا له بغداد سره خواخوږی وی نو خلیفه ته له داسې سړی سره د ډغرو مشوره مه ورکوه چې پر خپلو غلیمانو د خدایی قهر په څیر رانازلیږی.

طاهر غوسه شو ویې ویل : ته له ضرورت نه زیات د مغلو د نعمت حق ادا کوی، ماته د دی ټولو لارو معلومات دی چې چنگیز خان یې د خپلو حریفانو ویرولو لپاره کاروی.

زه دا منم چې د اختلاف په سبب اسلامي نړۍ ډېره کمزورې شوېده، خو پردې کمزورۍ برسېره موږ کلونه کلونه د نصرانیانو لویو لویو په وسلو سنبال پوځونو ته ماته ورکړې ده، د چنګیز خان لښکرې له هغوی نه زیاتې نه دي، او نه د خوارزم او بغداد پوځونه د مصر او شام له پوځ نه لږ دي. د لویدیځ د سترو په وسلو سنبال لښکرو د یرغل مقابلې ته د شام، فلسطین، او مصر نه تر پنځوس زره تنو زیات لښکرونه دي ور وتلي، خو د تاتاریانو مقابلې ته به د بغداد درې لکه او د خوارزم څلور لکه تنه لښکر د جګړې ډګر ته راوزي، که تا زه د خلیفه خواخوږی بللی یم او له تاتاریانو نه د ویرې مشوره راکوې نو زه تاته د چنګیز د وفادار په توګه مشوره درکوم چې د اسلام د دفاعي ځواك په اړه دده غلط فهمي لرې کړه.

ترجمان ځواب ورکړ : چنګیز خان د ځان کم ګڼلو د احساس له خاوندانو څخه نه دی، خو د بغداد خلیفه د ځان کم ګڼلو احساس ښکاره کړېدی، له خلیفه سره نه یوازې دا احساس دی چې خوارزم شاه به د چنګیز خان د یرغل تاب رانه وړی بلکې د هغه دا باور هم دی چې خلیفه به یې هیڅ مرسته ونه کړای شي، که د هغه د بغداد او خوارزم پر ځواك اعتماد وای، نو چنګیز خان ته به یې ستا په لاس دا پیغام نه را استاوه چې پر خوارزم حمله ونه کړې، یو ځواکمن انسان هیڅکله هم خپل حریف ته نه وایي چې پر ما حمله مه کوه که نه نو نیتجه به یې درته ښه نه وي، هغه پردې داده وي چې د وخت په راتلو به د لوټي ځواب په تیږه ورکوي.

طاهر وویل : په دې پیغام کې د خلیفه هدف دا ؤ چې د خوارزم شاه او بغداد د اولس دا بدګوماني لرې شي چې عباسي خلافت د خوارزم شاه پرخلاف له مغلو سره څه معامله کوي.

ترجمان یو ځل بیا په منافقانه موسکا طاهر ته وکتل ویې ویل : د خوارزم شاه په اړه نشم ویلی چې بدګوماني به یې لرې شوې وي که نه خو تا د لوی خان یوه بدګوماني لرې کړه، راځه زه دې خیمې ته ورسوم.

طاهر په بیړه ترې وپوښتل : ته لومړی دا ووایه چې ما کومه بدګوماني لرې کړه؟

ترجمان وویل : تاته به راتلونکې حالات د دې ځواب درکړي.

: نه نه ته به یې راته وایې!

: نه تا وویل چې زه د چنګیز خان وفادار یم، او زما د وفادارۍ غوښتنه دا ده چې دا راز ښکاره نه کړم.

ترجمان دا وویل او بیا یی یوی او بلی خوا ته وکتل او ویی ویل :

ستا ځینی خبری ماته له زغم نه بهر وی خو نه پوهیږم ولی له تا سره د خواخوږی احساس کوم، زما مشوره تاسو ته دا ده چی له کوم بل چا سره د بلدیدو هڅه مه کوه، او چی څومره زر کیدای شی له دی ځایه روان شه، نور له مانه څه پوښتنه مه کوه، راځه!

# یو راز

په بیرته راستنیدو کی طاهر او د هغه ملګری د مغلو د سرحد نه له تیریدو وروسته د خوارزم په سرحد کی یوه وړوکی ښار ته ننوتل، دا ښار له خوقند نه نژدی سل میله جنوب ختیځ لوری ته د خوشحاله کروند ګرو او سوداګرو د هستوګنی ښار و، د شاوخوا سرحدی پهرو لپاره په ښار کی پنځه زره تنه پوځ ؤ طاهر چی له بغداده قراقرم ته تلو هم له دی ښار نه تیر شو د ښار حاکم او څو نور مخور له ده سره ښه بلد شوی وو، د ښار حاکم د پخوا په څیر دی په خپل کوو کی ایسار کړ، د ښار اوسیدونکی د مغلو نه په اندیښنه کی وو، ځکه خو یی چی د طاهر د بیرته راستنیدو خبر واورید څو تنه لوړ رتبه افسران او سرداران د حاکم کورته راغلل.

طاهر دوی ته ټول حال لنډ لنډ بیان کړ، دوی ته یی داډ ورکړ چی که د خلیفه پر ګواښ برسیره یی پر خوارزم حمله وکړه نو بغداد به په خپل ټول توان د دوی ملاتړ کوی.

یوه سوداګر وپوښتل : ستا د چنګیز خان پر وعده باور دی؟

طاهر ځواب ورکړ : نه! همدغه سبب دی چی زه بغداد له دی حالت نه خبرول غواړم او غواړم چی زر تر زره هلته ځان ورسوم.

حاکم پوښتنه وکړه : که بده نه منی زه یوه خبره درته کوم.

: وو‌ایه!

: د ځینو خلکو دا ګومان دی چی د زحمت په وخت کی به خلیفه له نیکو دعاګانو پرته له موږ سره نور هیڅ مرسته ونکړای شی، له موږ سره به دده دا هم ډیره مرسته وی، خو ځینی خلك دا ګومان هم کوی چی خلیفه دا پیغام ځکه د چنګیز خان په نامه واستاوه چی دده لومړنی پیغام چی چنګیز خان یی پر خوارزم یرغل ته لمسولی ؤ نیول شویدی له خلیفه سره دا ویره وه چی که دده لومړنی پیغام په اسلامی نړۍ کی مشهور شی نو دا لږ ډیر پاتی عزت به یی هم ورسره ختم شی

بلکې د بغداد په اولس کې به هم ناکراري راشي، ځکه خو یې له یوه پلوه په بغداد کې د خوارزم د سفیر او تاسو غونډې خلکو د واد لپاره دوهم پیغام واستاوه او اوس هغه ښایي په مناسبه موقع بل پیغام چنګیز خان ته واستوي چې زه له وضعې نه په دې مجبور شوم چې تاته ګواښ وکړم، ته زما له لوري داده اوسه.

طاهر ځواب ورکړ:

د خلیفه په اړه داسې بدګوماني له تاسو سره نه ښایي، بیا هم که خدای ج مه کړه ستاسو بدګوماني او اندیښنه پرځای وي هم زه دا داد درکوم چې حالات به خلیفه پر خبره ټینګ پاتې کیدو ته اړ کړي، ما په قراقرم کې د انساني ککرو څلي لیدلي دي، اوس به د بغداد په جوماتونو کې ماته دا آسانه وي چې ووایم چې مغل څومره د انسانیت ستر غلیمان دي، او که پرخوارزم کوم سیلاب راغی څپې به یې بغداد ته هم راوړي، او که ما د خلیفه او یا صدر اعظم پرنیت څه شك راغی نو زه به د بغداد په جوماتونو کې دا اعلان کوم چې ستاسو ساتونکی له چنګیز خان سره ستاسو د عزت او ناموس معامله کړې ده، خو زما باور دی چې خبره به تر دې پورې راونه رسیږي، که خلیفه له خوارزم سره خواخوږي ونه لري هم نو د بغداد د ژغورنې لپاره به له خوارزم شاه سره په مرسته مجبور وي.

سبا ته طاهر روانیده خو د ښار حاکم ورته وویل:

نن د جمعې ورځ ده د ښار اوسیدونکي هیله لري چې د جمعې لمونځ ستا په امامت ادا کړي ځکه خو نن خامخا پاتې شه، په دې ځنډ کې به د لارې پهره دارانو ته ستا لپاره د تازه نفسه اسونو تیارولو موقع هم په لاس ورشي، د والي په ټینګار طاهر په یوه ورځ نور پاتې کیدلو راضي شو.

د جمعې له لمانځه نه وروسته والي له هغه سره ډیر تود روغبړ وکړ ویې ویل : ستا په ژبه کې جادو دی، کاشکې د بخارا او سمرقند د جوماتونو خطیبان هم نن دلته وای.

خلکو له طاهر سره د مینې په خاطر دې د والي تر کوره بدرګه کړ.

* * * * *

(۲)

همدغه ورځ طاهر د مازدیګر له لمانځه نه وروسته له جومات نه د والي د کور په لوري روان ؤ چې په لاره کې یې د ښار کوتوال ولید، هغه ورته وویل : ته ما د والي په کوز کې لټولې زه ستا لپاره راغلم.

طاهر : خیریت دی؟
کوتوال : کومه خاصه خبره نشته، که درته زحمت نه وی له ما سره یو ځل ولاړ شه، طاهر له خپلو خواخوږو او عقیدت مندانو نه چی ورسره را روان وو رخصت واخیست او له کوتوال سره ملگری شو، څو گامه چی ولاړل پوښتنه یی وکړه : آیا داسی کومه خبره ده چی ته یی دلته ماته نه وایی؟
: ما د خلکو د وړاندی تاته نشو ویلی، کوتوال له جیبه د وریښمین توکریو وړوکی دسمال راویوست او طاهر ته یی په لاس کی ورکړ ویی ویل:
ته دا پیژنی؟
طاهر وویل : نه په دی که څه شی دی؟
کوتوال ځواب ورکړ : ته یی خلاص کړه پخپله یی وگوره، ښایی داسی څه پکی وینی چی پیژنی یی.
طاهر دسمال خلاص کړ ویی کوت، دری غمی پکی وځلیدل، طاهر په سوالیه نظر کوتوال ته وکتل، هغه چی د طاهر اندیښنه احساس کړه ویی ویل :
دا غمی ستا له یوه نوکر سره وو.
طاهر اندیښمن شو ویی ویل : تا د هغه تلاشی اخستی ده؟
کوتوال ځواب ورکړ : ته بده مه منه دا زما ذمه واری وه، ستا یو نوکر همدا اوس د یوه زرگر په دوکان کی ولاړ ؤ او دایو غمی یی ور ښودلو چی څومره ارځښت لری، هغه سوداگر پرون او نن ستادوینا او ملاقات تر اغیزی لاندی راغلی، هغه شکمن شوی ؤ چی له داسی معمولی سړی سره دومره گران بیه غمی له کومه شول، ماته راغلی خبر یی راکړ چی ښایی هغه دا غمی له تانه غلا کړی وی، ځکه خو زه دده په لټون پسی ووتم، هغه د یوه بل سوداگر په دوکان کی غمی بیه کاوه، د بیی په اړه دده ناکراری ښودله چی دا ده همدا اوس ترلاسه کړی دی، ځکه هغه ما ونیوه او بندیخانی ته می بوته، هلته می یی چی تلاشی واخستله دوه نور غمی هم ورسره راووتل.
طاهر وویل : تا تری وپوښتل چی غمی دی له کومه کړل؟
کوتوال ځواب ورکړ : هغه تر اوسه پوری څه ځواب نه راکاوه او ستا له خبرولو نه دمخه می پر هغه څه زور راوستل مناسب ونه بلل.
طاهر په یوه ژور سوچ کی ډوب شو.
د امنیی قوماندانی ته چی نژدی شول طاهر وویل : تا د هغه د نوم پوښتنه

وکړه؟

کوتوال ځواب ورکړ : هغه خپل نوم کمال ښیی .

طاهر وویل : غوره دا ده چی زه یوازی خبره ورسره وکړم.

کوتوال وویل : ته زما کوټی ته ولاړ شه زه به یی همالته درولم.

طاهر یی په کوټه کی کښیناوه او کوتوال لږ ځنډ وروسته کمال ور ووست له طاهر سره یی پریښود او دی تری بیرون ته ووت.

طاهر کمال ته وکتل، د هغه حالت د یوه لوټ شوی سوداگر نه توپیر نه درلود، یوه شیبه یی سترگی وغړولی طاهر ته یی وکتل او ویی ویل : هغه غمی زما خپل وو.

طاهر ورجگ شو د غمیو دسمال یی د هغه په لاس کی ورکړ او ویی ویل : ویریږه مه، زه یوازی پردی پوهیدل غواړم چی دا دی له کومه کړل؟ ما، ما... ما دا غمی د مغلو په خیمه کی وموندل.

: نو دا بیا ماته راکړه، د مغلو مال باید بیرته هغوی ته ورسوو.

:نه، نه، دا زما دی، دا زما دی.

: نو بیا ووایه چی چا درکړی دی؟

: چا نه دی راکړی په لاره کی می وموندل.

طاهر په یوه لاس د هغه مری کلکه کړه او پر بل لاس یی په خوله څو څپیړی ورکړی ویی ویل : رښتیا ووایه که نه د سر خیر دی نشته.

کمال د خپلی مری د ژغورنی هڅه وکړه ویی ویل : زه بی گناه یم، ماته هیڅ معلوم نه دی.

طاهر پرمخ یوه بله څپیړه ووهه ویی ویل : داسی ولی نه وایی چی دا غمی چنگیز خان درکړی دی!

کمال چیغه کړه ویی ویل : د خدای په خاطر په ما رحم وکړه ابو اسحق به می ووژنی!

طاهر وویل : اوس زما لاس د ابو اسحق له لاسه ستا شاه رگ ته زیات نژدی دی. ته به وایی!

: ماته دا د چنگیز خان یوه نوکر راکړل.

طاهر یی مری پریښوده ویی ویل : ایا دا سهی نه ده چی په هغه ورځ مو سرونه خرېلی وو له چنگیز خان سره مو ولیدل؟

کمال خپله خولي پر سر برابره کړه ويې ويل : نه موږ له هغه سره نه دي ليدلي.
طاهر وويل : خولي دي لرې کړه!
کمال د هغه د حکم د منلو پرځاى دوه گامه شاته شو.
طاهر ور وړاندې شو او د هغه له سره يې د خولي د لرې کولو هڅه وکړه، خو هغه خولي پر سر کلکه کړه ويې ويل : پرما ورحميږه! د خداى په خاطر ابو اسحق به مې ووژني! طاهر په خوله يوه بله څپېړه ورکړه ويې ويل : شورمه کوه، او د هغه له سره يې خولي لرې کړه، د کمال له سره تور غوړي لږ لرې شوي وو، او په ورو ويښتانو کې په سره رنگ طاهر څو عجيبې ليکې وليدې، په ځير يې چې وکتل دا د عربي څو حرفونه ښکاره شول، څو شيبې د طاهر ويني په رگونو کې وچې شوې، د سره رنگ له ټول ليك لوستلونه وړاندې ده دا احساس کړه چې له بغداد نه د اسلامي نړۍ په وينو کې د لمبولو دسيسه بشپړه شويده.
او دې يې له ټول پام او احتياط سره سره ددې ناولي هدف لپاره د لاس آله گرځولي.
هغه خپلې شونډې وچيچلې د کمال خولي يې د هغه پر سر ور کېښوده تر مټ يې ونيو او بهر ته يې را ويوست، کوتوال بهر ولاړ ؤ، طاهر ورته وويل :
زه ستا مننه کوم اوس که ستا اعتراض نه وي زه دې له ځانه سره بيايم.
کوتوال وويل : ته د خپل واك يې چې خپل مجرم ته سزا ورکوې او که يې بخښې، خو زه مشوره درکوم چې له داسې ملگرو سره پام کوه.
طاهر ځواب ورکړ : ته باور وکړه چې زه د داسې گناهکارانو پر بخښنه عادت نه يم.
چې بهر ته راووت د والي د محل سره نژدې طاهر يو خوږ وليد يوې او بلې خواته يې وکتل بيايې کمال ته وويل : سر دې دلته ومينځه!
کمال لږ ځنډ دوه زړې ودريد، خو طاهر خنجر راوکيښ او په درانه غږ يې ورته وويل : زر کوه که نه زه به ددې گران بيه ليك د لوستلو لپاره ستا د سر په رغړولو هم صرفه ونه کړم.
کمال په ويريدلي لهجه ورته وويل : دغه غوړي په اوبو نه پاکيږي.
نو سر دې په ريگونو ومښه!
لږ ځنډ وروسته طاهر د کمال د سر ليك په دې مفهوم پوهيدو برياڼي شو:
په اسلامي نړۍ کې ناکراري خوره شويده، خوارزم شاه ته د تيارۍ موقع مه

ورکوه، د مسلمانانو د خلیفه او د بغداد د خلکو دعاګانی له تاسو سره دی، استازی به ددی پیغام د ځنډیدو سبب درته ووایی، د خلیفه له لوری چی طاهر څه وایی د هغه نه غلط مطلب وانه خلي، هغه یوازی د لاری د ستونزو په خاطر در استول کیږی.

د عباسی دولت نعمت خوار او ستاسو خاص خادم وحید الدین «د بهرنیو چارو وزیر»

*****

کله چی طاهر کمال ته بیرته خولی ورپرسر کړه او له ځانه سره یی روان کړ هغه په عجز ورته وویل :

ماته نه ده معلومه چی پر سر می یی څه لیکلی دی، هغوی له سهاره تر ماښامه په تیرو ستنو زما پر سرڅه لیکل، چی له ډیر درده تر دری شپو پوری ویده نه شوم، له ما سره یی تر بیرته راستنیدو وروسته د انعام وعده کړی، زه بی ګناه یم پرما ورحمیږه!

طاهر وویل : ته یوازی په ربښتیا ویلو ځان د رحم وړ ثابتولای شی.

: تاسو زما د سرد خیر وعده وکړی. زه هر څه ویلو ته چمتو یم.

: زه به ستا د سر د ساتنی هڅه وکړم، ووایه په دی دسیسه کی کوم کوم شریك دی؟

: زه نه پوهیږم! ابو اسحق زما پر سترګو پټی کیښودی او یو کورته یی بوتلم، هلته یی په یوه سمڅه کی واچولم، له جمیل سره می په همغه سمڅه کی ولیدل، زموږ د دواړو سرونه یی راباندی وخریل او څه یی پری ولیکل او چی بیرته لږ ویښتان پری راشنه شول نو ابو اسحق وویل : کله چی درته ضرورت شو زه به تاسو د یوه مهم پروګرام لپاره راسره بیایم، سمدستی مو له وزیر اعظم سره په ملازمت تاکم، بیا موږ د صدر اعظم په طبیله کی د اسونو د پاللو لپاره وګومارل شوو، هلته چی ورغلو وپوهیدو چی د طبیلی سرپرست ابو اسحق دی، هغه موږ ته پنځه پنځه سوه دیناره راکړل او ورسره یی دا ګواښ هم وکړ چی که دا راز چاته ښکاره شو نو ستاسو سرونه به غوڅ شی.

طاهر پوښتنه وکړه : په دی موده کی مو کله له صدر اعظم سره څه ملاقات وشو؟

: هغه مو ولیدو خو ناڅاپی، خبری اتری می نه دی ورسره کړی، یوازی په

وروستی ورځ چی ته ورسره ناست وی ابو اسحق موږ وروستلو خو چی څه مو ورسره وویل ته یی گواه یی، په طبیلی کی له مزدوری نه وړاندی چی تاسو په کومه سمڅه کی وی هغه د صدر اعظم له کوره څومره لری وه؟
: موږ یی د شپی له هغه ځایه راوایستلو او په سترگو یی پتی راتړلی وه، خو دومره ویلای شم چی هغه کور د سیند پر بله غاړه ؤ.
: ته پخوانی د بهرنیو چارو وزیر وحید الدین پیژنی؟
: زه یی نه پیژنم خو د جمیل گومان دا ؤ چی په سمڅه کی چا زموږ پر سرونو لیك کړی هغه د بهرنیو چارو وزارت د یو مهم منصب خاوند ؤ. په طبیله کی له گومارل کیدو وروسته دی کله هغه بیا لیدلی دی؟
: نه!
: ابو اسحق کله تاسو صدر اعظم ته ور وستلی یاست او ستاسو پر سر لیکنی یی وربشکاره کړی دی؟
: نه! موږ له همغی یوی ورځی پرته چی ته هم موجوودی هغه ته نه یو ورغلی.
د طاهر د زړه بار لږ راکم شو، لږ تر لږه یی دا داډ وشو چی صدر اعظم په دی دسیسه کی شریك نه دی او دغه دسیسه د صدر اعظم نه پته د بهرنیو چارو د وزیر لخوا په کار اچول شوی ده چی د صدر اعظم د طبیلی سرپرست هم پکی شریك ؤ، د رخصتیدو په وخت کی هغه ته صدر اعظم ویلی وو چی له بهر نه د کوم سړی د استولو پرځای زه له خپلو نوکرانو نه دوه دری تنه درسره استوم، د وحید الدین یوه دسیسه افشا شوی وه، خو پخوا له دی چی هغه ځان غلی کړی د بلی دسیسی جال یی خپور کړ، طاهر د خلیفه په اړه هم زړه ته تسلی ورکوله چی هغه هم د وزیر اعظم په څیر له دی دسیسی نه ناخبره دی، خو د هغه په ذهن کی دا د تصویر دوهم مخ ؤ، هغه چی هر څومره پر دی اړه سوچ کاوه هومره یی پریشانی زیاتیده کله یی چی خوشباوری په بدگومانی بدلیده نو سوچ به یی کاوه چی دا هر څه لکه چی د صدر اعظم په اشاره شویدی، او د احتیاط په خاطر به یی دغه خلك له ځانه لری ساتلی وی چی که د لومړی ایلچی په څیر ونیول شی نو داسی ثبوت به نه پریږدی چی د صدر اعظم په سازش کی شریکیدل ثابت کړی، خو دده د زړه سخا به په داسی سازش کی د صدر اعظم شریکیدل رد کړل.
هغه بیا له کمال نه وپوښتل : په دی موده کی دی کله له خلیفه سره لیده کاته شویدی؟

:نه!

: په هغه ماښام یې تاسو چنګیز خان ته ورروستی؟

: هوکی! ابو اسحق موږ د چنګیز خان مسلمان خدمتګار ته ورروستلو، هغه سرونه راباندې وځریېل او بیایې چنګیز خان ته بوتلو.

: تا به د جمیل او ابو اسحق پر سر لیکلی مطلب لوستی وي؟

د جمیل پر سر ددې لیکنې فارسي ژباړه ده، او د ابو اسحق پر سر په چینې ژبه څه لیکل شویدي، هغه هم ښایي د همدې ژباړه وي.

طاهر وویل : ته ولاړ شه زه له شانه درپسې راځم، خو که دې ابو اسحق ته څه خبره وکړه او یادې د تیښتې هڅه وکړه نو درته ښه به نه وي.

کمال له څه ویلو پرته چوپه خوله په مخکې شو.

طاهر په ژورو سوچونو کې ورو ورو ګامونه اخستل د ښار د حاکم ماڼۍ ته ورننوت او د خپلې کوټې پرځای د بلې کوټې له وره سره چې نور ملګري یې پکې وو ودرید، د دروازې یوه پله تړلې او بله خلاصه وه، طاهر کمال ته اشاره وکړه او هغه دننه ورننوت ابو اسحق چې ولید په زوره یې ورته وویل : ته ډیر احمق یې، موږ ټول ښار درپسې وکوت ته چیرته ورک وې؟

کمال په ویریدلې لهجه ځواب ورکړ : زه همدلته وم.

: تا طاهر لیدلی دی؟

: طاهر ... هغه دلته نشته؟

: ستا چې چیرته زړه وغواړې دروځې، که په موږ څه مصیبت راغی نو ستا له لاسه به وي.

طاهر غلی کوټې ته ورننوت ابو اسحق ژر وویل : موږ ستا په اړه خبرې کولې، تاسو چیرته وی موږ ډیر درته په اندیښنه کې وو.

طاهر ده د ځواب پرځای وویل : ستا او ستا د ملګرو له پاکی سره ولې دومره کرکه ده؟ تا او ملګرو دې تر اوسه د سر هغه تور تیل نه دي مینځلي؟

ابو اسحق پر خپله پریشانی د قابو کیدو هڅه وکړه ویې ویل : موږ د مغلو دغه سوغات بغداد ته رسول غواړو. که هلته کوم تاتاري پیدا شو د بغداد له خلکو نه به هیله وکړو چې همدغسې سلوك ورسره وکړي.

طاهر وویل : ته دې لږ خولی له سره لرې کړه!

ابو اسحق له لږ دوه زړه توب وروسته خپله خولی له سره لرې کړه او بیایې ژر

بیرته پر سر کړه ویې ویل:

زما له احتیاط سره سره دغه غوږې زما له سره پاك شوی دی.

: په بغداد کې تور تیل لږ نه دي ته دی سر ومینځه هلته به یې له سره غوږ کړي، او جمیله! ته راشه، یو ځل ستا سر هم گورم.

جمیل ابواسحق ته وکتل د هغه اشاره یې ولیده زر یې خولۍ له سره لرې کړه او بیایې بیرته پر سر کړه.

طاهر کمال ته وویل : تا هم تر اوسه سر نه دی مینځلی!

کمال یو پر بل پسې ابو اسحق طاهر او جمیل ته وکتل او د طاهر په اشاره یې له سره زړه نا زړه خولۍ لرې کړه.

ابو اسحق او جمیل د یوې شیبې لپاره هك پك ودریدل طاهر وویل:

ابواسحاقه! لکه چې د کمال پر سر څه لیکل شوي دي ته یې ولوله او ماته یې واوروه!

ابو اسحق وویل : نو ته په هر څه پوه شوی یې؟

طاهر وویل : نه! تر اوسه ستاسو د کوپړیو لیك له مانه پټ دی.

ابو اسحق جگ شو د هغه یو لاس د خنجر په موټی ؤ، طاهر په بیړه خپل خنجر راویوست او په درانده غږ یې وویل : کښېنه! ستا جوش او احساسات زما دا نظر نشي بدلولی چې خاین، بې زړه وی.

ابو اسحق اوس د طاهر پر ځای خپلو ملگرو ته کتل، د کمال بې حسی دده له زغم نه لوړه وه. جمیل څو ځلې د جگیدو هڅه وکړه خو د طاهر کتو هغه په ناستې مجبور کړ.

طاهر وویل : د خوارزم د پاچاهی لپاره ستا سر ډیر قیمت لري، که یې هغه ضبط کړ نو وعده کوم چې نور بدن به دې بغداد ته ورسوم.

کمال وویل : مگر تا خو له ما سره وعده کړې.

طاهر د هغه خبرو ورغوږ نه کړه ویې ویل : ته چوپ شه.

ابو اسحق په ویریدلی غږ وویل : تاسو او موږ ټول د خلیفه خدمتگاران یو، په کوم نیك نیت چې تا خپل د رسپارل شوې مسئولیت ادا کړ په همغسې نیك نیتې ما خپله ذمه واري ترسره کړه، دا غوره نه ده چې موږ دلته له یو بل سره د جگړې پرځای بغداد ته ولاړ شو او خپله لانجه خلیفه ته وسپارو؟

طاهر وویل : ته دروغ وایې، خلیفه ستا او د بهرنیو چارو وزیر په دسیسه کې

شریک نه دی.

: ایا دا به غوره نه وي چې دلته د څه غلط اټکل پرځای بغداد ته ولاړ شی او له خلیفه نه پوښتنه وکړی؟ که د هغه گواهی ... ابو اسحق د طاهر تر شا په دروازه کې څوك ولیدل چې ولاړ وو، ودرید او بیا یې لهجه بدله کړه ویې ویل : ته د خوارزم نه د انعام په تمه موږ نشی راښکیل کولای او ځان نشی ژغورلای.

تا د خلیفه نه د انعام د ترلاسه کولو لپاره موږ د خپلو ناولو اهدافو لپاره استعمال کړو، اوس د خوارزم له پاچا نه د انعام په تمه موږ پلوری!

کاشکی موږ ته پخوا معلومه وای چې زموږ په ککریو څه لیکی؟ تا موږ ته یوازی دومره ویلی وو چې تاسو د بغداد لپاره ډیر قوی خدمت ترسره کوی، او موږ یې په بدل کی تاسو په سرو او سپینو پالو.

طاهر ور وړاندی شو د ابواسحق پر خوله یې د سوك وار وکړ ویې ویل :

چوپ! ذلیل انسانه، ته دا چاته ثابتول غواړی چې ستا په دی ناولی دسیسی کی زه هم شریك وم؟

ابو اسحق ځان راقابو کړ ویې ویل : تاته! چې موږ ته دی د پیسو تمه راکړه او د ذلت او رسوایی تل ته دی وغورځولو، زه به ددی ښار واکمن ته ورشم فریاد به وکړم چې دا په جوماتونو کی وېناکوونکی د خپل وخت د اسلام ډیر ستر غلیم دی.

طاهر وویل : ته به دی اوتوبو تو ما ویرولی نشی، که ستا غوندی غدار په سزا رسولو لپاره زه پخپله هم غرغره شم پروا نشته.

د کوتی دروازه خلاصه شوه او د ښار حاکم له څو تنو سره ورننوت خپلو ملگرو ته یې وویل :

دوی تهول ونیسی، بیا یی طاهر ته مخ ور واړاوه او ویې ویل : ما ستا ټولی خبری واوریدلی، باور وکړه چې ددی هر څه له اوریدو سره سره ستا په باب زه د رایی بدلولو په سبب زیات خفه کیږم، بیا هم ستا په نظربندی مجبور یم.

طاهر وویل : نو اسحق ته د دروازی ترشاو ولیدلی چې لهجه یی بدله شوه، ته چې ماهر ځای ته بیایی، بیولی می شی خو زما په باب د څه رایی ورکولو نه وړاندی زما یو څو خبری واوره!

که نه د خپلو ملگرو تورونه رد کړای شی نو زه به روحاً آرام شم، خو د داسی درنی دوسیی پریکړه یوازی د قوقند حاکم کولی شی.

*****

(٤)

د ښار حاکم خپلو ملګرو ته امر وکړ چې د طاهر ملګرو ته زولنې واچوي، او دی له طاهر سره بلې کوټې ته ولاړ.

د طاهر د اوږدو خبروله اوریدونه وروسته هغه د کمال د حاضرولو امر وکړ، له هغه نه یې د ځو پوښتنو نه وروسته طاهر ته مخ واړاوه ویې ویل : تر کومه چې په ما پورې اړه لري ستا په باب زما بدګوماني تر ډیره حده لرې شوې ده خو ما مخکې هم عرض کړې دی چې زه د قوقند د لوی حاکم د امر له ترلاسه کولو پرته هیڅ نه شم کولی، زه نن خپل استازی هغه ته استوم، ستا سره دومره مراعات کولی شم چې تاته زولنې درو انه چوي، خو په کلاکې به تر ځارنې لاندې خامخا وې.

ستا د ملګرو د سرونو له کتنې نه وروسته به دوی بندي خانې ته واستوو.

ماښام ددې ښار د حاکم ایلچي د قوقند په لور روان شو، حاکم په خپل لیک کې د طاهر د بې ګناهي په اړه وضاحت کړی و.

نژدې یوه نیمه اونۍ تر نظر بندۍ وروسته طاهر یوه ورځ د ایستلو تورو په پهره کې د ښار حاکم ته واستول شو، هغه طاهر ته وویل چې د قوقند د لوی حاکم تیمور ملك ځواب راغلی دی ته باید هلته ولاړ شې.

: زما ملګرې به څه کوي؟

: د ښار حاکم ځواب ورکړ : هغوی ډیر لرې رسیدلي دي.

: ستا مطلب څه دی؟

: زما مطلب دا دی چې تیمور ملك د دوی پرځای د دوی سرونه غوښتي وو او زه د هغه د حکم په عملي کولو مجبور وم.

: نه! ته له بیړې نه کار مه اخله، په بغداد کې ددې دسیسې د ټولو کردارونو د نیولو لپاره د دوی ژوندي پاتې کیدل ضروري دي.

: ما وویل چې ما هغه امر عملي کړی دی.

: مګر کمال او جمیل ښایي ددې سزا حقدار نه وو.

: زه د دوی په بدل کې د خپل سر غوڅولو ته تیار نه وم پر دې علاوه ستا ښه هم په دې کې ده، ته هسې د خپلو ملګرو سپیناوی کوې، تیمور ملك په خپلو سترګو د لیدو نه وروسته په غوړو د تائید ضرورت نه احساسوي، که ته دا ګومان کوې چې کمال ستا د بې ګناهي تصدیق کولای شوای د هغې کمی ما پوره کړی دی، ما تیمور ملك ته بل لیك لیکلی دی.

# تیمور ملك

علاوالدین محمد خوارزم شاه ډیر ضدی او خپلسری پاچا ؤ، د خوارزم په شمالي او ختیځو بریدونو یې چې د تاتاریانو د یوې یوې غلچکي حملې او لوټ او تالان خبر واورید دوه لکه تنه لښکر یې راټول کړ او وراندې تګ یې پیل کړ، جلال الدین د ده زلمی، زړور او هوښیار زوی دده له دې پریکړې سره مخالف ؤ، هغه د هیواد د امیرانو په غونډه کې اوچت شو خپل پلار ته یې وویل : که ته ماته د خپل پوځ د یوه سپاهي په حیث د خبرو اجازه راکوې نو وایم چې موږ باید له دغه لښکر سره په سرحدي سیمو کې تم شو، که ته د تاتاریانو د یوې نیمې حملې نه وروسته د دوی تیښته د کمزورۍ سبب ګڼې داسې نه ده، د دوی هدف دا دی چې موږ وپاروي او هغو سختو غرنیو لارو ته ورشو چې تنګ او دنګ ګړنګونه او لارې یې دوی ته د برجونو او مورچلونو په څیر دي، په هوار ډګر به موږ دوی د خس او خاشاك په څیر راسره واخلو خو په غرنیو سیمو کې وړاندې تګ موږ ته زیات له خطرو ډك دی.

هغوی به په شا درومي او په یوه داسې ځای کې به تر موږ راتاو شي چې زموږ وړاندې او وروسته به له تباهۍ پرته بل هیڅ نه وي.

تجربه کارو پوځي جنرالانو هم د جلال الدین نظر تائید کړ، خو خوارزم شاه د ځینو چاپلوسو امیرانو تر اغیزې لاندې ؤ له دې نظر سره یې مخالفت وکړ، د هغه لومړی او وروستی دلیل دا ؤ چې ډاکوګانو ته په سزا کې دوه زره توب که وښیونو نړۍ به داسې وانګیرې چې موږ کمزوري شوي یو، او تر ننه موږ هر غلیم ته دا ښودلې ده چې موږ کمزوري نه یو، زموږ باور دی چې که مغل وزر وکړې او والوزي هم موږ به وریاندې بریالي شو.

کله چې جلال الدین په هیڅ ډول هم د خپل پلار رایه بدله نکړای شوه ویې ویل : نو که ستا دا اراده وي نو زه غواړم چې ما ددې عملیاتو لپاره واستوې او ته له

نور پوځ سره په هیواد کی پاتی شه.

خوارزم شاه د خپل هوښیار زوی دغه رایه هم ونه منله او ده ته یی د هیواد د اداری مسئولیت وسپاره پخپله له پوځ سره د شمال ختیځ په لور وخوځید.

د جلال الدین اندیښنی سهی شوی، د دوه لکه مسلمانانو په مقابل کی د مغلو تیت او پرك ډلګی راټولی شوی او له څلورو خواونه یی شاته تګ پیل کړ، خوارزم شاه د خپل ځواك په نشه مغرور د خپلو تجربه کارو جنرالانو مشوره ونه منله او پرمخ ولاړ.

دده د حوصلی تینګولو په خاطر څو ځایه د مغلو لښکر له لړ مقاومت وروسته په شا وتښتیده، د تاتاریانو دغه چل پاچا نور هم بی پروا او په خپل زور مغرور کړ، تر دی چی یو سهار په یوه دره کی چی دری لوریو ته یی اوچت غرونه او یوی خواته یی ګڼ ځنګل ؤ د خوارزم لښکر د مغلو له څو ډلګیو سره مخامخ شول د مغلو پوځی ډلګی په جګړه جګړه کی په شاو ولاړی او ځنګل ته ننوتلی خو له دریو لوریو نه د غرونو نه د تاتاریانو منظم پوځونه راښکاره شول، خوارزم شاه په خپله اشتباه هغه وخت وپوهیده چی له څلورو خواوو پری دغشو باران جوړ شو، په تنګه دره کی ترکی نیزه وهونکو ته د خپل کمال ښودلو هیڅ مجال نه ؤ، له ګڼ ځنګله پرته دوی ته د پناه بل ځای تر سترګو نه شو، د غشو پر باران برسیره د تاتاریانو بی شمیره پوځ په دره ورپریوت او د خوارزم په لښکرو یی مرګو ګډه کړه، د دی تباهی نه د ژغورنی لپاره دوی ځنګل ته پناه یوړه، خو هلته هم د هری ونی شاته یو مغل پوځی سنګر نیولی ؤ، تر قضا ماسپښین پوری د مغلو لښکر په ځنګل کی د خوارزم پوځونه پاك کړل او تاتاریان ورو ورو بیرته غرونو ته وختل، خو د خوارزم د پوځ تباهی دومره زیاته وه چی ماښام یی افسرانو د مړو د شمارلو پرځای ژوندی شمارل.

له دی ماتی او تباهی وروسته خوارزم شاه د نور پرمختګ جرئت ونه کړ او چی بیرته راستون شو په لاره کی خبر شو چی د تاتاریانو لښکر د قوقند په لوری پرمخ روان دی، د قوقند والی احوال ورکړ چی اوس له ما سره یوازی پنځه زره تنه پوځ دی خو زه باور لرم چی تر یوی مودی پوری به د تاتاریانو توپان تم کړای شم، خو که پاچا ماته شل زره تنه پوځ راواستوی نو زه به د اسلامی نړۍ په اړه د مغلو ارادی د تل لپاره بدلی کړم.

خوارزم شاه د تیری ماتی نه دومره وارخطا او په غوسه شوی ؤ چی له غوسی نه

یی د تیمور ملك لیك څیری کړ، استازی ته یی وویل : که تیمور ملك دا فکر کوی چی تر موږ زیات د تجربی خاوند دی نو هغه احمق دی.

خو د ځینی افسرانو د مشوری په نتیجه کی خوارزم شاه تیمور ملك ته پیغام واستاوه چی زه د شل زره تنو د راستولو نه وړاندی تا ازمویم چی په پنځه زره تنو تر کومه د تاتاریانو د لښکر مخه نیولی شی.

*****

(۲)

د قوقند په بندیخانه کی د طاهر دوی میاشتی تیری شوی، د بندیخانی له سرپرست نه هغه څو ځله وغوښتل چی د ښار حاکم ته یی ورولی، خو هر ځل یی دا ځواب اوریده چی کله هغه فرصت ومومی پخپله به یی ورغواړی، طاهر له سرپرست نه د لیك لیکلو اجازه وغوښته خو ځواب یی واورید چی د جاسوسی په تور بندیانو ته دا اجازه نه ورکول کیږی، طاهر ته له نورو بندیانو سره د لیدو او خبرو اترو اجازه هم نه وه، له زندان نه د بهر نړی‌نه بی خبره ؤ، هغه به نا کراره شو او له ځان سره به یی ویل: ولی می نه ورغواړی؟ له زندان نه بهر څه تیریږی، ایا مغلو یرغل راوړی دی؟!

لوی حاکم زما په اړه د سوچ فرصت نه لری، ایا هغه زما له خبرو اوریدو پرته د عمری بند سزا راکوی؟

یوه ورځ څو پهره دارانو د ایستلو تورو په سیوری کی هغه له زندان نه راویوست او د ښار د والی تیمور ملك مانی ته یی بوت، تیمور ملك یو نیك خویه او د ورین تندی خاوند سړی ؤ، د هغه د توری او زړورتیا داستانونه‌ تر لری لری پوری مشهور وو، د طاهر ټوله کیسه یی په آرامی واوریده، هغه د کیسی له اورولو وروسته د خوارزم د سفیر لیك ورکړ چی په هغه کی یی د طاهر په نیك نیتی اعتماد ښکاره کړی ؤ، په دی لیك کی د صلاح الدین ایوبی د توری یادونه هم شوی وه.

تیمور ملك تر لږ ځنډه سر ښکته واچاوه او په فکرونو کی ډوب شو وروسته یی سر پورته کړ طاهر ته یی عقابی سترگی ورواړولی ویی ویل : تر کومه چی زما په رایه پوری اړه لری زما رایه ستا پرخلاف نه ده، خو د پاچا امر دا دی چی دغسی ډوسیی مانه راواستوی، ستا د نیولو خبر هغه ته رسیدلی دی او زه د هغه د امر انتظار کوم.

طاهر وویل : زما په زندان کی دوی میاشتی تیری شوی، اوس ماته دا معلومات هم نشته چی بهر په نړی کی څه تیرېږی، زه ډیر زر غواړم بغداد ته ځان ورسوم، هلته باید خلك له سهی حالت نه خبر شی، زما زړه گواهی راکوی چی مغل به یوه ورځ ستاسو پر هیواد یرغل کوی، او زما دا باور دی چی د بغداد په مداخله به دا یرغل دریږی، که داسی ونه شول نو لږ تر لږه به زه د خوارزم له خلکو سره د مرستی لپاره هلته خلك راټول کړای شم، ماته یوازی څو ورځی رخصت راکړه، زه وعده کوم چی د بغداد خلکو ته د پیغام له رسولو وروسته بیرته تاسو ته حاضر شم، د یوه بندی له خولی ښایی داسی غوښتنه درته خندنی ښکاره شی، خو زه تاسو ته څه وړ دا باور درکړم چی زه یو مسلمان یم او د مسلمانانو عزت او ابرو تر ځانه راباندی گران دی! د خدای په خاطر زما پر وعده باور وکړی، که نه نو لږ تر لږه می زر خوارزم شاه ته واستوی.

تیمور ملك ځواب ورکړ : ځوانه! له تاتاریانو سره زموږ جگړه پیل شویده، او تر اوسه پوری زموږ د ډیری بدی ماتی خبر بغداد ته هم ښایی رسیدلی وی او امکان لری پر اسلام د کفر د لومړی بری په ویاړ بغداد په چراغونو رڼا شوی وی، په دی حالت کی زه پوهیږم چی که ستا نیت رښتیا سهی وی نو د بغداد د خلیفه مانۍ ‌ ته د قوقند له زندان نه زیاته خطرناکه ده، هغوی چی له تانه کوم کار اخستل غوښتل وایی خست، ښایی هغوی ستا د ژوندی پاتی کیدو ضرورت احساس نه کړی او د پاچا حضور پر زړه او دماغ چی تازه ماتی کومه بده اغیزه کړی ده د هغی له مخی زه دا خطر احساسوم چی ښایی هغه د جاسوس د نامه له اوریدو سره دخبری پوره اوریدو ضرورت احساس نه کړی.

طاهر چی د ماتی خبر واورید تر یوی شیبی پوری حیران ودرید، د هغه حالت هغه چاته ورته ؤ چی د خوب په حالت کی سیند ته غورځیدلی وی. لږ ځنډ وروسته پر خپلو اعصابو راقابو شو ویی ویل : زه د خپل مرگ پروا نه لرم خو خدای شاهد دی چی زه بی گناه یم.

ماته یی دوکه راکړی، زه یوازی دا غواړم چی له مرگه وړاندی دغه اشتباه جبران کړم، او زه بغداد ته له رسیدو نه پرته دا کفاره نه شم ادا کولی، ستاسو اصلی مجرم پخوانی د بهرنیو چارو وزیر وحید الدین دی، که هغه ژوندی ؤ زه وعده کوم چی په څو ورځو کی به یی سر درته راوړم که نه نو زما سر به حاضر وی.

تیمور ملك وویل : زموږ اصلي مدعیان خلیفه او صدر اعظم دی، د بهرنیو چارو وزیر یوازی د هغه د لاس اله کیدای شي.

که ته د هغه د سر راوړو وعده کوی نو زه به ستا د خوشی کیدو په باب څه فکر وکړم.

طاهر په زوره چیغه کړه : نه نه! هغوی داسی نشی کیدای، زه د هغوی په اړه په داسی خبرو باور نشم کولی، په کومه ورځ چی د اسلامی نړۍدغه ستنی دومره خامی شی په همغه وَرځ به د نړۍ هیڅ گوټ زموږ لپاره په امن نه وی، آیا هغوی پردی هم نه پوهیږی چی خوارزم د مغلو په وړاندی وروستی کمر دی، که دا کمر ړیوت نو بغداد به هم له تباهی نه ونه ژغورل شی.

تیمور ملك وویل : یا ته هم ناپوه یی او یا له مانه ناپوه جوړوی.

ایا ته نه پوهیږی چی تر اوسه د خلیفه څو تنه جاسوسان نیول شوی دی؟

طاهر ځواب ورکړ : په هغو تهولو دسیسو کی د وحید الدین لاس ؤ، زما باور دی چی خلیفه او صدر اعظم هیڅ خبر نه دی.

تیمور ملك وویل : که تا د پاچا حضور په وړاندی داسی په جرئت د خلیفه او صدر اعظم د بی گناهی دفاع وکړه نو زما باور دی چی سمدستی به دی له خپلو دری نورو ملگرو سره یوځای شی.

طاهر ځواب ورکړ : زه د ځان له ویری د چا پرخلاف په دروغو شهادت نشم ورکولی.

تیمور ملك دَ هغه په ځواب کی څه ویل غوښتل خو یو پوځی افسر دننه ورغی او ویی ویل چی د پاچا استازی د راتلو اجازه غواړی ، تیمور ملك وویل : دننه یی راوله.

لږ ځنډ وروسته یو ترکی پوځی افسر دننه ورغی تیمور ملك ته یی یو لیك ورکړ، تیمور لیك ولوست بیایی لومړی استازی او بیا طاهر ته وکتل او په غمجنه لهجه یی وویل:

ستا په باب د محترم پاچا حکم راغی، زه افسوس کوم چی نور زما په وس کی هیڅ نشته، ته یی پخپله لوستلی شی.

تیمور ملك لیك طاهر ته وراوړد کړ، خو طاهر د لیك له اخستلو نه پرته وویل : زه د لیك مطلب ستا په تندی کی لولم، زه یوازی دا پوښتنه کوم چی تر څه وخته ژوندی یم؟

تیمور ملك وویل : تر سبا پوری، او بیایی سر ښکته واچاوه، د طاهر پر شونډو یوه درناکه موسکا وغوړیده، تیمور ملك لږ څند وروسته سر پورته کړ په خوله یی څه ونه ویل خو ستر گو یی ویل : ځوانه! زما له تا سره خواخوږی ده خو بی وسه یم.

طاهر وویل : که دا وروستی پریکړه وی نو ایا زه د یوه با عزته مرگ هیله کولی شم؟

تیمور ملك ځواب ورکړ : د لوی سلطان حکم دی چی تا د خلکو په وړاندی غرغره کړو.

تیمور ملك د نوری څه خبری کولو نه پرته جگ شو او بلی کوټی ته ولاړ.

* * * * *

(۳)

طاهر یی د لوڅو تورو په سیورو کی له محل نه راوایوست، د دروازی د زینو نه لاندی د خلکو گڼه گوڼه وه، خلکو چی هغه ولید د کسات او بدل احساساتی ناری یی اوچتی کړی: د قوم غدار، د خلیفه جاسوس! د اسلام دښمن ویی نیسی ویی وژنی!

سپاهیانو چی گڼه گوڼه زیاته ولیده ودریدل، له گڼی گوڼی څو تنه زلمیان راووتل په زینو وختل خو سپاهیانو په تورو ویرول او ویی شړل، بیا هم د گڼی گوڼی شور او احساسات شیبه په شیبه زیاتیدل، یو چا ډبره وویشتله خو هغه د طاهر پرځای د یوه سپاهی په تندی ولگیده او هغه سر په دواړو لاسو ونیو او کښیناست.

څو نوری ډبری راغلی او دری څلور تنه نور سپاهیان هم ټپیان شول، یو پوځی سالار مخی ته شو هغه یی وکړه چی خلك پوه کړی چی دده د اعدام امر شویدی خو د هغه غږ د خلکو په شور ماشور کی ورك شو او پر هغه د یوی ډبری له لگیدو وروسته یی چیغی کړی: بندی بیرته محل ته بوزی او دروازه وتړی.

خو طاهر د پهره دارانو د لوڅو تورو پرواه نه کړه یو گام وړاندی شو دواړه لاسونه یی اوچت کړل او په لوړ غږ یی وویل :

مسلمانانو! د یوه غدار او جاسوس پرخلاف د نفرت دغه احساسات په تاسو کی د ژوند ثبوت دی، خو تاسو ته ښایی معلومه نه وی چی زما د مرگ حکم شوی دی، ما به سبا ته ستاسو په مخکی په غرغره راوځروی او له هغه نه وروسته به زما دوسیه هغه لوی عدالت ته وړاندی شی چی هلته هر مظلوم د عدالت تمه

لري، د خلکو شور ماشور ورو ورو کراریده او دوی د کرکی او نفرت سره سره له طاهر نه څه اوریدل غوښتل خو یوه سپاهی د طاهر په ورمیږه توره ورکیښوده ویی ویل : ته د خلکو په مخکی د خبرو کولو حق نه لری.

څوك له شانه راغلل او د سپاهی لاس یی ونیو، سپاهی چی شاته وکتل تیمور ملك یی په مخکی ولاړ ؤ، ټول سپاهیان د والی په مخکی په ادب او درناوی ودریدل.

یوه شیبه وروسته ورو ورو د خلکو شور ماشور بیا اوچت شو، تیمور ملك وړ وړاندی شو لاس یی اوچت کړ او ویی ویل : د لوی پاچا په حکم به دغه سړی سبا ته ستاسو په مخکی پانسی شی، ایا داسی سړی چی یوازی د یوی وړځی میلمه دی ستاسو له خوا د ښه سلوك حق نه لری؟

تیمور ملك پهره دارانو ته په ده پسی د ورتلو امر وکړ او په زینو کی ښکته شو، څو گامه چی ښکته شو خلکو ته یی وویل : زه ډیر مصروف یم د سرحد نه اخوا د تاتاریانو پوځونه لیدل شوی دی، زه ویریږم چی د جنوب د نورو ښارونو په څیر په قوقند هم ناڅاپی یرغل رانه وړی، ځکه خو دا د نارو مهال نه دی، د تورو تیرولو وخت دی، تاسو زما دری څلور تنه سپاهیان تېپیان کړل، تاسو پوهیږی چی زما سره زیات سپاهیان نشته، که تاسو وعده وکړی چی نور به په لاره کی سپاهیانو ته آزاروی نو زه به بیرته ستون شم او په مهمو چارو به غور وکړم، که نه نو تر زندان پوری باید زه پخپله ورسره ولاړ شم.

یو زلمی په لوړ آواز وویل : وروڼوا دا څه ناپوهی ده! موږ په دی نازك وخت کی خپل گران حاکم ته تکلیف ورکوو او وخت یی ضایع کوو، اوس ستاسو داد حاصل شو چی گناهکار ته به عبرتناکه سزا ورکول کیږي، نور څه غواړی څی له دی ځایه!

خلك په ورو ورو دلگیو سره تیت او پرك شول، تیمور ملك د محل په لور بیرته وگرځیده سپاهیانو ته یی وویل : بندی ته هیڅ ډول تکلیف ونه رسیږی.

پر آسمان وریځی را خپری وی، د شمال په سړه هوا کی د طاهر بدن ریږدیده، یوه سپاهی خپل پوستین راواخست او هغه ته یی ور واغوست، طاهر هغه ته د مننی په نظر وکتل او پوستین یی بیرته هغه ته ورکړ ویی ویل : مننه، د یوی وړځی میلمه ته نور ددی ضرورت نشته.

*****

(٤)

سباته د قوقند بازارونو د واورو برستن اغوستی وه، طاهر له بندی خانی نه بیرون د یوی چوتری پر سر ولاړ ؤ، د هغه لاسونه شاته په کلك پړی تړل شوی وو، له ده نه دوه گامه لری د پانسی پړی راځړیدلی ؤ. شا و خوا ته د واوری اوریدو سره سره په سلگونو تنه ولاړ وو.

د مرگ دومره نږدی لیدو سره سره د طاهر په څیره غیر معمولی سکون ؤ، د زندان د سرپرست په اشاره جلاد په چوتره ور وخوت د غرغری پړی یی په لاس ونیو او طاهر ته یی دلرگی په تخته د دریدو اشاره وکړه، طاهر په تخته ودرید یوی او بلی خواته یی وکتل په ننداره کوونکو کی اوس هغه پخوانی جوش او احساسات نه وو، جلاد د غرغری پړی د طاهر په غاړه کی ورواچاوه، د بندی خانی سرپرست ور وړاندی شو ویی ویل : ستا لپاره دا ورووستی فرصت دی که ستا داسی کومه هیله وی چی موږ یی ترسره کولی شو نو ویی وایه!

طاهر وویل : ما ددی خبری ځواب پخوا هم درکړی په داسی مهال خدای پالونکی له انسانانو نه هیلی نه کوی، ما چی څه غوښتل له خپل خدای (ج) نه می غوښتی، که زما دعاگانی د هغه په دربار کی قبولی شوی وی نو ماته د کوم انسان په مخکی د لمن غوړولو ضرورت نشته، او که د هغه په دربار کی زما دعاگانی نه وی قبولی شوی نو ته زما لپاره هیڅ نشی کولی.

د زندان سرپرست بی ځوابه شو ویی ویل: بیا هم که ته په بغداد کی کوم خپلوان ته څه پیغام استول غواړی ښایی موږ یی بندوبست وکړای شو.

طاهر ځواب ورکړ : د خدای (ج) او رسول (ص) هر نوم اخستونکی زما خپل او عزیز دی، او ما دوی هر یوه ته یو پیغام ورکول غوښتل، که خدای (ج) ته له مانه د څه کار اخستل منظور وی نو ماته به خامخا موقع راکړی که نه نو زما باور دی چی له مانه ورروسته به یو غوره انسان ددی هدف لپاره وټاکی.

: زه پوښتلی شم چی هغه پیغام څه دی؟

: هغه پیغام دا دی چی اوس کفر د اسلام په مقابل کی خپل ټول ځواکونه تنظیموی، پر مسلمانانو فرض دی چی د دین د ساتنی لپاره سره یو او منظم شی.

سرپرست وویل : اوس یوازی څو شیبی وخت لری کـه څه دعا غواړی ویی غواړه!

طاهر په سپینو وریځو پټ آسمان ته مخ واړاوه او هغه دعایی چی د شپی یی

څو ځلې تکرار کړی وه بیا تکرار کړه:

زما پروردګاره! آیا زه ستا د دین په هیڅ درد نه خورم، ما ستا په لار کې د جهاد په نیت له تورو او نیزو سره لوبې زده کړې، ایا زما په برخه له یوه هیبتناك مرګ پرته هیڅ نشته، ما د صلاح الدین ایوبی «رح» د توری حق هم ادا نکړای شو؟

زما خاونده! د انسانانو د غلطو پریکړو ماتول تاته هیڅ نه دي، جلاد لاندې د تختې د لرې کولو لپاره د سرپرست د حکم انتظار کاوه، په ننداره چیانو کې اوس ډیر داسې هم وو چې طاهر ته یې د بې پروایی او یا غوسې د نظر پرځای په خواخوږی کتل.

ناڅاپه د ښار له لورې د خلکو چیغې او فریادونه اوچت شول، څو سپاره په تراټ راغلل په هغوی کې یوه په لوړ غږ وویل : مغل راغلل! د ښار د ساتنې لپاره چمتو شي! دغه اعلان د یوې شیبې لپاره خلك هك پك کړل، او یوه شیبه وروسته ټولو د ، مغل راغلل، مغل راغلل په چیغو سره د خپلو خپلو کورونو په لوری روان شول، لږ ځنډ وروسته چې د زندان د سرپرست اعصاب پرځای شول او خپله ذمه واری یې بیاور په یاد شوه نو میدان تش شوی ؤ، هغه یوه شیبه دوه زړی شو خو بیایې جلاد ته د تختې د کش کولو امر وکړ خو له یوې خوانه یو له رعبه ډك غږ اوچت شو: ودریږه!

د تیمور ملك غږ یې چې وپیژاند د زندان څارن شاته وکتل، تیمور ملك پر اس سپور ؤ له هغه سره څو نور سپاهیان هم وو، هغه چوتری ته نژدې له آس نه پلی شو په چوتره وختوت د طاهر له غاړې نه یې د غرغرې پړی لرې کړ، او بیایې په خنجر د هغه د لاسونو پړی غوڅ کړ، طاهر زر پوښتنه وکړه: تاتاریان څومره لرې دي؟

تیمور ملك ځواب ورکړ : نژدې لس میله به وي! تاته له ښار نه د وتلو پوره فرصت شته.

: چیرته د تلو لپاره! طاهر په داډ منه لهجه وپوښتل؟

: بغداد لوری ته! تا غوښتل چې بغداد ته ولاړ شې که نه؟

: نه اوس له بغداد نه دلته زیات کار دی.

: ډیر ښه ته له ماسره ولاړ شه، تیمور ملك دا وویل او یوه سپاهی ته یې امر وکړ چې خپل اس او توره طاهر ته ورکړي.

*****

(۵)

د خوارزم شاه د لومړی ماتی نه وروسته د سرحدی نورو ډیرو ښارونو په څیر د قوقند زیات اوسیدونکی د لویدیځ ښارونو ته لیږدیدلی وو، له هغه وروسته چی تیمور ملك ته سلطان د نورو پوځونو د ور استولو نه انکار وکړ نو هغه پاتی خلك هم له خطرنه سم وپوهول او دا مشوره یی ورکړه چی ماشومان، تورسری او بوداگان له ښار نه وباسی او کوم خوندی ځای ته یی ورسوی، خو پردی سربیره د قوقند ښار دریمه برخه خلك لا په ښار کی پاتی وو، د ځینو خلکو لا تر اوسه دا گومان ؤ چی د خوارزم شاه ماته اصلاً د غرنی سیمی او د لاری له هسکو تیتو سره د نابلدی په سبب وه او تاتاریان به پر بری برسیره د قوقند په لوری راوراندی نشی، خو د مغلو د راتگ خبر په ښار کی گډوډی جوړه کړه، او خپل ماشومان او تور سری یی راوویستل د واوری اوریدو سره سره یی په یوه او بله خوا منډی وهلی، تیمور ملك او ملگرو یی په شا وخوا غونډیو کی مورچل ونیول او د مغلو د لښکر مخکینی ډلی یی تر دری ورځو ښار ته له ننوتلو ایساری کړی، د یرغل کوونکو مغلو شمیر ورځ په ورځ زیاتیده، په تیرو دری ورځو کی د تیمور ملك سرښندویانو په میړانه د تاتاریانو یرغلونه په شا کړل، خو د هغوی د شمیر زیاتیدو په سبب یی نور مخه نیول ورته گران شول، په څلورمه ورځ چی له تیمور ملك سره یوازی زر تنه سرښندویان پاتی شول هغه ته یی جاسوسانو خبرو ورکړ چی د چنگیز خان زوی «زوچی» له یوه لوی لښکر سره پرمخ راروان دی.

اوس د تیمور ملك وروستی مورچل د سیند په منځ کی یو ټاپو ؤ، چی د ساتنی بندوبست یی له څو میاشتی پخوانه کړی ؤ، په یوه زمانه کی د قوقند واکمن او د لوړی طبقی خلك په دی ټاپو کی اوسیدل، پخوانی کلا او څو ویجاړی کنډوالی اوس هم پاتی وی، د شپی مهال د ښار هغه اوسیدونکی چی له تیمور ملك سره یی د یو ځای مرگ او ژوند ژمنه کړی وه په کښتیو کی دغه ټاپو ته ورسول شول او بیا یی څو سپاره پاچا ته د مرستی د وروستی غوښتنی لپاره واستول، ټاپو ته نژدی سیند دومره سورور ؤ چی له یوی څنډی نه ایله غشی بلی څنډی ته رسیدای شوای. تیمور ملك له څو میاشتو راسی دلته د څو میاشتو اذوقه او نور ضروریات هم ذخیره کړی وو.

زوچی دا احساس کړه چی دغه ټاپو به زر فتحه نه شی نو دغه قوماندہ یی خپل

یوه مرستیال ته وسپارله، نیمایی پوځ یی ورته پریښود ، دی پخپله له نور پوځ سره د جنوب لویدځ په لوری ولاړ.

تاتاریانو د شاوخوا کلیو باندو خلك د میږو او وزو په څیر راوستل او د سیند په غاړه یی تاپوته د ډبرو د لاری جوړولو لپاره وګومارل، په زرګونو تنه بوډاګانو، تورسریو او ماشومانو به د مغلی سپاهیانو د لوڅو تورو په سیوری کی ډبری راوړی او په سیند کی به یی غورځولی، د سیند په غاړه د تاپو په لوری ورو ورو لاره جوړیده، تیمور ملك دغه خطر احساس کړهغه د څولویو لویو کښتیو پر څنډو د لرګی له تختو مورچی جوړی کړی او دننه یی خپل غوره غشی ویشتونکی پکی کښینول د سیند پر څنډه په راتولو تاتاریانو یی حملی پیل کری.

په دغو حملو کی لومړی مغلو زیات مړی ورکړل، کله کله به په زور دلاری جوړولو لپاره راوستل شریو هم چی تاتاریان د حمله راوړونکو په لوری متوجه ولیدل دوی به پری پر ډبرو حمله وکړه او بیا به یی په سیند کی ورتوپ کړل، ځینی به د کښتیو د حمله راوړونکو په وجه وژغورل شول او ځیني به د مغلو د غیشی ویشتونکو د غیشو په یرغل کی ووژل شول.

ددی ستونزو په وړاندی تاتاریانو پر منجنیق د ډبرو پرځای سکروټی او یا د بل شویو تیلو لوښی پرکښتیو وروویشتل او کښتیو ته یی اور واچاوه.

تیمور ملك د مغلو ددی حربی په وړاندی پر کښتیو چتونه ودرول او دننه د یرغل کوونکو لپاره یی وړوکی وړوکی سوری پکی پریښودل، خو ددی ټولو هڅو سره سره د تاتاریانو د بی شمیره پوځ په وړاندی تیمور ملك بی وسه شو او د سیند له غاړی نه د تاپو په لوری لاره ورو ورو ور نژدی کیده.

علاو الدین محمد خوارزم شاه د تاتاریانو له لاسه د رومبی ماتی نه وروسته دومره بی زړه شوی ؤ چی د تیمور ملك د څو ځلی پیغامونو او غوښتنی سره یی هغه ته مرسته ورنه کړه، بلکی ځواب یی ور واستاوه چی د تاپو دفاع، پریږدی او له دوی سره یوځای شی، خو د تیمور ملك غیرت دا نه خوښوله چی خپل ملکګری یوازی پریږدی، کله چی لاره تاپوته دومره نژدی شوه چی په منجنیق تاپو او د تاپو د څنډو مورچلونه تر برید لاندی راغلل نو تیمور ملك ته د تاپوله پریښودلو پرته بله لاره پاتی نه شوه.

* * * * *

(٦)

یو ماښام تیمور ملك خپلو ملګرو ته د تاپو د خالی کولو حکم وکړ، د شپی مهال پر اسمان وریځی راخوری وی د تیمور ملك تول ملګری په کښتیو کی سپاره شول او چی لږ وړاندی ولاړل اوربښت پیل شو تیمور ملك د وریځو له امله د شپی تیاره یوه غیبی مرسته بلله خو چی کله باران پیل شو او توری وبرېښیدی نو دا اندیښنه ورته پیدا شوه چی د تورو په برېښنا کی د تاتاریانو پهره داران دوی ونه وینی که داسی وشول نو ډیر سخت زیان به ور واوړی، نږدی نیمه شپه هغه ته معلومه شوه چی د دوی اندیښنه بی ځایه نه وه، دوی د تورو په برېښنا کی د سیند دواړو غاړو ته تاتاریان پر اسونو سپاره ولیدل چی، لږ نور وړاندی ولاړل د پلیو سپاهیانو زیات شمیر یی ولیدل چی روان وو، له تیمور ملك سره د خپل پوځ وتلی افسران سپاره وو، ده تری مشوره وغوښتله، د تولو اتفاق پردی پریکړه راغی چی ګڼ ځنګل ته ورسیږی نو کښتی به څنډی ته کړی، که په تیاره کی له تاتاریانو سره د دوی مقابله وشوه هم ځینی کسان به په تیاره کی په یوه او بل لوری ځان وایستلی شی، تیمور ملك د تولو د رایی له اوریدو نه وروسته وویل : طاهر تر اوسه چوپ دی زه د هغه رایه اوریدل غواړم.

د کښتی له یوی څنډی نه ځواب راغی: زما په نظر موږ ته دوی لاری په مخکی دی، یوه دا چی په یوه ځای کی څنډی ته شو او تر وروستی سلګی پوری جګړه وکړو، که ځنګل وی او که هوار میدان دا تولـه سیمـه له مغلو نه ډکه ده او زموږ لپاره د تیښتی چانس ډیر کم دی. په دی صورت کی که د یوه په بدل کی دوه نه وی نو یو خو ضرور وژنو، که په کوم ځای کی موږ پر څنډی پلی کیږو او بیا په یوه او بله تښتو او له شا د غشو نخښه ګرځو زه دا غوره ګنم چی تر شا پر تېر غشی وخورو.

بله لاره دا ده چی تر هر میل وروسته یوه کښتی شاته پریږدو، او چی کله نوری کښتی وړاندی تیری شی دوی څنډی ته ووزی او پلی شی او تشی کښتی بیرته سیند ته ورتیل وهی، تاتاریان به خامخا له پاتی کښتیو سره پرمخ روان وی او شاته چی کومی کښتی پاتی کیږی د هغو د ژغورنی امکانات ډیر دی.

د تاتاریانو د دوکی لپاره به موږ د برېښنا په ړرق کی پر هغوی غشی اوروو، په دی ډول به موږ تر لمر ختو پوری په یوه او بل لوری د تیښتی فرصت ترلاسه کړو. وروستیو څو تنو ته ښایی د کښتیو څنډو ته ایستلو فرصت په لاس ورنه شی ځکه خو هغوی باید ښه لامبوزن وی.

د طاهر له دوهم تجویز سره ټول سلا شول، خو تیمور ملك دا اندیښنه وښوده چې کله تشه کښتي بیرته سیند ته تیل وهل شي هغه د نورو کښتیو په څیر د سیند په منځ کې نشي تلای، د کښتیو د شمیر د برابر ساتلو لپاره د کښتیو ساتل ضروري دي، ددې هدف لپاره د نورو کښتیو تګ باید کرار شي خو دا هم ضروري ده چې هغه باید له څنډې نه لرې وي، چې کښتي تشه شي نو دا دواړه صورتونه امکان نه لري.

د لږ بحث نه وروسته دا پریکړه وشوه چې په هره کښتي کې باید یو داسې رضا کار وي چې لامبو یې زده وي، او چې سپارلي پر څنده پلې کړي بیرته کښتي له کاروان سره یوځای کړي.

باران ودرید، د وریځو له تور شلیدلي څادر نه دلته هلته ستوري وځلیدل، په یوه ګڼ ځنګله کې یې لومړنۍ کښتي پریښودله او چې لږ ځنو وروسته دغې کښتي د خپلو سپارلیو له پریښودونه، وروسته د کښتیو کتار ته ځان ورساوه، او د هغې رضا کار د خپلو سپارلیو په امن ښکته کولو پیغام راوړ دوهمه کښتي شاته شوه.

د شپې په وروستي برخه کې په کښتیو کې یوازې دیرش تنه رضاکاران سپاره وو، او نوره ټوله سپارلي په څنډو پلې شوي وه، پر څنډو د دوی په تعقیب پسې راوتلي سپاره هم‌غسې ورسره غبرګ روان وو، تیمور ملك یو پر بل پسې رضاکارانو ته په سیند کې د ځان غورځولو او څنډې ته د رسیدو امر وکړ، او کله چې ټولې کښتي تشې شوې نو خپل ملګري ته یې وویل : طاهره! نور وخت مه ضایع کوه، کښتي تیتیږي، که له دې نه کومه یوه څنډې ته ولاړه نو مغل به خبر شي، که ستا لامبو نه وي زده نو یوه کښتي څنډې ته بوزه.

طاهر ځواب ورکړ : زما لامبو زده ده خو ته به څه کوې؟

تیمور ملك په غمجنه لهجه ځواب ورکړ : ماته د دوبیدونکې بیړۍ د ماڼو د ذمه واري پوره کولو موکه راکړه، کله چې ته څنډې ته ووزې زه به هم د ځان ژغورلو هڅه وکړم.

طاهر یې چې دوه زړې ولید تیمور ملك ووېل : زه له امر نه غاړه غړول ښه نه ګڼم زر کوه!

طاهر ځواب ورکړ: زه ستا د امر له منلو نه غاړه نه غړوم خو زما یوه هیله ده!

تیمور ملك ووېل : زه نور د څه هیلې د پوره کولو اهل نه یم.

ووايه څه وايي، وخت مه ضايع کوه سپيدې چوي!
طاهر وويل : ته وعده وکړه چې که له دې وروسته په ژوند کې کله ماته له تانه د څه غوښتنې موقع په لاس راغله ته به يې نه ردوې!
تيمور ملك ځواب ورکړ : تا ځان د داسې وعدې اهل ثابت کړ، ورځه زه ستا د ...وې پرځای دوې غوښتنې ترسره کوم.
طاهر خدای پامان وويل او ورو په اوبو کې ...کـه سو او د څنډې په لورې يې لامبو ووهله، د شپې د سړې هوا او ستوماني په وجه يې بدن شل شوی ؤ، د سيند ،وبه له زغم نه وتلې يخې وې، دی چې څنډې ته ورسيد هلته له يوه بل مصيبت سره مخ شو، څو سپاره په څنډه ... ؤ، طاهر د يوې ونې ريښې ونيولې او په اوبو کې پاتې شو، او چې سپاره تير شول هغه د راوتلو هڅه وکړه خو هغه اوس پلې سپاهيان وليدل، د هغه بدن بلکل کرخ شوی ؤ، کله چې پلي تير شول له شانه يې په يوه واټن بيا د سپرو د اسونو د پښو ترپهار واورېد، د طاهر حوصلې ځواب ورکړ ، زر له اوبو نه راووت د يوې ونې په تنه يې تکيه وکړه او ودريد، په څنډه د ونو او تيارې په سبب د تاتاريانو پوځ ګډوډ ورانده روان ؤ، طاهر څه سوچ وکړ او توره يې له تيکي راوايستله، کله چې پنځلس شل تنه سپاره تير شول هغه د ګڼو ونو په منځ کې د يوه آس د شنهار غږ واورېد، ده د ښاخونو په منځ کې لاره وايستله او ورو ورو ورنژدې شو، طاهر په تياره کې په ځير ځير وکتل او کوم لورې ته چې د سپاره د آس مخه وه همغې خواته ورنژدې شو او د يوې ونې شاته ودريد، د سترګو په رپ کې بيا د طاهر يو لاس د اس پر قيضه ؤ او پر بل يې سپور په توره وواژه په بيړه يې د رېيدونکې مغل خولۍ او پوستين ترې وښکل او پخپله يې واغوستل او پر اس سپور شو د سيند په غاړه روان شو.

*****

(۷)

د سهار د نخښو رابرېدو لپاره لا څه وخت پاتې ؤ، تيمور ملك چې خپله کښتۍ پرېښوده او په لامبو يې څنډې ته ځان ورساوه نو د ونې د تنې له شانه پرې غږ وشو:
تيموره!
هغه ټکان وخوړ يوه او بله خوايي وکتل او ژر تر ژره يې توره وايستله او د خطر سره يې د مقابلې لپاره ځان تيار کړ، د ونې د تنې له شانه بيا غږ اوچت

شو: ویریږه مه زه یم طاهر!

تیمور ملك زر دونی شاته څان ورساوه، طاهر د اس جلب نیولی ولاړ ؤ، تیمور ملك په بیړه ورته وویل : ددی آس په ترلاسه کولو سربیره ته لا دلته ولاړ یی؟

طاهر په داډ ځواب ورکړ: دغه اس ستا لپاره دی اوس بیړه کوه!

تیمور ځواب ورکړ : زه د خپل تقدیر نه د وتلو لپاره له چانه متروکه نه اخلم!

طاهر ځواب ورکړ: تا زما د دوو غوښتنو منلو وعده کړی ده، او زما لومړنی غوښتنه همدغه ده.

تیمور ملك بی ځوابه غوندی شو ویی ویل : دلته بحث کول ښه نه دی راځه له ماسره!

طاهر په لاس کی د آس قبضه نیولی وه او له تیمور سره روان شو، د سیند له غاړی نه نژدی دری سوه گزه لری تیمور ملك ودرید ویی ویل آیا ستا نیت له مانه د وعدی اخستو په وخت کی همدغه ؤ ؟

: هوکی؟

: ستا باور ؤ چی اس به په لاس درځی او ماته به یی راولی؟

: دا زما اراده وه د خدای (ج) شکر دی چی پوره می کړای شوه.

تیمور ملك د طاهر له لاسه د اس قبضه واخستله او پری سپور شو بیایی وویل : ته زما تر شا سپور شه!

طاهر ځواب ورکړ: په دی ډول به دواړه پاتی شو.

تیمور ملك وویل : پر خدای دومره بهروسه درلودونکی انسان مایوسه باید نه شی، بنایی ستا په سبب زه هم وژغورل شم، زر کوه، د مغلو غړونه راځی لکه چی هغوی تشی کښتی ولیدلی.

طاهر د تیمور ملك ترشا سپور شو، نژدی دوه میله په ځنگل کی له مزله وروسته د غونډیو لړی پیل شوه، طاهر د آس ستومانی احساس کړه څو ځله یی غوښتل چی پلی شی خو تیمور ملك پرینښود.

د لمر له لومړنیو وړانگو سره دوی یوی تنگی دری ته ورسیدل، او چی طاهر شاته وکتل د تاتاریانو څو سپاره په تراټ پسی ورزغلیدل.

طاهر وویل : هغوی په موږ پسی راغلل، د خدای (ج) په خاطر ما دلته پلی کړه زه یی په همدی تنگی کی ایسارولی شم، تا ته به د ژغورنی موقع په لاس راشی.

تیمور ملك بیله دی چی آس ودروی پوښتنه وکړه:
هغو ی څو کسه دی؟
:اوه!
: نو زه هم درسره پلی کیږم.
: خو څوك ویلی شی چی په دوی پسی به لوی لښکر نه وی؟
: همدغه سبب دی که نه چی زه تایوازی نشم پریښودلای.
طاهر وویل : تا زما د دوو غوښتنو د منلو وعده کړی وه زما دوهمه غوښتنه همدا ده چی تاسو ما دلته پلی کړی.
: زه د ځان په خاطر ستا ددی قربانی سبب پوښتلی شم؟
: خوارزم د مغلو د سیلاب په مخ کی وروستی کمر دی، او دی کمر ته ستا په څیر ساتونکی په کار دی زه پر تا احسان نه کوم غواړم د اسلامی نړی یو خدمت ترسره کړم.
خوارزم شاه څو بی زړه مشاورینو له کاره غورځولی دی، ته په هغه کی د نوی ژوند ساه پوکلی شی.
تیمور ملك ځواب ورکړ : زه یوازی یو سپاهی یم، توره وهل می زده دی، په اولس کی د ژوند ساه پوکل ستا غوندی خلکو کار دی، ته ورځه زه له اس نه پلی کیږم او د هغوی لار بندوم.
طاهر وویل : خپله وعده مه هیروه، زما پر خدای (ج) تکیه ده، موږ دواړه به یو ځل بیا سره یوځای شو، طاهر دا وویل او له زغلیدونکی اس نه یی توپ کړل، تیمور اس ودراوه او ویی ویل :
په ځولی کی دی څو غشی دی؟
طاهر ځواب ورکړ : پنځه دانی!
تیمور ملك خپله د غشو «کځوړه» ور وغورځوله او ویی ویل : شپږ به په دی کی هم وی، کاشکی د خوارزم په پوځ کی ستا په څیر پنځه سوه تنه سپاهیان نور وای.
تیمور ملك اس چارگام خوشی کړ، او طاهر د تنگی په یوه کنډو کی د غونډۍ په یوه لوړه اوږه د یوی ډبری ترشا مورچل ونیو.

* * * * *

(۸)

کله چې لومړی سپور د کنډونه ور واوښت طاهر په غشي وویشت او هغه د اس له شانه لرې وغورځېد، په دې ځنډ کې بل سپور له کنډونه راواوښت او د طاهر د غشي دم ته برابر شو، د هغه دوهم غشي هم په نخښه برابر ولګېدو خو درې تنه نور سپاره په یو ځل له کنډونه را واوښتل، طاهر له هغوی نه یو وویشت پاتې نورو اسونه ودرول او د بېرته ګرځېدو اراده یې وکړه، خو له پاسه دوه غشي نور راغلل او یو مغلي سپاهی بل تپی شو له اس نه ولوید، دوهم د اس تر شا ځان پناه کړ او ځان یې وژغوره او خپلو نورو ملګرو ته یې د خطر خبرداری ورکړ، ترڅو طاهر بل غشی په لینده کې ایښود تاتاری له اس نه پلی شو او د یوې ډبرې شاته یې پناه واخسته، هغه نورو ملګرو ته هماغسې چیغې وهلې او د خطر نه یې خبرول.

طاهر د ډبرې ترشا سنګر پرېښود او د کنډو بل لورې ته د غونډۍ په اوږه ورواوښت، لاندې نژدې دېرش څلوېښت ګزه لرې دوه سپاره ولاړ وو او د ناري وهونکي ملګري ځواب یې ورکاوه، طاهر د یوې ډبرې ترشا کښیناست.

دغو دوو مغلي سپاهیانو په خپله ژبه پخپلو کې څه سره وویل بیا له اسونو پلي شول اسونه یې په یوه بوټي وتړل او د غونډۍ داسې ځای ته ورسیدل چې هلته د پټېدو لپاره څه ځای نه ؤ، ناڅاپه د طاهر له لیندۍ نه یو پر بل پسې دوه غشي ووتل او هغې دوه تنه ولویدل او څو ګزه لاندې پرېوتل، طاهر له ډبرې نه سر راپورته کړ لاندې یې وکتل چې په مخ کې یې یو سپوری ولید، ناڅاپه یې شاته را وکتل او غوني یې زیږه شول پنځه شپږ ګامه پاس یو تاتاري توره ایستلې ورته را روان ؤ، طاهر زر لینده وغورځوله او جګ شو، د هغه لاس لا د تورې موټې ته نه ؤ رسیدلی چې تاتاري د تورې وار پرې وکړ، دې په بېړه یوې خواته خم شو او د مغلي پوځي توره په تیږه ولګیده. د هغه د بل وار نه د مخه طاهر یو ګام شاته شوی ؤ او توره یې ایستلې وه.

څو ځله د دواړو تورې یو له بل سره وجنګیدلې او تاتاري خپل حریف خطرناك احساس کړ او شاته تلو، هغه څو ځلې د پښې خرلو او مقابلې هڅه وکړه خو زور یې ونه رسید د ډبرې وروستي څنډې ته چې ورسید د طاهر توره یې پر سر ولګیده شاته ورغړید او په یوه ژور ګړنګ کې ولوید.

طاهر د سترګو په رپ کې له غونډۍ نه راکوز شو او په بوټو تړلو آسونو نه په یوه سپور شو چې تر کنډو واوښت نو دده په غشو زخمي یو نیم ژواندی مغل یې

ولید چی پر کمره یی خپل سر واهه، دی ورپلی شو غشی یی تری راوکیښ او بیرته یی په خپله د غشو کڅوړه کی واچاوه او بیرته پر اس سپور شو.

طاهر اس چارګام وزغلاوه او د واورینو غرونو نه تیریده، په ځینو سختو لارو کی یی د اس رفتار ورو کاوه د لاری په باب یی هیڅ معلومات نه ؤ، د غرنیو خوړونو اوبه لری نه وی خو له لوړی یی سیك ختلی ؤ، د شپی یخنی یی وجود کرخت کری ؤ، او اوس هم سره له دی چی لمر تود ؤ خو د ساړه شمال څپی یی پر بدن له زغم نه وتلی وی.

په لاره کی څو داسی کلی مخی ته ورته راغلل چی سوځیدلیو کوزونو او د ماشومانو او ښځو بی ګور او کفنه مړیو یی د تاتاریانو د یرغل او وحشت ګواهی ویله.

ماسپښین مهال طاهر د یوه پراخ میدان نه تیریده، پر آسمان وریځی راخوری شوی او یخنی هره شیبه زیاتیدله، قضا ماسپښین واوره اوریدل پیل شول، د طاهر آس نژدی له پښو لویدلی ؤ، غاړه یی ښکته اچولی وه او ورو ورو روان ؤ، دواوری په توپان کی د طاهر پام نه ؤ چی په کوم لوری روان دی، خو هغه د دریدو پرځای تګ غوره باله.

مازدیګر مهال اس په واوره وغورځید لغتی یی ووهلی او مړشو، طاهر پلی مزل پیل کړ، هغه به ایله دوه میله مزل کړی ؤ چی نور یی حوصلی ځواب ورکړ، د واوری توپان نور هم زورور شو شپه راتلونکی وه، پر طاهر د بیهوشی څپه راتله، زړه یی غوښتل چی په واوره وغځیږی او ویده شی، خو هغه ته معلومه وه چی دا به دده وروستی خوب وی، بیایی د زړه په زور څو ګامه ګړندی واخستل خوله څو ګامه وروسته یی بدن بیرته بی سیکه شو په واورو کښیناست، خو د انسان په فطرت کی د ژوندی پاتی کیدو هیله تر وروستی شیبی له مایوسیو سره جګړه کوی.

طاهر یو ځل بیا اوچت شو، آسمان ته یی وکتل او د ډیری عاجزی په حالت کی یی دعا وکړه:

ای د ځمکی او آسمان خاونده! زما د ژوند یو ارمان هم تر اوسه نه دی پوره شوی، نور په ما کی دوراندی تلو همت نشته، تاته پناه دروړم او له تانه مرسته غوارم، خو که زما په برخه له مرګه پرته بل څه نشته نو ماته د یوه مؤمن حوصله راکړه.

ددی دعانه وروسته طاهر داسی انګیرله لکه د ژوند له یوه بوج نه چی بی غمه شوی وی، کښېناستلو چی یو غړ یی تر غوږ شو او په رګونو کی یی سړېدونکی وینه بیرته توده شو، دا د یوه اس د شنهار غږ ؤ، طاهر یوه او بله خوا وکتل نژدی پنځوس ګامه لری یو اس څنګ غوږونه ولاړ ؤ او دده په لوری یی کتل.

طاهر په منډه ځان اس ته ورساوه، آس دوه دری ګامه ورته رامخی ته شو او د هغه په تټر یی خپل مخ وموښلو، پر آس زین تړلی ؤ طاهر چی ولید وپوهیده چی دا د کوم مسلمان ؤ، له زین نه یی واوره وتوږله او پری سپور شو اس څو قدمه واخیستل خو بیا ودرید او په یوه راوتلی ځای بی پښه ووهله، طاهر ورکوز شو واوره یی یوه او بله خوا واړوله او د یوه انسان مړی یی راویوست د هغه په پوښتیو او خیټه دوه غشی ښخ وو، طاهر انا لله و انا الیه راجعون وویل او بیرته یی هغه په واورو کی وپوښه، اس یی پرور میږ وټپاوه او پښه یی پری واړوله.

د ژوند نوی هیلی د طاهر په رګونو کی نوی تودوخه وزغلوله، چی لږ وړاندی ولاړ د اس پر زین تړلی یوی کڅوړی ته یی پام شو لاس یی پکی دننه کړ د غوښی او پنیر یوه یوه ټوټه یی راوایستله، سمدستی یی وخوړلی او د مړیدونه وروسته یی په ځان کی د څواك احساس وکړ اس ورو ورو په خپله طبعه روان ؤ، طاهر یی دمخ اړولو او په کوم بل لور د ګرځولو ضرورت نه احساساوه.

# ثـــريـــا

تیاره ماښام طاهر یوه ویجاړ کلي ته ورسید، کنډوالو شاهدي ویله چې د مغلو د سیلاب کومه څپه پردې کلي تیره شویده، د اس له مزله داسې ښکاریده چې شاوخوا نژدې کوم کور دده هدف نه دی، طاهر په ځیر ځیر کتل چې که د کوم کور له کړکي او یا وره نه څه رڼا ووینې، د زیاترو کورونو دروازې خلاصې وې او د واورو پنډې پنډې ډیرې ددې ګواه وې چې دننه څوك پکې نشته، د یوه کور د ترلې دروازې مخې ته چې طاهر ورسید د تورې په څوکه یې یوه پله دننه تیله کړه د پلې له خلاصدو سره سم د شړیدلیو مړیو له زغم نه وتلې بوی د طاهر لاره ډب کړه، اس غوږونه ځك کړل غاړه یې کږه کړه او د وړاندې تلو اراده یې وه طاهر د اس پرورمیږ لاس راتیر کړ ویې ویل : زما دوسته ! زما حوصله ځواب راکوي که کومه امن ګوښه درته معلومه وي ځان رسوه.

کله چې اس له کلي نه بیرته بهر وتلو د طاهر په خیال کې وروګرځیدل چې ښایي د اس پر عقل باور هوښیاري نه وي، د شپې تیاره ورو ورو زیاتیدله، هغه اس یو ځل ودراواه او په زوره زوره یې چیغې کړې:

څوك شته! څوك شته!

د هغه غږ د شپې په غیږه کې چوپ شو، او له دې وروسته د لیوانو آوازونو دده تصور ور رد کړ، اس وشنیده ګواکې خپل سپاره ته یې ویل : ولې مایوسه کیږې منزل ته رارسیدلي یې.

طاهر اس بیا خپلې خوښې ته پریښود، له کلي نه لږ لرې په ګڼو ونو کې تیر شو او بیا په یوه لوړه غونډۍ وخوت د واورې اوریدو او تیارې له امله طاهر تر دوه ګزه وړاندې هیڅ نه لیدل، د غونډۍ پر سر له یوه دیوال سره په خوا کې اس وړاندې روان شو، څو قدمه وړاندې په یوه خلاصه دروازه ورننوت او په شنهار شو د طاهر په مخکې یو لوړ کور ؤ، هغه ارادي ځواك چې دې یې تر دې ځایه رارسولی ؤ نور ځواب ورکړ، د یوه نغرۍ بل اور ته کښیناستل او ویده کیدل یې

اوس تر ټولو لویه هیله وه.
د کور دانګړ دروازه خلاصه وه، خو دننه د رڼا نوم او نخښه نه وه، ده فکر وکړ چې ښایي په دې کور کې هم څوك نه وي ښایي اس دده د وروستی منزل لپاره ددې کنډواله کلي تر ټولو غوره کور ټاکلی وي، اس چې انګړ ته ننوت ودرید طاهر ترې پلې شو، د هغه پښې پړسیدلې وي او نور یې د بدن د بوج اوچتولو ځواك نه درلود، بیایې په خپل ټول زور چیغې کړې: څوك شته! څوك شته؟
دده غږ د دېرو له دیوالونو نه بیرته راغبرګ شو او آزانګې یې وکړې، ده اس پریښود او دواړه لاس یې په دیوال تکیه کړل او چیغې یې وهلې وړاندې ولاړ.
د دهلیز نه تیر شو او یوې کوټې ته ورغی، د کوټې د دیوال سره په څلورو خواوو کې راوګرځید، خو ده ته د خپل غږ ځواب راغبرګ نه شو، بیایې په خیال کې وروګرځیدل چې له شګونه د هیلو مانۍ جوړوي، که دلته کوم انسان پاتې وای نو د کور ټولې دروازې به خلاصې نه وي.
په زړه کې ورتیره شوه چې اوس د اور یوه سپرغۍ زما ځان ژغورلی شي خو د اور بلولو لپاره ورسره څه شی نه وو، ناڅاپه یې تر پښو لاندې نرم شی احساس کړل ورتیټ شو چې لاس یې پرې وواهه یو پوستین و کښیناست او هغه یې زر واغوست، خو زر یې داسې احساس کړه چې ده تللی تودوخه دغه پوستین نشي ورته راګرځولی، خو څو ساعته وړاندې یې اس یوه غیبي مرسته وګڼله، اوس هم دده ضمیر ددې منلو ته تیار نه ؤ چې الله به یې یوازې پریږدي، باور یې ؤ چې الله تعالی په خپل رحمت تر دې ځایه را رسولی دی، ده خدای (ج) ته د یوه ستر هدف لپاره د ژوند دعا کړې وه او دغه هدف تر دې ځایه په رارسیدو نه پوره کیده، دا کور دده وروستی منزل نه دی، تقدیر یوازې دده امتحان اخلی، نهیلي د مؤمن له شان سره نه لګیږي، دا شپه به تیره شي سهار به د لمر وړانګې ده ته د ژوند نوې تودوخه وروبخښي او دا هم امکان لري چې ددې کور په کوم ګوټ کې د الله کوم بنده اور بل کړی وي او دده د ورتګ انتظار کوي، په دې ذهني کش و کړپ کې لمونځ ور په یاد شو، زر زر یې تیمم وواهه، او خپل ټول ځواك یې راټول کړ او راپورته شو.
د لمانځه نیت اراده یې چې کوله په زړه کې وروګرځیدل چې کیدای شي ددې کور په کومه ګوښه کې څوك د تاتاریانو له ویرې غلي شوي وي، هغه په لوړ آواز آذان وکړ او له لږ شیبې انتظار نه وروسته د چا له راتګه مایوسه شو او نیت یې

وتاړه.

په لمانځه د بوختیدو نه وروسته یې د بدني تکلیف احساس ورو ورو غلی شو، د لمانځه له ختمولو وروسته یې د دعا په وخت کې تنې رڼا ته پام شو، زړه یې په ټوپونو شو او زر یې شاته مخ واړاوه.

*****

(۲)

یو اته کلن ماشوم مشال په لاس کې ولاړ و، د هغه ترڅنګ یو بل زلمی ؤ چې توره یې په لاس کې نیولې وه، د ځوان څېره ډېره زیاته جذابه او زړه وړونکې وه، د جامونه یو ترکي سپاهي ښکارېده طاهر په خپل ژوند کې تر اوسه دومره زړه وړونکې څېره نه وه لیدلې هغه د یوې شیبې لپاره حیران ورته کتل، د ماشوم او دې زلمي په څېرو کې زیات ورته والی و.

طاهر دا احساس کړه چې خدائ دده د لارښوونې لپاره له اسمانه دوې پرښتې را استولې، دواړو د اندیښنې په حالت کې ده ته کتل، طاهر ورته وویل : السلام علیکم! ماشوم او ځوان دواړو په یوه غږ د هغه سلام ته وعلیکم وویل ، خو د ماشوم پرځای د ځوان د غږ ترنم زیات دده په غوږو کې راغبرګ شو ځوان په عربي وویل : که زه اشتباه نه کوم ته عرب یې؟

طاهر په حیرانۍ وویل : تا څه وړ وپیژندم؟

: ستا آذان مې چې واورید لهجه دې عربي وه.

طاهر وویل : ستا لهجه هم له عربو نه زیاته بدله نه ده.

د ځوان پر شونډو پیکه او مایوسوونکې موسکا وزغلیده او ویې ویل زما مور عربه وه، خو اوس ددې خبرو مهال نه دی، ته د واورو له توپان نه راتیر شوی یې راځه له ماسره!

د ځوان په غږ کې ازانګې او موسیقي وه، داسې اغیزه وه چې له غوږونو نه تیرېږي او زړونو ته رسیږي.

طاهر جګ شو له ځوان سره تلو ته چمتو شو ځوان له دوه درې ګامه اخستلو وروسته ودرید ویې ویل : ته د شپې مهال دلته څه وړ راغلې؟

طاهر ځواب ورکړ : ماته له دې ځایه څو میله لرې په دښته کې په واورو کې پراته یوه مسلمان شهید آس په لاس راغی، هغه آس زه دلته راورسولم.

د ځوان په څېره کې د غم او خفګان نخښې رابرې شوې بیایي وویل : تا ښه

ولید هغه تپی ؤ که د واورو توپان وژلی ؤ؟
: هغه تپی و، که هغه ستاسو عزیز او دوست ؤ نو افسوس کوم.
ځوان وویل : هغه زموږ پخوانی خادم ؤ، ما نن له یوه ضروری پیغام سره سمرقند ته واستاوه... ستا شونډی نیلی شوی، راځه دغه ځای خوندی نه دی.
کشر ماشوم چیوه په لاس کی په مخکی شو له دوو کوټونه دننه تیر شول او بیا یوه تنگ دهلیز ته ووتل، ځوان په دهلیز کی د ډبرو یوه تخته لری کره، لاندی یو سوری ؤ چی یو سری په اسانی تری کوزیدای شوای، د سوری نه لاندی د لرگو زینه ښکته شوی وه، لومړی کشری ماشوم او بیا وروسی طاهر سمڅی ته وروښکته شول او د تولو په پای کی زلمی ور ښکته شو او سوری یی بیرته په همغه ډبره بند کړ.
د زیر زمینی په یوه کونج کی په نغری کی اوریل ؤ، پرغولی یوه ښکلی قالینه غوړیدلی وه، او یوی خواته دری څلور پوستینونه ایښی وو، ځوان طاهر ته یوی خواته د کښیناستلو ست وکړ ویی ویل : ته به وږی یی زموږ سره د غوښو له څو وچو ټوټونه پرته هیڅ نشته.
: ما ستا سو د خادم له کڅوری نه غوښه او پنیر واخستل، اوس زه له اور پرته بل هیڅ شی ته اړتیا نه لرم، دایی وویل او بیا طاهر خپلی موزی وایستلی او د اور خواته یی پښی وغزولی، کوټه ښه توده وه، طاهر ناست ؤ خو ورو ورو پریوت او لږه شیبه وروسته په درانده خوب ویده شو، ځوان اوچت شو پر هغه یی یو پوستین ور وغوړاوه.

*****

(۳)

د یوه خواږه او زړه وړونکی غږ په اوریدو طاهر سترگی وغړولی او د پریشانی په حالت کی جگ شو کښیناست او ویی ویل : زه چیرته یم او بیایی د شمعی په رڼا کی ځوان ولید چی دی یی راپاڅولی ویی پیژاند او سمدستی یی وویل : سهار شو؟
ځوان ځواب ورکړ: اوس ماسپښین کیدونکی دی، ته ډیر زیات ویده وی.
: تر اوسه خو پوره تیاره ده!
: ته د کور د لاندی په کوټه کی یی، د لمر رڼا دلته نه راځی، د طاهر له سترگو نه د خوب خومار وورو لری کیدو خو د تیرو ورځو بدنی ستومانیو درد

یی لا په بدن کی ؤ، هغه له لږ سوچ وروسته وویل:

د شپې می له تانه ډیری پوښتنی زړه غوښتی خو خوب رالاندی کړم، اوس تاسو راته ووایی دلته څه کوی؟ او هغه ستاسو نوکر چیرته تلو او تاسو یی چاته پریښودی؟ زما په گومان دلته پاتی کیدل ډیر خطرناك دی، موږ باید زر تر زره له دی ځایه ځانونه وباسو.

ځوان ځواب ورکړ : ما هم له تانه ډیر څه پوښتل غوښتل خو ښه شوه چی ته زر ویده شوی، زما پلار ددی ښار حاکم ؤ، د سلطان له ماتی وروسته د شاوخوا کلیو په څیر په دی ښار کی هم ویره خوره شوه، خلکو له خپل بال بچ سره بلخ، بخارا او سمرقند ته هجرت وکړ، ما له خپل پلار سره په اوسیدو ټینگار وکړ خو هغه زه د خپل وړوکی ورور سره یوځای له یوی قافلی سره بلخ ته په تلو مجبور کړم په بلخ کی زما بابایو مشهور سوداگر دی، زموږ د قافلی شمیر د دوو سوو تنو په شاوخوا کی ؤ، چی زیات پکی تور سری او ماشومان وو، له دی ښاره نژدی شل میله لری زموږ پر قافلی د تاتاریانو یوی ډلگی حمله راوړه، میړونو په میدان مقابله وکړه، خو وسه یی ونه شوه، ټول یو یو ووژل شول، ځینو ښځو هم مقابله وکړه او ووژلی شوی او نوری ژوندی ونیول شوی، زما په مخکی ترټولو ستره مسأله د اسماعیل ژغورل وو، د ویری له سببه د هغه کریکی ما نشوای اوریدای، پلار می د طبیلی تر ټولو غوره اس راکړی ؤ، ما اسماعیل له کچر نه راکوز کړ او په شا پسی می راسره سپور کړ، او اس می چار گام خوشی کړ، د شپی د تیاری او گڼ ځنگل په سبب مغلو زه تعقیب نکړای شوای، خو زما به د هغو خویندو زړه سوری کوونکی کریږی هیری نه شی چی د تیښتی په وخت کی می اوریدی.

ځوان چی تردی ځایه خبره راورسوله چوپ شو، د هغه په غټو غټو ښکلو سترگو کی اوښکی را.ډنډ شوی، طاهر په ځیر ځیر ورته کتل، ماشوم چوپ په یوه کونج کی غلی ناست ؤ، د هغه په څیره کی هم د تیرو پیښو ځوروونکی نخښی او اثار وو، طاهر په ناستی هغه ته غیږ وغوړوله، ماشوم لږ ورته وکتل او بیایی په منډه ځان ورته راورساوه او په غیږ کی ورولوید په سلگیو شو، تر لږ ځنده یی شونډی بوڅی کړی او پر ژړا د راقابو کیدو هڅه یی وکړه، خو چی طاهر د هغه پر سر لاس راکش کړ او د تسلی ورکولو هڅه یی وکړه نو په زوره زوره یی وژړل.

طاهر ورته وویل : مه ویریږه موږ به ډیر خوندی ځای ته ولاړ شو.

هلك وويل : په لاره كې به مغليان وي، هغوى ماشومان خوري.
: نه، نه تاته چا په دروغو داسې ويلي دي.
زلمي طاهر ته وويل : اسماعيل به ماته تسلي راكوله نن خداى (ج) خبر دى په ده څه وشول.
طاهر په غور ځوان ته وكتل او ويې ويل:
گومان كوم چې ته د اسماعيل خور يې!
د هغه ښه ناڅاپه زيړه شوه او سترگې يې ښكته واچولې.
طاهر وويل : ويريږه مه، ستا عزت او ساتنه زما ذمه واري ده، تا خپله كيسه تر اوسه پاى ته نه ده رسولې.
كله چې نجلۍ بيا طاهر ته وكتل په سترگو كې يې اوښكې ځليدلې، هغې په لستوڼي اوښكې پاكې كړې ويې ويل : كاشكې ددې بې وسۍ او بې كسۍ په وخت كې زموږ د قوم له نجونو نه ځوانان جوړيداى. له تاتاريانو څخه د تيښتې نه وروسته بيرته خپل كور ته ولاړو، دريمه ورځ پلار جان ته دا خبر ورسيد چې پر ښار مغل يرغل راوړي، له هغه سره تول څلور سوه تنه سپاهيان وو، ځينو افسرانو مشوره وركړه چې له دې لږ پوځ سره له تاتاريانو سره مقابله د ځان وژنې په معنى ده، خو هغه ډير غيرتي ؤ، د ښار پريښودل يې غوره ونه گڼل، پلار جان ته مې جاسوسانو خبر راوړ چې پردې ښار د يرغل راوړونكو تاتاريانو شمير ډير نه دى د هغه باور ؤ چې څو ورځې به يې ايسار كړاى شي، په دې ځنډ كې به له سمرقند يا بلخ نه څه مرسته راورسيږي، خو د قوقند په اړه چې كومې اوازې خپرې شوې هغو د ښار دننه د خلكو زړونه وغورځول، ځينو افسرانو زما پلار جان ته ويل چې سلطان،تيمور ملك ته مرسته وانه ستوله، ته ولې د مرستې تمه ترې كوې؟ د پلار جان ورستي ځواب دا ؤ چې زه به خپل فرض پوره كړم ماښام مهال يې پوځ ته امر وكړ چې سهار وختي له ښاره راووزي او پر مغلو يرغل وكړي خو تر سهاره نژدې دوه سوه تنه تښتيدلي وو، تردې چې زموږ د محل زيات خدمتگاران هم وتښتيدل.
سهار مهال له رخصتيدو نه دمخه پلار جان د لومړي ځل لپاره ددې سمڅې لاره راوښودله او علي يې راسره پريښود، علي زموږ پخوانى خادم ؤ، پلار جان په دې سمڅه كې د څو ورځو خوراك هم پريښود، موږ ته يې وويل چې كه موږ ماته وخوړه هم تاسو له دې كوټې نه د تيښتې هڅه مه كوئ، ځكه چې مغل چاته د تيښتې فرصت نه وركوي، د هغه دا هيله وه چې د خوارزم پوځونه به له تيارې

وروسته دی خواته خامخا راځي.

له علي نه پرته نورو خدمتگارانو ته زموږ ددی غلی ځای درك معلوم نه ؤ، دوی ورځی دلته غلی وو، د محل نور پاتی خدمتگاران هم وتبنتیدل، علي به موږ د بهر له حال نه خبرولو، دریم ماښام د پلار جان اس تش راستون شو، او په همدی شپه مغل ښار ته راغلل او پاتی ژوندی خلك یی ووژل.

تر دوو ورځو پوری دغه کور د مغلو مرکز ؤ او په شاوخوا کلیو کی یی لوټ او وژل پیل کړی ؤ او موږ له علي سره په دی کوټه کی غلی وو، دغه دوی ورځی موږ ته له کلونو ډیری اوږدی وی، دریمه ورځ هغوی ښار پریښود، په محل کی بشپړه چوپتیا وه خو موږ تر شپی پوری انتظار وکړ، د شپی مهال علي د سوری له لاری بهر ته ووت او خبر یی راوړ چی زموږ یو اس د طبیلی سره نژدی گرځیده ما هغه ونیو او په طبیله کی می وتاړه، له دی نه وروسته موږ دا دعاگانی کولی چی د مسلمانانو کوم پوځ دی خواته راشی، ورمه شپه موږ دا پریکړه وکړه چی سهار وختی به دا ځای پریږدو او د بلخ په لور به خوځیږو، امکان لری چی په لاره کی د کومی پوستی پهره داران راسره مرسته وکړی، خو چی ماسپښین مهال د واوری اوریدل پیل شول نو ما د سمرقند د حاکم لپاره دا لیك ولیکه چی موږ له دی ځایه وباسی او بلخ ته مو ورسوی علي زما غوښتنلیك ورسره واخست او روان شو.

اوس چی ته پر کوم اس راغلی یی په همدی اس علي سپور وتلی ؤ، زما په گومان هغه د کوم تاتاری د ظلم نخښه شویدی، اوس لکه چی خدای (ج) ته زموږ مرستی ته را استولی یی ته له کومی خوا راغلی یی؟

طاهر لنډ لنډ خپل داستان واوراوه او په پای کی یی نجلی ته وویل : زه لږ بهر وزم او د موسم حالت گورم.

: محل ته د مغلو د راتگ خطر هر وخت وی ځکه خو د بهر ته وتلو لپاره دا لاره ډیره خوندی ده، دا یی وویل او بیا هغی په دیوال کی لگیدلی یو څرخ واړاوه، د لږ غږ سره په یوه برخه کی دومره درز راپیدا شو چی یو سړی تری په اسانی تیریدای شوای.

نجلی وویل راځه زه لاره درته ښیم. اسماعیل تکان وخوړ ویی ویل : زه هم درسره ځم.

* * * * *

(٤)

د سمڅی د کوټی د تتی رڼا په پرتله غار ډیر تیاره ؤ، نجلی او ورور یی زروریکی وړاندی تلل، خو طاهر ورو ورو پلونه اخستل، ځای ځای د غاریوی او بلی خواته ځمکی کیندل شوی وی او پراخی کوټی پکی جوړی شوی وی.

طاهر نژدی پنځوس گزه وړاندی لاره پریښوده او په یوه کوټه ننوت، په دی ځنډ کی نجلی او ورور یی نور هم وړاندی ولاړل، طاهر د پریشانی په حالت کی د کوټی پر دیوالونو لاس واهه چی د نجلی غږ یی واورید: ته چیرته یی؟

طاهر ځواب ورکړ: زه لاره نشم موندلی.

نجلی خپل ورور ته مخ وروگرځاوه ویی ویل : اسماعیله ورشه ترلاس یی ونیسه.

اسماعیل طاهر تر لاس ونیوه ویی ویل : زما سره راځه زه په تیاره کی هم لیدای شم.

طاهر وویل : په دی کوټو کی ښه زیات پوځ اوسیدای شی،

نجلی وویل : هوکی! خو کاشکی له موږ سره کافی پوځ وای.

یو ځای ته چی ورسیدل نجلی ودریده ، ویی ویل:

اوس لږ پام کوه او راځه وړاندی چینه ده، اسماعیله ته زما لاس ونیسه!

دری واړو د یو بل لاسونه ونیول او وړاندی ولاړل څو گامه وړاندی تیاره لږ شوه ښی لوری ته وگرځیدل او چی څوگامه نور ولاړل نجلی بیا ودریده. دلته رڼا زیاته وه، طاهر ولیدل چی د یوه وړوکی ډنډ پرغنډه ولاړ دی، د یوه کمره نه چینه را څوټیږی او اوبه یی په ډنډ کی راتوییږی، او د ډنډ زیاتی اوبه له غار نه تیریږی، پنځه شپږ گامه وړاندی د غار خوله وه چی ډیره تنگه وه.

اوبه تر زنگنو تیتی وی، اسماعیل او طاهر هم د نجلی په څیرله اوبو راوتلیو ډبرو پښی ایښودلی او د غار له خولی راووتل، د دوی په مخکی په ونو پوښلی دره وه، واوره اوس نه اوریدله خو وریځی لا خوری وی، ونی، ډبری او د ځمکی بوټی هر څه په واورو پوښلی او پټ وو.

د غار نه راوتلیی اوبه په یوه لښتی که ښکته بهیدلی او د یوه خوړ سره چی ډیری اوبه پکی بهیدلی یو ځای کیدلی، طاهر تر لږ ځنډه دغه په زړه پوری منظری ته حیران ؤ، بیایی خپلو ملگرو ته وکتل، تر لږ ځنډه یی بی پامه سترگی د نجلی په څیره میخ شوی، هغه ښکلی وه، په پرخه د مینځل شوی گل نه زیاته ښکلی، د کایناتو انځورگر د واوری له تهوتی نه تراشلی او د وینو سرخی یی پری

ور زیاته کړی وه، خفګان او غم یې څیره د وریځو تر نریو پردو لاندې سپوږمی په څیر ښایسته کړې وه، نجلی مخ واړاوه او په بې پروایي یې وروړته وکتل، د طاهر له خولې بې اختیاره ووتل: نوم دې څه دی؟

: ثریا! هغې ځواب ورکړ او بیا یې په پریشانی طاهر ته وکتل، د هغې سترګو ویل : ګوره زه ستا په پناه کې یم خو د یوه غیرتي پلار لور یم.

طاهر په خپل وجود کې لړزه احساس کړه او مخ یې واړاوه، تر لږ ځنډه یې سر ځوړند کړ او له سوچ وروسته یې وویل : زه باید زر تر زره بغداد ته ولاړ شم، خو له دې نه وړاندې باید تا بلخ ته ورسوم، چې اسمان شین شي له دې ځایه به وخوځېږو، له دې درې نه د وتلو لاره کومه ده؟

نجلی یوې خواته اشاره وکړه وې ویل : هغې لوري ته د غونډۍ نه چې تیر شې لاره ده.

طاهر وویل : که لږ راوخوت نو موږ به سبا ته روان شو.

نجلی اسمان ته وکتل وې ویل : اوس ښایی نوره واوره هم واوریږي.

طاهر وویل : تاسو لږ ځنډ دلته ودریږی زه پاس ځم او ګورم ښایي...؟

نجلی پوښتنه وکړه : ښایي څه؟

: هیڅ نه!

: ستا به ګومان وي چې که د مسلمانانو پوځ چیرته ښکاره شي، زه به هم سهار او ماښام په همدې تمه پردې غونډۍ ختم.

طاهر وویل : ستاسو دغه سمڅه خو ډیره خوندې وه خو د کلي له خلکو نه چاته معلومه وه که نه؟

ثریا ځواب ورکړ : نه ددې غونډۍ په شاوخوا کې به تل پهره ولاړه وه، پلار جان چې ماته دغه د تل کوته او سوري راوښودل نو د هغو پهرو په هدف وپوهیدم.

: ډیر ښه! زه اوس بیرته راګرځم، طاهر دا وویل او په واوروکې یې ګامونه اوچت کړل ثریا زر ورته وویل : نه نه! ددې غار سره نژدې د ښنو خاپونه مه پریږده، ته د خوړ له لارې ولاړ شه.

طاهر د ثریا په وینا په اوبو کې روان شو او چې لوی خوړ ته ورسید، په لویو لویو تیږو یې پښې ایښودلې او غونډۍ ته وخوت، د غونډۍ له څوکې نه یې شلورو خواو ته وکتل خو دواړو له سپین څادر پرته یې هیڅ خو ځیدونکې څیز

ترسترګو نه شول، کله چې بیرته راکوز شو او خپلو ملګرو ته راورسید واوره بیا پیل شوه، طاهر لوږه احساس کړه،
چې کله بیرته د ځمکې د تل کوټې ته ولاړل ثریا لږ لاندې «وچه غوښه» د یوې اندازې وچې میوې سره په پتنوس کې د طاهر مخې ته کښېښودل او ویې ویل : ته به خامخا وږی شوی یې، تا د شپې مهال هم څه ونه خوړل.
طاهر ځواب ورکړ : ماته ستا سو د نوکر له کڅوړې نه پوره خوراکې شیان په لاس راغلل، خو له ما سره د اس غم دی ما هغه همداسې پرېښود.
: زه سهار وختې پاس ورغلی وم طبیلې ته مې بوت او هلته مې وتاړه، هلته وچ واښه ډیر دي.
بیا یې وروړته مخ ور واړاوه: اسماعیله! ته ورسره کښېنه وخوره!
اسماعیل ورسره کښېناست، طاهر د غوښې یوه ټوټې ته لاس ور وغځاوه، بیا یې بیرته راټول کړ ثریا ته یې وکتل او ویې ویل : ته څه کوې؟
ثریا ځواب ورکړ : ته زما فکر مه کوه، زه ډیر وختې سبا ناری کوم، اسماعیل ناوخته له خوبه پاځي ځکه یې تر اوسه څه نه دي خوړلي، طاهر یوه نمړې په خوله کړه اسماعیل ته یې وویل : وخوره!
خو اسماعیل اندیښمن خورته وکتل.
ثریا لږ ور وړاندې شوه د ماشوم پرسر یې لاس راتیر کړ او ویې ویل : اسماعیله ولې یې نه خورې؟
د هلك په سترګو کې اوښکې راغلی او د ریږدیدلو شونډو راټولولو هڅه یې وکړه، دواړه لاس یې وغځول او ثریا ته ورتر غاړه وت.
زه یې نه خورم، زه یې نه خورم او په سلګو شو.
طاهر ترخې اوبه په خپل حلق کې احساس کړې، پتنوس یې اوچت کړ او د ثریا مخې ته یې کښېښود او ویې ویل :
ما خپله برخه وخوره.
ثریا : نه نه! وخوره ته وږی یې!
: د یوې عربې مور له لور نه زما همدغه تمه وه، خو زه اوس ستا میلمه نه بلکې ساتونکی یم، ما ماښام پوره خواړه خوړلي وو خو تا ښایي ماښام هم څه نه وي خوړلي، طاهر جګ شو لینده یې واخستله، غشې یې د غشو په کڅوړه کې ورسره واچول او ویې ویل : تاسو دا وخورئ، زه به انشاء الله زر بیرته راستون

شم، که می په کلي کی څه شی ونه موندل بهر گوندی څه ښکار ومومم.
ثریا وویل : په کلي کی د انسانانو د مړیو نه پرته هر څه مغلو ورسره وړی دی، او په دی موسم کی ښایی ښکار هم ونه موندل شی.
طاهر وویل : زما باور دی چي خدای (ج) موږ دلته د لوږی د مرگ لپاره نه یو راتول کړی، زه به انشاء الله تش لاس نه راستنیږم، تاسو د ماښام غم مه کوی دا خواره وخوری.
ثریا وویل : که ستا د خدای پر مهربانی دومره بروسه ده نو لږ تر لږه خو خپله برخه وخوره او بیا ولاړ شه.
طاهر ورتیټ شو د غوښی یوه ټوټه یی په خوله کی کښیښوده او ویی ویل : بس ! ما خپله برخه واخستله.
نجلی وویل : زه تا بهر ته رسوم بیرته راځم
:نه، ما لاره ولیدله، طاهر دا وویل او د غار له لاری بهر ته راووت.
د طاهر له تلو نه وروسته ثریا وویل : اسماعیله اوس یی وخوره!
کشری ماشوم ځواب ورکړ : ستانه پرته یی نه خورم.
ثریا په پتنوس کی پراته خوراکی شیان دری برخی کړل او بیا یی یوه برخه جلا کړه ویی ویل : دا د هغه برخه ده چی بیرته راستون شی ډیر به وږی شوی وی، او دا نوره زما او ستا برخه ده.

*****

(۵)

ماسپښین مهال اسمان شین شوی و د لمر دوړانگو غبرگون پر سپینو واورو سترگی بریښولی، شمال دریدلی ؤ او په موسم کی یو په زره پوری بدلون احساسیده. ثریا او اسماعیل د غار نه بهر لږ لری په یوه ډبره ناست وو او د طاهر د راتگ انتظار یی کاوه، دواوری د ویلیدو له امله د ونو ښاخونه اوتنی ورو ورو لغړیدی مخامخ د خوړ اوبه ورو ورو زیاتیدی.
اسماعیل وویل : خور جانی هغه تر اوسه رانه غی! په داسی لمر کی مخامخ ښکار موندل کیږی.
ثریا ځواب ورکړ : دعا کوه!
: هغه ډیر ښه سړی دی که پلار جان وای دی به یی د پوځ سالار ټاکلی ؤ، مگر خوری که هغه ته د ښکار پر ځای تاتاریان په مخه ورشی نو څه به کیږی.

: خدایځ به یې مرسته کوي.
: که مور دلته کوم مغلي ولیدو نو بیا ؟
: دلته مور له پاسه هیڅوك نشي لیدای.
: که هغه تاتاریانو ونیو او د ځان ژغورنې په خاطر یې مور ورونبودلو نو بیا ؟
: چوپ شه، د میلمنو په باب داسې سوچونه څوك نه کوي.
: که بیا واوره ونه اوري نو مور به له دې ځایه روانیږو ؟
: انشاء الله!
اسماعیل چوپ شو، خو لږ وروسته یې چیغې کړې، هغه راغی!
هغه راغی، خوري ! خوري! هلته گوره غرڅه یې راوړ.
وگوره خوري! وگوره څومره لوی دی، هغه په ډېر زحمت په اوږه را اړولی، اور خو به نه وي گل شوی؟!
ثریا دوني له تنې نه لږ لرې شوه ویې کتل طاهر یو غرڅه په اوږه را اړولی ژ او له خوږ نه راپورې ووت.
اسماعیل بیا وویل : خوري! اور خو به نه وي مړ شوی! زه ډېر وږی یم.
ثریا وویل : تا خو ویل چې زه ښه موړ یم!
: که ما دانه وای ویلی نو تا به خپله برخه هم نه خوړله، اوس خو دا دي خدای (ج) غرڅه رالیږلی دی، خوري دا ډیر ښه سړی دی.
طاهر د غار خولې ته نژدې شو دوی ته یې وکتل ویې ویل :
تاسو زر دننه ولاړ شئ. زه ویریږم چې شاوخوا چیرته د تاتاریانو کومه ډله نه وي، دغه غرڅه زما د غشي له نخښنه کیدو نه دمخه تپي ؤ.
لږ ځنډ وروسته چې دوی ټول په تل خونه کې ناست وو ثریا غوښه کبابوله اسماعیل په وار وار ویل : خوري! اوس به پخه وي زر یې راکوزه کړه.
طاهر : تیرو ستومانیو او ځورنه وروسته اوس په دې تیاره او تنگه خونه کې د آرامۍ احساس کاوه، بیا یې هم د راتلونکې په باب ذهن د پریشانۍ احساس کاوه، کله کله به یې په ذهن کې ور وگرځیدل چې والوزي او بغداد ته ځان ورسوي، هلته په دنگو محلونو کې یوه هنگامه او محشر جوړ کړي او لکه په ولاړو اوبو کې د ژوند شور پیدا کړي، ده په خیال کې د بغداد په جامع جوماتونو کې له احساساتو ډکې ویناوې کولې.
کله به یې د بغداد له بې شمیره پوځ سره یوځای د خوارزم شاه تر جنډې لاندې

د تاتاریانو مقابله کوله، کله به یی خلیفه او صدر اعظم ته راتلونکی خطرات بیانول خو چی له دوی به مایوس شو نو ترخی او توندی خبری به یی ورته کولی.

او کله به یی په خیال کی وحید الدین د محاکمی په میز درولی ؤ او د خلیفه په مخکی به یی په لوړ غږ د هغه د جرم ثبوتو نه وړاندی کول.

د دی رنګارنګ خیالونو په یرغل کی به یی کله د اسماعیل په څواب کی د ثریا غږ واورید، هغه غږ چی د پسرلی د مرغانو له نغمونه دیر خوندور او زړه وړونکی ؤ، ده به د اور له تت براس نه هاخوا د هغی ښکلی څیره لیده، او د یوی شیبی لپاره به یی د زړه اندیښنی په لطیفو تکانونو بدلی شوی، مخی ته به یی یوه بله دنیا وغوړیده، هغه دنیا چی انسان سترګی پکی وغړوی بیا د خوندی ګوښی په لټه کی شی، له ځانه پرته د یوه بل داسی چا په خاطر چی په موسکا کی یی د ژوند له توپانونو نه پناه اخلی.

د سهار په ګردونو کی پټ لمر د وړانګو په څیر د غم په وریځو کی د ثریا مخ نور هم زړه وړونکی ښکاریدو، د حیا په زرګونو پردو کی پټو د ثریا په غمجنو سترګو کی د طاهر لپاره رومبی او وروستی پیغام همدا ؤ چی موږ دواړه د یو بل لپاره یو، زموږ دواړو یو بل ته اړتیا ده، طاهر احساسوله چی دی ته ورته د یوی بلی څیری تصویر هم له پخوانه دده په زړه کی شته، داسی غږ ده پخوا هم اوریدلی ؤ.

طاهر د ژوند د واټ په داسی پړاو کی ؤ چی سړی وروزسیږی نو د یو چا د ملګری اړتیا احساسوی، هلته چی د کومی نجلی له شونډو لوټل شوی موسکا بیرته ورته راستنول سړی ته په کایناتو کی ترټولو ستره ذمه واری شی، خو دی له هغو کسانو څخه ؤ چی له ګلونو سره د لویبدو پرځای د ازغیو په موښلو د زیات خوند احساس کوی، د رباب له نغمونه د تور و شرنګا پری ښه لګیږی، او د ځان لپاره د ژوند پرځای د بل لپاره مرګ سعادت ګنی، او په کوم یوه ګل د خپلو سترګو یخولو او خوښولو پرځای په خپلو وینو په زرګونو بوټی اوبول غواړی.

د ثریا په څیر د خوارزم د زرګونو نجونو د بی کسی تصور د طاهر بدن ولړزاوه، د قوم د هغو زرګونو میندو خویندو کریږی او فریادونه یی واوریدل چی لمنی ته یی د وحشی تاتاریانو لاسونه ورغځیدلی وو، هغوی چی اسمان ته په حیرت او حسرت کتل او ویل یی دا زموږ د عصمت او عزت ساتونکی په کومه ولاړل؟ زموږ په غیرتی بچیانو او زړورو ورونو څه وشول؟

طاهر ټکان وخوړ ویې ویل : مورږ به سبا ته ماسپښین مهال له دې ځایه روانیږو.

ثریا لږ ځنډ په سوچ کې شوه طاهر بیا وویل : مورږ یوازې لومړی دوه درې پړاوه په خطر کې یو، وروسته ښایې له کومې پېښې نه مرسته وغواړو.

ثریا وویل : زما سره یوازې د اسماعیل غم دی، زمورږ سره یوازې یو اس ؤ هغه هم مړ شوی دی.

: مړشویدی! تا څه وخت ولید؟

: کله چې ته ښکار ته تللی وې، زه هلته ورغلی وم، هغه ماته سهار هم ناروغ ښکاریدو.

طاهر په ژور سوچ کې ډوب شو، لږ ځنډ وروسته اسماعیل وویل : زما په باب اندیښنه مه کوی زه پلی درسره تلی شم.

ثریا وویل : ته دا امیدو نه لرې چې د خوارزم پوځونه به بیرته دلته راشي؟

طاهر ځواب ورکړ : کوم پوځ چې د تیمور ملك مرستی ته ونه رسیدای شو زما ترې هیڅ تمه نشته، خو مصیبت انسان د تقدیر د معجزو په هیله کړي.

زه د خوارزم شاه له مرستی نه مایوس یم، خو د خدای (ج) له مرستی نه مایوس نه یم.

که مورږ پلی غزنی لاره غوره کړو نو د دښتی له لارې نه به خوندی وی، په لاره کې د کوم تېښې سپاهي د اس موندل هم له اټکل نه لرې نه دي، له دې نه پرته زما ګومان دی چې تاتاریانو د شمال لویدیځ په لوری مخه کړې، جنوب ته د بلخ لاره به انشاء الله خوندي وي، مورږ به سبا ته له خیره له ماسپښین وروسته له دې ځایه روانیږو.

*****

(٦)

کله چې ماښام طاهر له مانځه نه وروسته د دعا لپاره لاسونه اوچت کړل نو پاس یې د کور په انګړ کې د اسونو د پښو ترپهار واورید : ثریا جګه شوه د اور سکروټې یې په ډېرو پټې کړې طاهر له دعا وروسته ورته وکتل ثریا په ویریدلی لهجه ورو وویل : ښایي تاتاریان ؤي خو له پنځو شپږو اسونو نه زیات نه دي.

طاهر وویل : کیدای شي شاته لښکر ورپسی وي.

اسماعیل په غمجنه لهجه وویل : اوس ښایې مورږ بلخ ته ونه رسیږو، طاهر په

تسلی ورته وویل : نه، انشاء الله مورې به خامخا ځو.

: کله؟

: ممکن نن!

: ثریا وپوښتل : نن به ځو!

: هوکی له دی غوښی نه د دوو دری ورځو د خوراك په اندازه بیله کړه په یوه کځوړه کی یی واچوه..

: مگر په واورینه لاره د شپی پلی مزل؟

: ته د پلی مزله په باب ولی سوچ کوی؟ ایا خدای (ج) اسونه راونه لیږل؟

ثریا وویل : ددی اسونو اخستل لږ گران دی.

طاهر ځواب ورکړ : کوم کار چی ضروری وی د هغه په اړه دا سوچ څوك نه کوی چی گران دی که آسان.

لږ ځنډ وروسته له پاسه د تك تك غږونه اوچت شول.

ثریا وویل : لکه چی په منځ کوټه کی د اور بلولو لپاره ورونه ماتوی، او اسونه یی په طبیله کی تړلی وی، زه په زینه ورخیژم، د دوی له خبرونه د دوی د سهی شمیر معلومولو هڅه کوم.

: مگر پاس ډېره اوس مه خوځوه، ښایی کوم یو په هماغه کوټه کی وی.

: نه ته غم مه کوه، ثریا دا وویل په زینو وختله سوری ته نژدی یی غوږ ونیو او د غږونو د شمیر معلومولو په هڅه کی شوه لږ ځنډ وروسته راکوزه شوه او د طاهر له پوښتنی پرته یی وویل : هغوی شپږ او یا اووه تنه دی. دوی د تیمور ملك په لټه کی دی، امکان لری تر سهاره یی نور ملگری هم راورسیږی، زه د دوی په ژبه نه پوهیږم خو د تیمور ملك نوم په وار وار اخلی زما همدا گومان دی.

هغوی اوس د پاس کوټی ښی لاس ته په دریمه کوټه کی دی.

# د سپاهی لور

په تل څونه کی شیبه په شیبه تیاره زیاتیدله، مغلو په خپله ژبه کومه راګ سندره ویله، طاهر د ماسختن د لمانځه نه وروسته تر ډیره وخته پر خپل ځای ناست ؤ، کله چی د تاتاریانو راګ ختم شو نو ثریا او اسماعیل ته یی د تیاریدو ویل په زینو وروخوت او له چت سره یی غوږ ونیو، یوه تاتاری خبری کولی او نورو غوږ نیولی ؤ، د دوی د ژبی څو لفظونه طاهر هم زده کړي وو، هغه یوازی دومره وپوهیده چی خبری کوونکی خپلو ملګرو ته کومه کیسه کوی، طاهر ورو د ډبری سرپوښ لری کړ او یوی خواته یی کیښود، له سوری نه یی سر ویوست دایی احساس کړه چی په کوټه کی څوك نشته چی بهر راووت د ډبری سرپوښ یی بیرته په سوری ورکیښود، په تیاره کی له څوګامه اخستلو وروسته د طاهر لاس په دروازه ولګید، هغه ورو دروازه تیله کړه خو کرچهار یی دی پریشانه کړ، زر یی پریښوده، او له دیوال سره نیغ ودرید، د دروازی د بیرته پوری کیدو په وخت کی نور هم غږ اوچت شو.

کیسی او روونکی تاتاری ناڅاپه چوپ شو، له یوی شیبی وروسته یی خپل یوه ملګری ته څه وویل او هغه په خوبوړی حالت کی وګرزیده څه یی وویل، دواړه چی د طاهر په ګومان یو کیسه کوونکی و او بل یی اوریدونکی له یو بل سره په بحث شول بیا یی یو د منځ کوټی ته راغی او له ځانه سره یی کنځلی کولی.

طاهر وپوهیده چی له دی دوو تنو نه پرته نور کسان ویده دی.

مغل سرتیری د منځ له کوټی نه تیر شو او د طاهر د کوټی ور یی خلاص کړ د کوټی دواړه ورونه یو بل ته مخامخ وو څکه خو د دریمی کوټی د اور تته رڼا د طاهر کوټی ته هم رارسیدله.

هغه له دیوال سره جوخت چوپ دریدلی ؤ، تاتاری په بی پروایی د هغه کوټي ته ورننوت او یوی او بلی خواته یی له سرسری نظر وروسته سترګی ومونښلی خپل ملګری ته یی کنځلی وکړی او د بیرته ستنیدو په تکل شو چی د طاهر اوسپنیز

لاس یې پرورمېږورپرېوت، د لنډی تاتاري له خولې آه قدري هم ونه وتله، د سترګو په رپ کې طاهر هغه وواژه او ورویې څملاوه.

له دریمې کوټې نه د کیسې کوونکي غږ اوریدل کېده او هغه به بنایي د خپلې کیسې وروستي برخي اورولو ته ناکراره ؤ، طاهر زر توره له تیکي راوویستله او له دیوال سره ودرید په زوره زوره یې ساه وکښله.

د کیسې اوروونکي ګومان وکړ چي لکه چې ملګري یې په بله کوټه کې ویده شو، په خندا رااوچت شو یو بل شوی لرګی یې ورسره راواخست هماغه کوټې ته یې ځان ور ورساوه، خو تر څو یې سم وضعیت معلوماوه د طاهر توره یې په سینه ښخه شوه او په غولي پرېوت، له دې سره یې له خولې یوه کریږه ووته په دریمه کوټه کې د دوی ملګري د هغه په چیغه راویښ شول او د یو بل پوهولو هڅه یې کوله، طاهر د سترګو په رپ کې ځان دریمې کوټې ته ور ورساوه، کوټه د اور په سبب پوره رڼا وه، تاتاریان پاڅېدل او توري یې را واخستلې خو د طاهر توره پرې د تندر په څېر راپرېوته له هغوی نه دوه نور هم د سترګو په رپ کې ورپیدل په دې ځنډ کې پاتې نور دري تنه راسنبال شول.

د طاهر توره څو ځله د هغوی دري واړو له تورو سره ټکر شوه، تاتاریانو چې ولیدل حریف یې خطرناك دی هڅه یې وکړه چې سره تیت او له دري خواو حملې پرې پیل کړي، خو طاهر له یوه کونج نه دوی ته دا فرصت ورنکړ چې هلته دلته تری ټوپ کړي او تیت شي، څو شیبې وروسته له هغوی نه یو بل هم ټپي شو او په ځمکه رپیده، د طاهر مټ هم لږ زخمي شوی ؤ، خو په مخامخ کونج کې یې چې په مخ کې یوازي دوه تنه حریفان لیدل نو د احساساتي حملو پرځای یې په داده زړه او آرامي مقابلې ته دوام ورکړ.

ناڅاپه طاهر شاته یوه کریږه واورید، ده زر ځای بدل کړ او شاته یې وکتل، شاته یې ثریا ولاړه وه چې په وینو سره توره یې په لاس کې وه او مخې ته یې یو بل تاتاري چې طاهر لا تر اوسه نه ؤ لیدلی په ځمکه ټپي لغتې وهلې، په دې ځنډ کې د طاهر دواړو حریفانو دوه لوري ونیول، ثریا د طاهر ، د څه اشارې د لیدو پرته د یوه مخې ته ودریدله، خو طاهر چیغې کړي : ثریا! ته زما له شانه لرې شه، طاهر د لومړي ځل لپاره د هغې نوم واخست، او دې ته یې د تاسو پر ځای ته ووېل ، چې دا د ثریا لپاره ډېر ستر انعام ؤ، هغې ووېل : ته زما فکر مه کوه ما هم د یوې عربۍ مور شیدې رودلې.

: مگر اسماعیل یوازی؟
: هغه هم زما ورور دی.
اوس طاهر او ثریا اوږه په اوږه ولاړ و او دواړه مغلی سرتیری بیا یوه کونج ته ایسارِ شول، ناڅاپه طاهر گام واخست او د سترگو په رپ کی د ثریا د حریف تاتاری مټ دده په توره غوڅ شو، په دوهمه شیبه کی د ثریا توره د هغه تر ټټر بوته ختلی وه.
اوس د طاهر مخی ته یوازی یو تاتاری ؤ او ثریا په پوره داد د لویدلی دښمن په چپنه خپله توره پاکوله، تاتاری اوس د مرگ او ژوند نه بی پروا ؤ او د وحشی ځناور په څیر یی حملی کولی، ناڅاپه د طاهر پر شونډو موسکا خوره شوه، د یوه مجاهد موسکا چی د دښمن په غوږونو کی د مرگ هیبتناکه کرسنده خندا شی او کرنگیږی، د هغه توره د تاتاري پر سر وځلیده او بیا یی ترسینی پوری ورسیده.
د ثریا پر شونډو هم موسکا لویدله، هغه موسکا چی په لومړنیو پیړیو کی به د اسلام د لوڼو لخوا غازیانو ته تر ټولو لوی انعام ؤ.
طاهر څو شیبی له خپل چاپیریال نه پردی شو د هغی زمانی په ښکلیو خیالونو کی ډوب شو چی یوی ساده عربی پیغلی به د اسلام د سربښندویانو ډله لیدله چی د دوی له کلی نه به تیریدله دوی به دا سندره ویله
د قوم غیرتی زامنو! ستاسو د اسونو د پښو گرد موږ ته له کهکشان نه گران دی.
ستاسو په گردونو کی پټ مخونه موږ ته له سپوږمی نه ښکلی ښکاری.
د طاهر لستونی چی ثریا په وینو سور ولید ویی ویل : ته ټپی شوی یی راشه زه دی ټپ وتړم.
: دا معمولی ټپ دی، دایي وویل بیا یی لستونی پورته کړ او مټ یی ثریا ته ورښکاره کړ، ثریا په دسمال د هغه مټ وتاړه ویی ویل : ما شپږ اوه تنه اټکل کړی وو دغه اتم لکه چی په طبیله کی ؤ له شانه یی غوښتل پر تا حمله وکړی.
: زه ستا مننه کوم که ته نه وای نو ماته به یی گوزار له شانه خامخا خطرناک ؤ.
: د خدای (ج) په خاطر داسی مه وایه زه یوازی خپل وکالت کوم زه هلته نشوای تمیدلی نو چی د روازی ته راغلم ومی لیدل چی هغه غلی له شا روان دی او پر تا حمله کول غواړی، زماله خولی چیغه ووته زه ډیره پری پښیمانه یم.

: ثریا! تر هغو چې په اسلامي نرۍ کې ستا په څېر ځوني زېږي، په نړۍ کې مسلمانان هیڅ قوت نشي لاندې کولی، څو شیبې دمخه زه ډېر مایوس وم خو اوس مې زړه ګواهي راکوي چې هغه قوم چې ستا غوندې نجوني زېږولی شي باید په ژبه یې د مایوسي الفاظ نه وي هغوی که د ځمکې تل ته هم ولاړ شي نو په ستورو کمندونه اچولی شي.

انقلاب هغوی لاندې کولی شي خو ښخولی یې نشي، د حوادثو توپان یې سره پاشلی او تیت پرک کولی شي خو ورك کولی یې نشي، د مغلوتوپان ډېر زور ور توپان دی امکان لري دا د اسلامي نړۍ وروستی کمر هم ورسره په مخه کړي، خو ته اوستا په څېر نوري د قوم لونې په هره زمانه کې داسې معماران زېږولی شي چې شګې سره یوځای کړي او مضبوط او نه ماتیدونکي کمرونه ترې جوړولی شي.

د ثریا په سترګو کې د مننې اوښکې ځلیدې، هغې ویل : ما هم څو شیبې وړاندې ګومان کاوه چې د قوم د ځلمیانو وینې سپینې شویدې خو نه، کوم اولس چې تا غوندې سرتیري لري د هغوی بیرغ هیڅ څواك نشي نسکورولی.

: ته ژاړې؟

: ثریا په خندا شوه!

په اوښکو لنده موسکا، په شبنم د لمبیدلې ګل موسکا چې د حورو بې شمیره کرسنده خنداګانې پکې غلې وي، هغې ویل : نه پوهیږم نن مې ولې غم هیر دی، ښایي ددې لپاره چې نن مې د قوم د غلیمانو نه یو تن وژلی دی.

: نه ددې لپاره چې تا د خپل قوم د یوه سرتیري ژوند ژغورلی، خو اوس راځه اسماعیل به اندیښمن وي، اسونه به هم زموږ انتظار کوي.

طاهر یو بل شوی لرګی ورسره واخست او د تل خونې په لوري له ثریا سره روان شو، کله چې هغه د سوري نه دبره لرې کړه لاندې د اسماعیل غږ اوچت شو:

وددریږه! څوك یې زما نخښه نه خطا کیږي!

ثریا وویل : اسماعیله موږ یو!

هغه بیا له خوښي نه په ډکه لهجه وویل : اجازه ده راځئ!

کله چې طاهر او ثریا له بل شوي لرګي سره لاندې ورغلل اسماعیل یې ولید چې لینده او غشي یې په لاس کې ولاړ ؤ.

طاهر وویل : اسماعیله موږ بلخ ته روان یو

: څه وخت؟

: همدا اوس : ، ستا خو به ساړه نه کیږي؟

: نه، خور جانی می ویل چی ستا به ساړه کیږی ځکه چی ته د تاوده وطن اوسیدونکی یی.

ثریا د کباب شوی غوښی یوه ډکه کڅوړه طاهر ته ورکړه او بیا یی په یوه گوټ کی لرگی لری کړل د څرمنی یو وړوکی بکس یی راواخست او ویی ویل : زه د قوم امانت تاته سپارم زما خدای بخښلي پلار چی خطر احساس کړ، د بیت المال زیاته برخه یی سمرقند ته واستوله، دغه پاتی دوه زره اشرفی یی د جگړی میدان ته له تلو مخکی ماته راکړی، له اشرفیو نه پرته په دی بکس کی څو غمی د ده خپل مال ؤ، خو زه دا د قوم د شهیدانو د زامنو مال گنم.

پلار جان به می د خپلی تنخواه زیاته برخه زما نیکه ته ورکوله چی په سوداگری کی یی په کار واچوی هغه اوس په بلخ کی زموږ لپاره ډیره ځمکه او جایداد اخستی دی.

طاهر دواړه کڅوړی ورسره واخستلی، ثریا په بل شوی لرگی یوه شمه بله کړه، دری واړه بیرته د زینو په لاره پاسنی کوټی ته وختل، د کور له کوټونه ووتل او طبیلی ته ورغلل.

په طبیله کی د تاتاریانو اته اسونه تړلي وو، طاهر، ثریا او اسماعیل په دری اسونو سپاره شول، پاتی اسونه یی له کوره راوویستل او تیت پرك یی وشړل، دوی چی له کوټی نه وتل ثریا اس ودراوه او ویی ویل : لږ ودریږه زه له دی ځایه د وتلو نه دمخه یوه دعا کوم، طاهر او اسماعیل ثریا ته وکتل او اسونه یی ودرول.

ثریا د آسمان ځلیدونکو ستوروته وکتل او په ډیره‌دردمنه لهجه یي دعا وکړه:

ای د عالم پالونکیه! زه ستا د محبوب صلي الله علیه وسلم د امت د زرگونو بی کسه نجونو څخه یوه یم، ته د دوی تولو د ساتنی په خاطر د قوم زامنو ته د خپلو پلرونو میړانه او همت ورکړی چی هغوی یو ځل بیا پردی محلونو د اسلام بیرغونه ورپو ي، دغو چوپوکو څوته یو ځل بیا غازیان ورکړی، چی د اسونو د پښو ترپهار واوری، ددی ښار په گودرانو جوماتونو کی یو ځل بیا د الله اکبر ناری او ازانگی اوچتی کړی، پالونیکه ! ته د خپل دین شان اوچت کړی آمین!

طاهر او اسماعیل هم آمین ورسره غبرگ کړل، او بیا دری واړو اسونه پریښودل چی مزل وکړی، لږ ځنډ وروسته دوی د ښار نه بهر د بلخ په لور په هسکو تیتو

لارو روان وو، اسمان شين ؤ او يخنی له زغم نه وتلی وه، خو اسماعيل په وار وار دا ويل چی ډير ښه موسم دی او زه په پوستين کی په تنګ شوی يم.

*****

(۳)

دريمه ورځ غرمه مهال طاهر د مسلمانانو د پهری يوه وړوکی ډلګی وليدله، کله چی وررورسيدل په پړاو کی د طاهر د پوښتنی په ځواب کی يوه سپاهی وويل د ختيځ سرحد له پرېښودلونه وروسته اوس دلته څلور زره تنه پوځيان راټول شويدی او په يو دوو ورځو کی به دوی هم د سمرقند په لوری خوځيږی.

طاهر د پوځ له لوی افسر سره دليدو هيله وکړه، خو سپاهی ورته وويل چی دلته د هرو پنځوس، شپيتو تنو پر سر يو تن مشر ؤ خو پرون يو څوك راغی ټول اوس د هغه تر هيبت لاندی دی او د حکم منلو ته يی غاړه ايښی ده.

طاهر وپوښتل : هغه څوك دی؟

سپاهی ځواب ورکړ : تيمور ملك.

تيمور ملك! هغه چيرته دی؟

: ته هغه پيژنی؟

: تيمور ملك څوك نه پيژنی!

سپاهی د طاهر د اس جلب ونيو ويی ويل : راځی زه تاسو هغوی ته ورولم.

ثريا او اسماعيل په هغوی پسی روان شول، طاهر د يوی خيمی مخی ته ودريد دری واړه له اسونو نه پلی شول، سپاهی خيمی ته ننوت او خبر يی ورکړ لږ ځنډ وروسته تيمور ملك بهر ته راووت چی طاهر يی وليد غيږ يی پرانسته او ور وړاندی شو او دواړه غيږ په غيږ شول.

تيمور ملك وويل : د خدای شکر دی چی روغ دی وينم، او بيا يی ثريا او اسماعيل ته پام شو، ثريا د نارينه ؤ جامی اغوستی وی، او نيمايی مخ يی په پوستين کی پټ ؤ.

تيمور ملك وپوښتل : دا څوك دی؟

طاهر وويل : دا زما ملګری دی، زه به د دوی کيسه درته واوروم خو موږ په لاره ډير لږ آرام کړی دی، دا د ښځو خيمی ته واستوه، تيمور ملك په حيرانی وپوستل : د ښځو خيمی ته؟

طاهر وموسکل ويی ويل : دا نجلۍ ده!

تیمور ملك وویل : ښاغلی تور سری! زه ستا په جامو تیر وتم، ته پریشانه نه شی کله چی د قوم د میړونو غیرت او میړانه ولاړ شی، د قوم لونی باید همدغسی جامی واغوندی.

ثریا سترگی ښکته کړی ځواب یي ورکړ : زه د قوم د بچیانو له میړانی نه مایوسه نه یم.

: تا یوازی طاهر لیدلی دی خو په قوم کی د داسی نامردو کمی نشته چی د تاتاریانو د نامه په اوریدو یی لاس او پښی شل شی، اوس د دی خبرو وخت نه دی تاسو استراحت ته اړتیا لری او ستا له پاره د ښځو خیمه مناسبه نه ده، ته به هری یوې ته د تسلي په خاطر باید خپله ټوله کیسه له سره واوروی، ځکه خو زه خپله خیمه درته پریږدم. زه او طاهر به په بله خیمه کی شپه تیره کړو، دایی وویل او بیا تیمور ملك یوه سپاهی ته مخ واړاوه ورته ویی ویل : دا دننه بوزه او د خوراك څښاك بندوبست یی وکړه، ثریا او اسماعیل د تیمور ملك پراخی خیمی ته ننوتل، او تیمور ملك له طاهر سره د یوه افسر خیمی ته ولاړل.

*****

(٤)

سهار وختی ثریا د درانه خوب په حال کی د آذان زړه وړونکی تکبیرونه واوریدل، لږ ځنډ وروسته دی دغه آذان هم د شپی د ځینو ښو او ځینو وهمناکو خوبونو یوه برخه بلله، موذن چی آذان پای ته ورساوه دی سر راپورته کړ په تته رڼا کی یی یوه اویله خوا وکتل بیا یی په ویره غږونه وکړل اسماعیله، اسماعیله!

اسماعیل د دی ترڅنگ ویده ؤ په اړخ واوښت ثریا وخوځاوه او راویښ یی کړ، هغه راپورته شو سترگی یی ومښلی ویی ویل : زه تیار یم!

: چیرته د تلو لپاره تیار یی؟

: بلخ ته نور چیرته!

: بلخ ته ... اوف ماټوله شپه بیا ډیر عجیب او حیرانوونکی خوبونه لیدل. داسی گومان می کاوه چی تر اوسه په هماغه لاندی خونه کی یم، چی هغه چیرته دی؟

: څوك طاهر ! هغه له خپل ملگری سره په بله خیمه کی دی، تا چی د ماسختن لمونځ وکړ ویده شوی، هغه راغلی ؤ له بهر نه یی پوښتنه وکړه چی څه شی ته خو به ضرورت نه وی ما ځواب ورکړ چی نه، هغه ستا په باب پوښتنه وکړه ما ورته

وویل چی ویده ده او دی بیرته ستون شو.
: زما په باب یی څه ویل؟
: هغه ویل چی خور ته خو به دی څه تکلیف نه وی؟
:بیا می ځواب ورکړ ؟
:ما ورته وویل چی هغه خو په درانه خوب پرته ده او خرړی!
: ډیر نالایق یی! زه کله خریږم، رښتیا ووایه تا هغه ته همداسی وویل ؟
اسماعیل په خندا ځواب ورکړ : نه مایوازی دومره ورته وویل چی هغه ویده ده.
: نور هغه څه ویل ؟
: هغه ویل ته هم ویده شه، سهار به د لمانځه نه وروسته موږ د بلخ په لور روانیږو.
هو رښتیا خوری! د هغه له تلو وروسته خیمی ته څو نجونی او ښځی راغلی او چی ته یی ویده ولیدلی بیرته ولاړی.
: تا به زه راویښه کړی وم.
: ما غوښتل، راویښه دی کړم خو هغوی زه منعه کړم، هغوی له مانه پوښتنه کوله چی ایا رښتیا ستا خور یو تاتاری وژلی دی؟
ما ورته وویل هوکی، دا رښتیا ده نو هغوی ټولی حیرانی شوی.
هغوی ویلی چی سهار به ستا له خور سره گورو.
ثریا وویل : ته ولاړ شه له نارینه ؤ سره لمونځ وکړه.
زه هم لمونځ ادا کوم.
لږ ځنډ وروسته ثریا له لمانځه نه وروسته لاس اوچت کړل دعایی وکړه وروسته یی چی شاته وکتل څو تنه ښځی یی تر شا ولاړی وی، ثریا راجگه شوه یوی نجلی ورته وویل:
موږ د شپی مهال راغلی وو، ته ویده وی ویښول مو دی مناسب ونه بلل، موږ ستا کیسه اوریدلی ده او ټولی پر تا ویاړ کوو.
ثریا ځواب ورکړ : ستاسو له ستاینی نه مننه، مگر دا خو کومه لویه کارنامه نه وه.
یوی ښځی وویل : دوی ټولی له تاتاریانو نه زیاتی ویریږی ته لږ نصحیت ورته وکړه.
ثریا وویل : زه په نصحیت نه پوهیږم زه هم ستاسو په شان یوه ښځه یم، په هر

صورت زه ستاسو هیله نه ردوم راځی کښینی، نجونی کښیناستی یوی نجلی وویل : لږ ودریږی، زه نوری ښځی هم را غواړم، دایی وویل او له خیمی نه ووتله لږ ځنډ وروسته پراخه خیمه د ښځو او نجونو نه دکه شوه ثریا شرمیدله او په دوه زړه توب یی خپله وینا پیل کړه:

زما مصیبت ځپلو خویندو! په تیرو پیړیو کی د اسلام په لونو داسی سختی هیڅکله هم نه وی راغلی، په خوارزم کی زموږ د دبد بی بیرغ را نسکوریږی او د تاتاریانو د وحشت او تیری توند او زورور سیلاب پر خوارزم برسیره د اسلامی نړۍ هر هیواد ته گواښ پیدا کړی دی، په دی نازکه موقع کی تاسو ځکه مایوسی یاست چی د اسلام د زامنو هغه لومړنی میړانه او زړورتیا پاتی نه ده، په دوی کی د لومړنیو پیړیو د غازیانو په څیر د شهادت مینه نشته، خو زه پوښتنه کوم چی نن هغه ښځی چیرته دی چی خپل خاوند او یا ورور به یی د جگړی له ډگر نه په شا ولید نو د خیمی لرگی به یی ورپسی راواخست او ویل به یی چی که دی تیښته وکړه د سر خیر دی نشته!

زما خویندو! د رالویدونکی قوم وروستی تکیه د هغوی لونی وی تاسو د قوم وروستی تکیه یاست، تر څو ستاسو سینی د ایمان په نور روښانه دی ستاسو زامن، ستاسو میړونه او ستاسی ورونه د نړی هیڅ ځواك نشی ماتولی.

ترڅو پوری د قوم د میندو سپیڅلی شیدی د قوم د لونو په رگونو کی د وینو په بنه چلیږی د دوی په زړونو کی به د شهادت هیله ژوندی وی، او ترڅو چی د اسلام د زامنو په زړونو کی د شهادت هیله وی دوی به د هر لوی دښمن په وړاندی د مرگ پیغام ثابت شی.

که قوم مړ شوی وی نو ستاسو سره د هغه د بیرته راژوندی کولو د ژوند اوبه «آب حیات» شته، قوم که ویده دی تاسو یی وخوځوی او راویښ یی کړی، تاسو د میړونو د پښو زنځیر مه کیږی، خپلو میړونو ته ووایی چی د جگړی له ډگر نه سر لوړی راستانه شی، موږ به د کور په څلورو دیوالونو کی ستاسو د عزت او آبرو ساتنه کوو، خپلو ورونو ته ووایی چی میدان ته ووزی، د دښمن غشی دی په تمر وخوری او تاسو به په هغوی فخر او ویاړ کوی، خپلو زامنو ته ووایی چی که تاسو بی زړه شوی او وینه مو د شاله خوا په تپ توبی شوه نو د قیامت په ورځ به موږ د حضرت رسول الله صلی الله علیه وسلم د رحمت لمن ونیسو او ورته وایو به چی یا رسول الله : زموږ د زامنو شفاعت مه کوه، هغوی زموږ د شیدو وقار نه

دی ساتلی.

د ثریا غږ له خیمی نه بهر تر لری لری اوریدل کیده پر طاهر او تیمور ملك سربیره نور سپاهیان او افسران یو د بل په اشاره د خیمی نه بهر راټول شوی وو ځینی هك پك ولاړ وو او ځینو د احساساتو له زوره ژړل.

ثریا چی چوپه شوه تیمور ملك له بهر نه په لوړ آواز وویل : درنی خوری! ستا دیر وروڼه بهر ولاړ دی، په دوی کی ځینی داسی دی چی د تاتاریانو د نامه په اوریدو یی پښی په لړزه شی، ته دوی ته هم حوصله ورکړه.

ثریا په ریږدیدلی غږ ځواب ورکړ:

څوك چی له تاتاریانو نه ویریږی زه هغه خپل ورور نشم بللی، هغوی ته ووایه چی هیڅ یوه نجلی به چی د یوی مسلمانی مور پی یی رودلی وی دی ته تیاره نشی چی داسی بی همته ته ورور ووایی.

که دوی په خپله ذمه واری کی سستی وکړه نو موږ به خپل ټیکری ور واغوندو او د دوی زنګ وهلی توری به اوچتی کړو د تاتاریانو په مخکی به سینی سپر کړو.

زموږ مینه او اطاعت د میړنیو لپاره ده د بی همتو لپاره نه، که دوی زموږ د ابرو ساتنه نشی کولی نو د قیامت په ورځ دی د خدای (ج) د غیرتی بندګانو په کتار کی د دریدو تمه نه کوی، د اسلام لونی که نن چاته ورور وایی نو هغه به د محمد بن قاسم «رح» په څیر غازی وی، چی د قوم د یوی لور په فریاد یی په اوولس کلنی یو هیواد فتحه کړ، په هغه ورځ به هره مسلمانه میرمن خپل بی همته میړه هیر کړی د خپلی هغی خور په میړه به فخر کوی چی چپنه یی د شهادت په وینو رنګ وی، په هغه ورځ به مسلمانی میندی وایی چی زموږ زامن هغه بی همته او بی زړه نه دی چی د غلیم د توری واریی پر خپل تټر وانه خست، زموږ زامن هغه غازیان دی چی میرانی یی مسلمانی ښځی د ټولی نړی په ښځو کی سر لوړی کړی. که دوی غواړی چی موږ یی په ویاړ خپل وروڼه وبولو نو دوی ته ښایی چی پر خپلو چپنو د شهادت د وینو خاپونه راوړی، موږ ته دی خپل بدنونه راوښیی چی په تورو اونیزو ټپی وی.

ثریا چی خبری پای ته ورسولی ښځی ورغلی او هره یوه بیله بیله ورتر غاړی وتله، له خیمی نه بهر تیمور ملك طاهر ته ویل:

تر څو زموږ په اولس کی داسی لونی وی موږ به د اسلام له دښمنانو سره تر

پیرپو پیرپو جگړې وروسته هم ماته ونه منو، طاهره! ته ډېر نیکمرغه یې، زه دعا کوم چې ستاسو د ژوند لارې بلخ ته په رسېدو بېلې نه شي. د خپلو اوچتو ارادو د بشپړېدو لپاره چې تاته د ژوند د کوم ملګرې اړتیاوه درته پیدا شو، ته دا تل د ځان ملګرې کړه.

طاهر چوپ ولاړ ؤ، د هغه په غوږو کې لا د ثریا د غږ انګازې وې، دې په تصور کې له ثریا سره په یوه لوړ برج ناست ؤ او لاندې یې په لکونو تنو ته د جهاد درس ورکاوه، د خیال په یوه بل توپ دی د یوې غونډې لمنې ته رسېدلی ؤ، هلته چې طبیعي ګلان غوړېدلي وو، خوږې وږمې چلېدې او د غرنیو خوړونو اوبو د نه ختمیدونکې خوږې سندرې ویلې، ثریا دلته هم ورسره وه، او هغه د خوړ په غاړه په ګلبوټو کې ډډه وهلې وه او زړه وړونکې سندره یې اورېدله.

د سترګو په رپ کې بیا دی د جګړې په میدان کې ؤ او ثریا یې پر زخمونو پټۍ ور اېښودلې. له ډېرو ورځو وروسته یې یوه بله نجلۍ په خیال کې ورورګرځېده، هغه صفیه وه، ځکه چې د صفیې او ثریا یو څو ځانګړې صفتونه سره شریك وو، او یا د دې لپاره چې له ثریا نه وړاندې دده په ذهن کې د صفیې تت غونډې تصویر ؤ، د صفیې په اړه ده له دې زیات څه تصور نه ؤ کړی چې د هغې له ده سره ډېره زیاته خواخوږي او همدردي ده، یوه داسې خواخوږي چې د څه بخښنې اړتیا نه لري، ده په زړه کې له څه ځانګړې احساس پرته د صفیې په اړه سوچ کولای شوای، خو د ثریا په اړه د ده احساسات بلکل بدل وو، هغې د خپل بې پایه تسخیرونکې ځواك سره د ده پر زړه او دماغ غلبه کړې وه، خو بیا هم دې داډه ؤ چې په بلخ کې به یې لارې سره جلا شي او دده په زړه کې به یوازې ښکلې یادونه پاتې شي او دغه یادونه به یې هم ښایي تر ډېره پرېشانه نه کړي.

تیمور ملك تر لږ ځنډه هغه ته په ځیر ځیر وکتل بالاخره یې وویل: ته ولې اندېښمن یې؟ که غواړې زه به دې په دې معامله کې ملګرتیا او لارښوونه وکړم.

نه، نه! طاهر تکان وخوړ ویې ویل: اوس نه تر اوسه زما د ژوند ددې خبرو مهال نه دی راغلی.

*****

(۵)

د سهار د لمانځه نه وروسته ثریا او اسماعیل د سفر تیاری ونیو، تیمور ملك دوی ته د ستومانه اسونو پرځای دری تازه نفسه اسونه ورکړل، طاهر د بیت المال

اشرفی تیمور ملك ته وسپارلی، تیمور د لاری پهره دارانو ته دا لیك ولیکه چې دوی ته په لاره کی چې څومره امکان لری دومره اسانتیاوی برابری کړي، پردی سربیره یی تر دوو پړاوونو مزله پوری د خطر احساس کاوه له دوی سره یی د سپرو ساتونکو یوه ډله واستوله.

د رخصتیدو په وخت کی طاهر ته تیمور ملك لاس ورکړ ویی ویل : زما دا لیك به نه یوازی تر بغداده ستا د رسیدو په لاره کی په کار درځی بلکی که د وضعی نه مجبور شی چی بیرته دلته راشی نو دا به دی د بیرته راستنیدو په وخت هم په درد وخوری، دا ښه درسره وساته، بیا یی ثریا ته مخ واړاوه ویی ویل :

زما خوری! تاته به په لاره انشاءالله هیڅ تکلیف نه وی ستا د لاری ملگری یو داسی زلمی دی چی یو ځل یی زما ژوند ژغورلی دی.

: زه هغه پیژنم، ثریا دا وویل او طاهر ته یی وکتل بیا یی سترگی ښکته واچولی، د دی په څیره کی د حیا سرخی ویل : ته دی له مانه ښه نه پیژنی.

له ټولی ورځی مزله وروسته ماښام مهال دوی یوی چوکی ته ورسیدل، دوهمه ورځ یوه ښار ته ورسیدل طاهر ساتونکی سپاره بیرته رخصت کړل، د ښار حاکم چی د تیمور ملك لیك ولید د دوی یی ښه خدمت وکړ، سهار چی کله ثریا د ښار د حاکم له کوره راووتله نو د نارینه ۋ پرځای یی د ښځی جامی اغوستی وی.

کله چی دوی پر اسونو سپاره شول او له ښار نه ووتل نو ثریا په شرمناکه لهجه وویل : ما جامی ځکه بدلی کړی چی نور موږ ته خطر نشته، ما اوریدلی دی چی تاتاریانو په خپل ټول زور د بخارا او سمرقند په لور مخه کړی ده.

طاهر وویل : ځکه خو زه غواړم چی زر تر زره بغداد ته ځان ورسوم.

ثریا وویل : ته زما په خاطر ځنډیږی خو ماته نور په لاره کی خطر نشته، که ته مناسبه بولی نو زه به د راتلونکی ښار له حاکم نه وغواړم چی ما بلخ ته واستوی، ته له هغه ځایه نیغ بغداد ته روان شه. خو اسماعیل زر وویل:

: نه، نه! زه تا له بلخ نه وړاندی نه پریږدم چی ولاړ شی. دا اصلاً د ثریا د زړه غږ ۋ، طاهر وویل : ښه ورورکیه، زه تر غزنی پوری ستا سره تلو ته تیار یم.

اسماعیل وویل : خدای دی ما له بلخه وړاندی په تلو نه مجبوروی پر اس د زیات سپریدو په سبب می پښی شلی شوی دی، مگر په بلخ کی به ته څو شپی زموږ میلمه وی.

طاهر ځواب ورکړ : داسی نشی کیدای د بلخ دروازی ته چی ورسیدو زموږ

لاری به سره بیلیږي.

اسماعیل وویل : ته زموږ سره د بابا تر کوره نه ځې؟

: کشکي له ما سره وخت وای.

: اسماعیل مایوسه شو وبی ویل : ته بیا بیرته کله نه راځې؟

: د اسماعیل په دی پوښتنه د ثریا زړه په درزا شو، طاهر له لږ دوه زړه توب وروسته ځواب ورکړ : که زما په ژوند کی د فرصت څه شیبې راغلی نو انشاء الله خامخا به راشم.

نو بیا خو په بلخ کی زموږ کور خامخا ووینه او بیا ولاړ شه.

: ستا د بابا نوم څه دی؟

: عبدالرحمن.

طاهر او اسماعیل تر ډیره خبری سره کولی او ثریا په زړه کی په وار وار د طاهر دا خبره تکراروله: که په ژوند کی کله ماته فرصت په لاس راغی نو انشاء الله خامخا به راځم.

او د هغی زړه په وار وار دا پوښتل چی آیا دا خبره هغه یوازی د اسماعیل د تسلی لپاره کوله او که نه ده ته معلومه ده چی له اسماعیل نه پرته بل څوك به زیات له بغداد نه د راتلونکو قافلو په انتظار وی تر اوسه پوری د طاهر له خولی داسی خبره دی نه وه اوریدلی چی دی ته دا ښکاره شوی وای چی د ژوند د لوړو منزلونو په لور د گام اوچتولو سره به د طاهر په زړه کی د لاری د یوه ورك منزل د ملگری یاد پاتی شی.

دی د طاهر په لوړو ارادو او هدفونو ویاړ کاوه، دی په هر لحاظ طاهر د . درناوی وړ باله، پردی خبره خوښه وه چی هغه د میړانی جوهر او کمال لری، د هغه په سترگو کی سپیڅلتیا، شرافت، او میړانه ځلیده، په ده کی ټول هغه څه موجود وو چی د اولس ورته اړتیا ده، او له دی سره ده هر هغه څه هم درلودل چی ثریا یی هیله کولای شوه.

* * * * *

(٦)

څومره چی منزل ته نژدی کیدل هومره د دوی په زړونو کی اندیښنه زیاتیدله، ښایی دواړو به دا شکایت درلود چی تر اوسه ولی یو د بل د زړه له کیفیت نه بی خبره دی، دوی یو بل لیدل غوښتل، خو سترگو یی د پورته کتو نه انکار کاوه، د

دوی ژبو څه ویل غوښتل خو ژبې یې گونگی وی.
بالاخره یوه ورځ دوی په هغه څلور لاری ودریدل چې د بلخ او بغداد لاری سره بیلې شوی وی. د اسماعیل اس څو گامه وړاندی ؤ هغه شاته راوکتل او ویې ویل:

تاسو ولی دریدلی یاست راځی که نه!
طاهر وویل : ودریږه اسماعیله.
: زه نور پر اس نشم سپریدای دایې وویل او له اس نه پلې شو اس یې تر جلب ونیو او په یوه تیږه کښیناست.
ثریا طاهر ته وکتل او ویې ویل : د ده زړه داسی دی چې ته تر کوره راسره ولاړ شی.
طاهر وویل : ته زما له خوا دی وپوهوه زه به له دی ځایه تر ماښامه یو پړاو مزل وکړم.
ثریا په غمجنه لهجه وویل : زه به یې وپوهوم.
: ښه نو د خدای پامان!
د ثریا شونډې ورپیدې، د خدای پامان ویلو هڅه یې وکړه خو ستونی یې بند شو، ژبه یې ودریده او په سترگو کی یې اوښکی ډنډ شوی.
طاهر د آس د جلب د گرځولو اراده وکړه خو په لاسو کی یې سیك نه ؤ : ولاړ شه! ثریا وویل او بیا یې له سترگو اوښکی وڅڅیدی.
طاهر وویل : ثریا! هغې ونی ته وگوره د تهولو ونو پانې رژیدلی دی خو هغه شنه ولاړه ده.
ثریا مخ بل لوری ته واړاوه، طاهر وویل اوس ماته مخ راوگرځوه، زه له تا سره څه خبری کول غواړم.
ثریا وویل : وروایه! که ته زما د اوښکو تر اغیزی لاندی راغلی وی نو باور وکړه دا د مننی او تشکر اوښکی دی، زه خپل مرستندوی ته له اوښکو پرته څه هدیه کولی شم!
طاهر وویل : ثریا ته داسی فکر مه کوه چې زه ستا له احساس نه خبر نه یم او دا گومان هم مه کوه چې زما په زړه کی ددی اوښکو هیڅ قیمت نشته، زما له سپینو خبرونه غلط مطلب وانه خلی، زه دا ددی لپاره وایم چې په دی له فتنو نه ډکی زمانی کی د ویلو او اوریدلو فرصت په وار وار نه برابریږی. زه سبا ته د بیا

لیدو په تمه نن له تانه خدای پامانی اخلم، کیدای شی هغه سبا ډیر زر راشی او دا هم کیدای شی چی ددی سبا په انتظار څو کلونه تیر شی، او دا هم امکان لری چی دغه سبا بلکل رانشی په هر صورت که تقدیر د ژوند په کومه څلور لاری کی یو ځل بیا سره یوځای کړو نو زه به د ژوند تر وروستی پړاوه ستا ملګرتیا د تقدیر یو ډیر ستر انعام ګنم. سمدستی زه تاته ددی ویلو ضرورت نه وینم چی زما مسئولیت ما بغداد ته وربولی او له هغه وروسته به د تاتاریانو د مقابلی لپاره د خوارزم هر مورچل ته ځان رسول خپل فرض ګنم، ته د هغه وخت لپاره دعا کوه چی زه د فتحی خبر بلخ ته درته راوړم، چی زما چپنه په وینو رنګ وی او زما پر بدن د ټپونو نخښی او داغونه وی.

ثریا مخ ور واړاوه طاهر ته یی وکتل او ویی ویل : زه به ستا انتظار کوم، کاشکی ما په هغو مورچلونو کی ستا ملګرتیا کولی شوای، ددی په سترګو کی د امید ډیوی بلی وی او طاهر احساسوله چی سپوږمی د وریځو له پردونه ناڅاپه راووتله، له یوی شیبی چوپتیا وروسته ثریا بیا وویل : اوس زه له تانه یوه هیله کوم.

: ووایه!

: د بابا تر کوره خامخا راسره ولاړ شه، زه یو ځل یوازی هغه دروازه تاته دربښیم چی ستا په انتظار به تل خلاصه وی، او چی ته کله بلخ ته بیرته راشی نو زموږ د کور هیڅوک هم دا ونه وایی چی ته کوم پردی او نا آشنا څوک یی.

ته زموږ له بابا سره وګوره، هغه به خوښ شی، زه وعده درسره کوم چی که نن نه وی نو سبا سهار ته به دی خامخا، رخصتوو، زما باور دی چی ته زما لپاره د دوو ورځو مزل په یوه ورځ کی کولی شی.

طاهر وویل : درځی!

اسماعیل په ورو ورو شکو یوه ډبره نخښه کړی وه او پری ویشتله یی طاهر او ثریا یی چی ولیدل ورنژدی شول جګ شو او پر اس سپور شو.

# سرتیری او سوداګر

شیخ عبدالرحمن یو چاغ او د ډیرو شتو خاوند سړی ؤ، د هغه مانی د بلخ د څو شاندارو مانیو نه یوه وه، دده د سوداګری کار او بار تر لری لری هیوادونو پوری غځیدلی ؤ، د سوداګری قافلی یی له بخارا او بغدا نه تر ډیلی پوری تلی راتلی، د ده د هستوګنی د کور ترشنګ په یوه لوی او پراخ بل کور کی د ده دفتر ؤ.

پر خوارزم د تاتاریانو د حملی نه وروسته هغه د کار او بار په راټولولو مجبور شوی ؤ د بخارا او سمرقند نه ده ته ډیر د اندیښنی وړ خبرونه راتلل، څو اونی وړاندی یی بلخ خوندی باله او خپل مال او شتمنی یی دلته راټول کړل، خو اوس یی خپل قیمتی مالونه غزنی ته استول.

طاهر یی چی په کومه کوټه کی ایسار کړی ؤ ټوله په قیمتی غالیو پوښل شوی وه او د اطلس او کمخواب پردی یی پر کړکیو راځړیدلی، هغه له اسماعیل سره په نژدی جومات کی د ماښام لمونځ ادا کړ او د ښار د ګنړی ګونی نه د ډک بازار له لیدلو وروسته بیرته راستون شو.

هغه له اسماعیل سره خبری کولی چی کوټی ته یوه معمره ښځه «حنیفه» ورننوته، اسماعیل ژر جګ شو ویی ویل : انی راغله!

طاهر هم زر له خپل ځایه جګ شو او په ادب ودرید، د حنیفی له سترګونه د غم او خفګان چینی خوټیدی، چی راغله بیله څه مقدمی یی وویل : زه ستا مننه کوم، تا په موږ ډیر لوی احسان کړی دی خدای (ج) دی اجر درکړی.

طاهر ځواب ورکړ : زه ځان د مننی حقدار نه بولم، دا زما ذمه واری او مسئولیت ؤ، زه د اسماعیل په پلار ډیر خفه یم.

حنیفی سر پورته کړ ویی ویل : هغه مړ شوی نه دی شهید دی، له هغه نه زما همدا هیله وه، ماته ثریا وویل چی ته به سهار وختی بغداد ته روانیږی، زه تاله ضروری کارنه نه ایساروم. خو که دی بیا په دی لاره کله مخه شوه نو دغه کور خپل کور وبوله، کله چی بغداد ته ورسیږی دا مه هیروه چی په بلخ کی یوی عربی

مور تاته زوی ویلی دی.
بیا یی اسماعیل ته وکتل ویی ویل : زویه ستا بابا احوال کری ؤ چی زه به له میلمه سره ډوډی خورم، خو ډیر زیات انتظار مه کوه، هغه ته زیات سوداگر راغلی دی امکان لری دلته راتگ یی هیر شوی وی، له کوټی نه د وتلو په وخت کی حنیفه بیا د کوټی په وره کی ودریده او طاهر ته یی وویل:
- زویه ! سهار له رخصتیدو نه دمخه زما دعاخامخا درسره واخله او بیا روان شه.
لږ څنډ وروسته له بلی نژدی کوټی نه چا اسماعیل ته غږ وکړ او د طاهر په زړه کی درزا پیل شوه دا د ثریا غږ ؤ.
اسماعیل د دروازی نه پرده لری کړه کوټی ته ورننوت او لږ څنډ وروسته بیرته راغی ویی ویل : د خورجانی گومان دی چی بابا جان ښایی ناوخته شی راځی تاسو ډوډی وخوری.
طاهر وویل : آیا دا به غوره نه وی چی لږ نور انتظار وکړو؟
اسماعیل ځواب ورکړ : د بابا هیڅ درك نه لگی، انا وایی چي هغه کله کله تر نیمو شپو پوری په دفتر کی بوخت وی.
: ډیر ښه! طاهر دا وویل او جگ شو له اسماعیل سره بلی کوټی ته ننوت.

*****

(۲)

په دسترخوان رنگ رنگ خواړه کتار شوی وو، یو حبشی غلام لاس په نامه په یوه گوښه کی په ادب ولاړ ؤ، دغه دسترخوان د بغداد د کوم امیر له دسترخوان نه کم نه ؤ.
طاهر چی کښیناست له اسماعیل نه یی وپوښتل: نور میلمانه هم راځی؟
هغه ځواب ورکړ : نه د نورو میلمنو ډوډی یی بهرنی میلمستون ته ور استولی ده، خور می ویل چی ته استراحت ته اړتیا لری، هغو خلکو به توله شپه له تانه پوښتنی کولی ځکه یی ستا لپاره دلته بندوبست وکړ.
د ډوډی له خوړلو وروسته طاهر له اسماعیل سره جومات ته ولاړ او د ماسختن لمونځ یی ادا کړ بیرته کوټی ته راستون شو اسماعیل ته یی وویل : اسماعیله! اوس به تا ته خوب درځی ولاړ شه ویده شه.
اسماعیل جگ شو د کوټی تر دروازی ولاړ خو بیا یی څه په زړه کی وگرځیدل

بیرته راوګرځید طاهر ورته وویل : ولی څه خبره ده؟

اسماعیل وویل : زه ویریږم چې ویده به می پریږدی او ولاړ به شی، طاهر هغه ته تسلی ورکړه ویی ویل : زه به له تا سره وینم او بیا به روانیږم، ورځه ولاړ شه.

اسماعیل داده شو او بهر ته ووت.

خادم په نغری کی پر اور نور لرګی ور واچول او طاهر له کرسۍ نه جګ شو په بستره څملاست، لایی سترګو ته خوب نه ؤ ورغلی چی اسماعیل بیا راغی ورته ویی ویل : بابا می ستا د لیدو لپاره راځی:

طاهر جګ شو کښیناست، لږ ځنډ وروسته یو لنډی موندی سری کوټی ته ورننوت طاهر زر جګ شو او لاس یی ورکړ!

شیخ عبدالرحمن دوه دری ځلې له سره تر پښو پر طاهر نظر وزغلاوه او بیا یې له څه مقدمې پرته وویل:

: ستا نوم طاهر دی؟

: هو صیب!

: عرب یی؟

: هوکی!

د تاتاریانو د حملی پر وخت په قوقند کې وې؟

: هوکې!

: تا هلته څه کول؟

: زه د تیمور ملك یو سپاهی وم.

: عبدالرحمن په خواشینی سره وویل : هغه بدنصیبه هم یو سپاهی ؤ.

: څوك؟ طاهر وپوښتل.

: نصیر الدین، ددغو هلکانو پلار، ما خپلی میرمنی ته ډیر وویل چی زما لور یوه سرتیری ته مه واده کوه، کله چی هغه غریبه مړه کیده دغه ښاغلی په مصر کی د نصرانیانو پرخلاف په جګړه بوخت ؤ، بیا یی د خوارزم شاه د خدمت جذبه پر سر کیوته، اوس د هغه د اولادونو انا ژاړی، د داسی زوم په اړه له دی پرته د بل خبر راتلو تمه کیدای شی؟

سپاهی یا په جګړه کی مری او یا تپی کیږی اوس له ژړا څه ګټه؟

طاهر ځواب ورکړ : وبخښی د قوم د سربښندویو سپاهیانو په اړه زما نظر ستا له نظر سره یو شان نه دی.

عبدالرحمن وویل : ته بده مه ګڼه مانه غوښتل په دی اړه بحث وکړم زه یوازی دومره پوهیږم چی عمر می ۶۰ کاله دی او تر اوسه می پر بدن یو وړوکی زخم هم نشته، زه یو ځل له یوه سرشوخه اس نه لویدلی یم، له هغه وروسته تر اوسه پوری پر اس له سپریدو ویراندی د اس حسب او نسب پوښتم، خو زه هغه ځوانانو ته حیران یم چی په وار وار له تپی کیدو وروسته بیا هم د تورو سره لوبیدل خوښوی.

طاهر وویل : د قوم عزت او آزادی یوازی د همدغسی ځوانانو په برکت دوام کوی، که د اولس ټول خلك ستا غوندی پر بدن د «ګریدو» نه وویریږی نو تاتاریان به په دی ځمکه موږ ته ساه اخستل ګران کړی

: ته غلط پوه شوی، زه له عادی سر تیرونه نفرت نه لرم، زما یوازی له هغو خلکو نه ګیله ده چی په کور کی آرام وی خو دوی د خپلو عزیزانو او دوستانو د ژړولو لپاره د جګړی ډګر ته روانیږی، نصیر الدین له داسی کسانو څخه ؤ.

طاهر وویل : د قوم د عزت او ازادی لپاره جګړه د هر سړی ذمه واری ده، دلته د خاص او عام خبره نه ده، د خدای (ج) په وړاندی د امیر او غریب د وینو قیمت یو دی بلکی زه خو وایم چی که اولس آزاد وی نو امیران زیاته ګټه تری اخلی، ځکه خو د قربانی په وخت دوی باید له قوم نه وروسته نه بلکی وړاندی وی.

عبدالرحمن په بحث کی بی ځوابه غوندی شو او د موضوع د بدلولو لپاره یی اسماعیل ته وویل : اسماعیله بچو! ته ځان سرتیری کوی او که سوداګر!

: زه به سرتیری وم خو سوداګر به هم وم.

عبدالرحمن پریشانه شو طاهر ته یی وکتل او ویی ویل : ماته معلومه شوه چی ته سبا ته روانیږی!

: هوکی! زه نن روانیدم، خو ستا د لیدو په شوق پاتی شوم

: ډیر ښه، زه به سهار خامخا درسره ګورم دایی وویل او اسماعیل یی تر مټ ونیو او بهر ته ووت.

د بالاخانی پر زینو چی خوت بابا لمسی ته په لوړ غږ ویل : بی عقله ما خوارزمشاه ته دوه لکه دیناره وراستولی دی، په دی پیسو هغه زیات پوځیان وربللی شی، زما مقصد د سرتیرو توهین نه ؤ، زما مطلب دا ؤ چی سوداګر هم د خپل کار او بار په سمبالولو د هیواد او قوم ښه خدمت کولی شی، که ستا پلار د خوارزم شاه لپاره د وینو ورکولو پرځای زما سره د سوداګری په کار او بار کی لاس کړی وای نو زموږ کار او بار به په لکونو دیناره نور هم پرمختګ کړی ؤ او

خوارزم شاه ته به مې زیاته مرسته ورکړې وه.
اسماعیل ویل : پلار جان مې د خوارزم شاه لپاره سرنه دې قربانی کړي، هغه زموږ د عزت او آزادی لپاره سر ورکړي دي، عبدالرحمن له غوسی نه په ډکه لهجه ویل : ځکه خو یی ته یوازی پریښودی او ولاړ، د خدای (ج) شکر باسه چی دغه ځوان یی مرستی ته درولیږه، که نه نو معلومه نه ده چی پر تاسو به څه راتلل مگر تاته دا بحث چا درښودلی راځه!
طاهر د دوهم ځل لپاره په زینه کی د هغوی د پښو غږ واورید او بیا موسکی شو او په بستره وغځید.

* * * * *

(۳)

سهار چی طاهر له جومات نه بیرته راوگرځید اسماعیل په کوټه کی ؤ ورته ویی ویل : په بله کوټه کی سبا ناری تیار دی!
طاهر چی له سبا ناری نه وزگار شو یو نوکر ورته ودرید ویی ویل : صاحب دی غواړی!
طاهر د اسماعیل په لارښوونه له کوټی نه راووت یوی پراخی برنډی ته ووت څو گامه لری په یوه زینه وخوت او د دوهم پوړ یوی ښایسته کوټی ته ننوت.
عبدالرحمن یوی تکیی ته ډډه وهلی وه په مخ کی یی په یوه زرین پتنوس کی یوه کځوړه وه، ورجگ شو طاهر ته یی لاس ورکړ او بیا یی له ځانه سره نژدی کینیناوه ویی ویل:
ستا آس چمتو دی، ثریا ویلی چی ستا یوه ورځ ضایع شوه، ځکه خو زه له خپلی طبیلی نه غوره اس درکوم، ما د ښار له والی سره هم لیدلی دی، هغه د لاری د پهره دارانو لپاره دا لیك راکړی دی وایی خله.
طاهر د عبدالرحمن له لاسه د والی لیك واخست ویی ویل : ډیره مننه! خو زما سره د تیمور ملك لیك ؤ.
ماته ثریا وویل : خو د تیمور ملك ستوری په دی ورځو کی سرگردان دی، زما سره ویره وه چی ښایی د بلخ د والی سپاهیان د هغه لیك ته څه ارځښت ورنه کړی، د ثریا دا اندیښنه هم وه چی که تا د تیمور ملك ملگری وبولی نو د پهری پرسر سپاهیان به ډول ډول پوښتنی درنه وکړی او ستا ډیر وخت به ضایع کړی.
طاهر جگ شو ویی ویل : زه ستا ددی زحمت مننه کوم ، نور ماته اجازه

راکړی!

: ودرېږه! عبدالرحمن له زرین پتنوس نه کڅوړه راپورته کړه او د خپل دروند وجود توازن یی برابر کړ جګ شو ویی ویل : زه ستا د زحمتونو انعام نشم درکولی خو زما له خوا دغه سوغات ومنه.

د طاهر په ښکلی او پراخه تندي وریځ وریځ ګونځې را پیدا شوې د عبدالرحمن له لاسه یی پتنوس واخست پر ځمکه یی کښېښود او کڅوړې ته یې اشاره وکړه ویی ویل:

په دی کی څه شی دی؟

: دوه زره اشرفی! که یی ته لږ بولی نو دوه چنده به یی کړم.

: زما په اړه ستا ګومان غلط دی، ماته اجازه راکړه، دایی وویل او بیا یی د خدای پامانی لپاره عبدالرحمن ته لاس ور اوږد کړ، خو عبدالرحمن پریشانه شو په دواړو لاسو یی خپله چپنه موښله.

: ته خفه شوی، څه ډول بد ګومانی! زه ستا د هرې لویی هیلی پوره کولو ته تیار یم، زه به د ثریا او اسماعیل د وزن په اندازه غمی درکړم، د احسان او نیکی بدل نیکی ده، ته په پراخ زړه وغواړه زه به یی په پراخ زړه درکړم، پر خدای (ج) سوګند چی د ثریا او اسماعیل د ژوند ژغورونکی به زما له کوره خفه ولاړ نه شی، زه یو عرب یم.

طاهر وویل : ما ستا لپاره هیڅ نه دی کړی، که می څه کړی هغه زما مسئولیت ؤ، که ته عرب یی زه هم یو عرب یم، خو تر عربی پخوا دواړه مسلمان یو، او مسلمان د چا اخلاص په پیسو نه تلی.

عبدالرحمن اوس خپله چپنه ډیره زیاته ګروله، هغه څه ویل غوښتل خو د شا د کوټی پرده وخوځېدله، ثریا ناڅاپه راښکاره شوه او د عبدالرحمن لاس یی ونیو.

بابا جانه! ثریا په ویریدلی لهجه زیاته کړه : انا دی غواړی عبدالرحمن بیله دی چی څه ووایی د ثریا سره د شا دروازی په لوری ولاړ، ثریا تر دروازی ورسره وه بیا ودریده یوه شیبه یی چوپه خوله طاهر ته وکتل او چی د پردی تر شا یی د دروازې ښدیدو غږ واورید نو په غمجنه او هیله منه لهجه یی طاهر ته وویل : زه له تاسه بخښنه غواړم، ما تولی خبری واوریدی هیله کوم چی زما بابا جان به یو ساده سوداګر وبولی او غلطی به یی ورمعاف کړی. هغه له سوداګری پرته نور په هیڅ نه پوهیږی، هغه ته تر توله نړۍ یوه‌منده یی ښکاری، هغه چی د شپی پر آسمان

ځلیدونکی ستوری وینی هم گومان کوی چی هغه به په خپلو کی څه معامله کوی. د خدای (ج) په خاطر ته له دی ځایه خفه مه څه! دا زما غلطی وه، ماته نه وه معلومه که نه ما به پوه کړی وای، ووایه ته د هغه غلطی وربخښی که نه.. زما لپاره؟

طاهر وموسکل او ثریا احساس کړه چی د ذهن له آسمان نه یی د غم وریځی لری شوی. هغه ورته وویل : ثریا! ته ولی پریشانه کیږی؟ ستا لپاره په زهرو ککړ غشی هم په تمر خوړلو ته تیار یم، او ستا بابا چی خو ماته هیڅ هم نه دی ویلی. زما په زړه کی د هغه زیات عزت دی هغه په خپل نظر کومه بده خبره نه ده کړی. فرض کړه که له ما سره څه نه وای زما د اړتیا احساس د هغه ذمه واری نه وه؟ ثریا موسکی شوه، او د موسکا سره یی اوښکی په سترگو کی راغلی.

طاهر په یوه وخت کی ددی په سترگو کی اوښکو او په شونډو موسکا ته حیران شو، هغه د لمر لومړنیو وړانگو ته گلان لیدلی وو چی راپاځیدل، هغه د گلاب پر پاڼو د پرخی غمی لیدلی وو، خو د ثریا سترگی په پرخه کی تر لمبیدلیو گلانو ډیری زړه وړونکی وی د هغی شونډی د لمر وړانگو ته ترغوړیدونکو غوټیو زیاتی په زړه پوری او ښکلی وی.

یوه زړه وره تجلی د مرگ په وړاندی خندلی شی، خو د ناڅاپی خوښی پیغام چی واوری کله چی په موسکا شی نو سترگی یی بی اختیاره د اښکو خزانی شیندی.

ثریا وویل : ته لږ ځنډ دلته ودریږه، باباجان به دی خدای پامانی ته راشی، اسماعیله پری یی نژدی چی ولاړ شی. ثریا له کوټی نه راووته او د هغه کوټی په دروازه کی ودریده چی بابا او انا یی سره گړیدل، ثریا ودریده د دوی خبرو ته یی غوږ ونیو او چی د هغوی خبری یی واوریدی په‌څلو باړخو گانو او غوږونو کی یی تودوخه احساس کړه.

شیخ عبدالرحمن ویل : ثریا هم دا غواړی!؟

د ثریا انا ځواب ورکړ : که ثریا داسې نه غوښتلی نو ما به هغه احمقه بللی وای. ته پخپله فکر وکړه که ته د ثریا پر ځای وای، نو ستا په زړه کی به ددغه ځوان په اړه یوه نه لری کیدونکی هیله نه راپورته کیده؟

عبدالرحمن له لږ فکر وروسته وویل : په دې کې شك نشته چې هغه ډیر نیك خویه دی، په دې کی هم شك نشته چې شریف دی، د لوړ نسب ښکاری، سترگی

بې مرې دی، خو که د ثریا پرځای زه وای نو دواړه لپاره به مې د داسې ځوان غوره کولو حماقت نه کاوه چې تل سر په تلی کی گرځی، په هر صورت اوس زما باور شو چې ته گه نن نه وې نو سبا ته، که سبا نه وې نو بله ورځ به د ثریا په اړه پر ما خپله پریکړه منی ځکه خو زه وسله ایږدم، ته داده اوسه، زه همدا اوس ورځم، خو هغه تللی نه وی.

عبدالرحمن په زوره غږ کړ: اسماعیله، اسماعیله!

د اسماعیل غږ راغی : څه وایی؟

: میلمه شته دی!

: هوکی!

: ورته ووایه لې ودرېږه زه اوس درځم.

حنیفی وویل : مگر د خدای (ج) لپاره نوره سادگی ونه کړی، هغه په غوسه شو ویې ویل : ته اوس هم تېنگار کوی چې د اشرفیو ور واندی کول زما ناپوهی وه.

حنیفی ځواب ورکړ : ناپوهی نه وه نو څه وو؟

: په خدای (ج) سوگند چې له کومې ورځې په ښه بده پوه شوی یم دا مې لومړی سړی لیدلی چې له دولت نه کرکه لری.

: ښه اوس د خدائ لپاره ورځه خو سم پام کوه بیا غږېږه.

: نو ستا په گومان زه هسې بی پامه لگیا یم! په خدای(ج) سوگند په وینا کی یوازی ته یې چې ما پر خپل عقل قایله نکړای شوی، په بلخ، سمرقند، او بخارا کی داسی شاعر نشته چې زما په ستاینه کی یې بوللی نه وی ویلی.

: که دی نن کومه غلطی ونه کړه نو د تل لپاره به زه هم ستا په هوښیاری اعتراف وکړم.

: نو بیا دروازی ته نژدی کښینه او زما خبری واوره.

ثریا له خپلی هیلی زیات څه واوریدل د یوی سارایی هوسۍ په څیر له کوټې نه وتښتیده، او خپلې کوټې ته ولاړه، په لویه هنداره کې یې خپله څیره ولیدله، د هغې باڼخوگان تک سره اوښتی وو، زر یې قلم او کاغذ را واخیست پر قالینه کښیناسته او په لیک بوخته شوه، دا ددی لومړی لیک ؤ.

* * * * *

(٤)

عبدالرحمن په بله کوټه کی له طاهر سره ولاړ ؤ، هغه اسماعیل ته وکتل، وبی ویل : زویه! ته د لږ څنډ لپاره بهر ته ووزه، اسماعیل جگ شو په برنډه کی ودرید عبدالرحمن طاهر ته وویل :

کښینه زویه! په تا ناوخته کیږی خو زه یوه ضروری خبره درسره کوم، زیات دی نه ایساروم.

دواړه یو بل ته مخامخ کښیناستل، عبدالرحمن وویل:

د داسی خبرو لپاره خلك لنډی او اوږدی مقدمی ږدی خو ستا بیره ده، او زه هم مصروف یم، په میلمستون کی زیات سوداگران ناست دی، زما له هغوی سره ضروری خبری دی ځکه خو زه دغه کیسه لنډوم، ماتاته دولت وړاندې کړ تا رد کړو دی نه مانه، او که یی رښتیا راباندې وایې زه پرې خفه شوم.

طاهر موسکی شو ځواب یی ورکړ: که ته تر اوسه پردی تېښگار کوی نو زه عرض کوم چی ته ماته کوم دولت راکوی هغه د خوارزم شاه بیت المال ته واستوه، قوم ښایی دی ته تر بل هر وخت زیات ضرورت ولری.

: زه ستا دا هیله نه ردوم، دغه پیسی به همالته واستوم خو زه درته د بل څه ویلو لپاره راغلی یم.

: ووایه!

: ستا په زړه کی تر اوسه داسی هیله شته چی ماته دی نه ده ویلی، د عبدالرحمن میرمن د پردی تر شا ولاړه وه او شونډه یی چیچله.

طاهر وویل : ته ووایه هغه کومه هیله ده؟

: خبره دا ده چی تا د خپلو اخلاقو او شرافت په سبب ځان د یو لوی انعام حقدار ثابت کړی دی.

طاهر وویل : که دغه انعام طلا او نقره نه وی نو زه به یی حاصلول خپله نیکمرغی وبولم.

: ځوانه! ولی صفا نه وایی چی ته له ثریا پرته له مانه بل څه نه غواړی؟

طاهر سترگی ښکته واچولی.

: ولی څه نه وایی؟

: شریف ځوان په داسی وخت کی څه نه وایی، حنیفی دا وویل او د پردی له شانه کوټی ته ورننوته.

طاهر په ادب ودرید، عمر خوړلی ښځی د طاهر پر سر د مینی دواړه لاس

ونیول ویی ویل : ژوندی اوسی زویه! ثریا ستا ده، اوس ولاړ شه خو ژر د بیرته راتلو هڅه وکړه.

*****

(٥)

د شمال په څیر د ګړندی اس هر ګام هغه د هغی ځمکی نه لری کاوه چی د هری ذری په سینه کی یی د مینی تکانونه احساسول، د شیخ عبدالرحمن له کوړ او د بلخ له بازارونو نه چی راووت داسی یی احساسوله چی په دی ښار کی دی مسافر نه ؤ، د یوه بلبل په څیر چی له یوه ګل سره د آشنایی نه وروسته ټول بڼ خپل ګڼی طاهر ته هم د بلخ هرڅه خپل ښکاریدل، لکه دی چی دلته ډیره موده اوسیدلی وی او په کلونو کلونو یی په دی فضا کی الوت کړی وی...

ثریا یی چی لومړی ځل په څیر وکتله داسی یی احساس کړه چی له پخوا یی تصویر په زړه کی ؤ، او د هغی غږ یی له کلونو کلونو راسی په غوږونو کی کړنګیده، او خدای (ج) خبر دوی له کومه وخته سره بلد وو.

طاهر ته ناڅاپه څه په ذهن کی وروګرځیدل او په یوه لاس یی هغه کڅوړه ولټوله چی له شانه یی پر زین تړلی وه، ښکلی کڅوړه ده پر آس د پښتنی اړخو پروخت لیدلی وه او اسماعیل ورته ویلی وو چی خورجانی می دلته د خوراك شیان درته ایښی دی، له ښارنه د راوتلو پر وخت دی په خپلو خیالونو کی ډوب شو او ترڅو میله مزله پوری یی کڅوړه ور په زړه نه شوه.

دی چی داده شو چی کڅوړه پر زین کلکه تړلی ده بیرته د خیالونو په نړی ورننوت د یوه خوږ غاړی ته چی ورسید له آس نه پلی شو په یوه ډبره کیناست.

د اوبو له څښلو وروسته اس د خوړ پرغاړه پرشنو وښو کی بوخت شو، طاهر هم د لوږی احساس وکړ، ورجګ شو کڅوړه یی زر خلاصه کړه او بیرته په ډبره کښیناست، د کڅوړی له خلاصولو سره یی په یوه وریښمین دسمال سترګی ولګیدی، دسمال یی راواخست د دسمال خوږ بوی او پکی د نغښتی کاغذ احساس د طاهر زړه په درزا کړ، هغه په دسمال کی نغښتی کاغذ پرانیست، توري او کرښې ورته ګلان شول او تر سترګو لاندی یی نڅیدل، فضا ټوله سندریزه شوه، داسی سندریزه چی ټالونه یی ډیر اوچت وو، ورو ورو دغه نغمه کراره شوه او غځیدونکی ګلان بیرته تور توری او جملی شول، ده د ثریا لیك لوستل پیل کړل، لومړی ځل یی شونډی نه خوځیدلی، دوهم ځل یی شونډی وخوځیدلی او دریم ځل

یی په لوړ غږ لیک ولوست: «زما مرستندویه! تا ویل چې په دې له فتنو ډکه زمانه کې په وار وار د ویلو او اوریدلو فرصت نه راځي زه دغه کربنې د همدې احساس له مخې لیکم، انا او بابا جان زما د دایمي ساتنې لپاره ته غوره کړې یې، زه ویریږم چې د خپلې ناکراری په ښودلو به ځان د یوه مجاهد د خدمتګاری کیدو جوګه ثابت نه کړای شم.

کله چې تا بلخ ته نژدې له ما سره خدای پامانی کوله نو زما په سترګو کې اوښکې راغلې وې هغه مهال ماته دا احساس له زغم نه وتلی ؤ چې دواړه به یو له بله بیلیږو او د خپل خپل ژوندانه د کتاب نوی پانی به اړوو. زما دا باور نه ؤ چې تقدیر به مو بیا په یوه لاره سره روان کړي.

اوس زه په زړه کې دا تسلی احساسوم او تاته باور درکوم چې په راتلونکی کې به ته زما په سترګو کې اوښکې ونه وینې.

زه خامخا دا وایم چې د بغداد غوندې لوی او له ګنې ګونې ډک ښار ته چې ورسیږې دغه وړوکی ښار هیر نه کړې. خو له دې سره دا دعا هم کوم چې زما خیال ستا د لوړو ارادو په مخ کې خنډ نه شي، زما یادونه ستا د پښو زنځیر نه شي، خامخا به انا او بابا تاته بلخ ته د ژر بیرته راستنیدو ټینګار کوي خو زه دا هیله کوم چې ترڅو دې په بغداد کې مقصد نه دی ترسره شوی ته د بیرته راتلو اراده مه کوه.

زما فکر مه کوه، زه تل ستا یم، تر څو لمر نړۍ ته د سهار پیغام راوړي، او د شپې مهال پر اسمان ستوري ځلیږي زه به ستا انتظار کوم. ته چې هر چیرته وې زما لپاره همدا ډاډ بس دی چې ته زما یې.

«ثریا»

طاهر لیک په جیب کې واچاوه، د هغه لوږه لرې شوې وه، په نه زړه یې څو نمړې وخوړې او کڅوره یې بیرته پر زین وتړله او پر اس سپور شو.

اس له هوا سره خبرې کولې او د طاهر په غوږونو کې د ثریا داالفاظ د نغمې په څیر کړنګیدل، «ته چې هر چیرته وې زما لپاره همدومره کافي ده چې زما یې».

# عملی اقدام ته بلنه

زید د پخوا په څیر د ماسختن لمانځه نه وروسته په طبیله راوګرځید، نوکران یی ورتلل او د کوریوی کوټی ته راغی کښیناست، لږ څنډ وروسته د ډیوی چوپولو لپاره راپاڅید خو بیا یی څه چورت وواهه د کټ نه لاندی یی لاس یو وړ او د اوسپنی مزبوت صندوق یی وکوت په زوره زوره یی کولپ کش کړ او بیا ډاډه شو ډیوه یی مړه کړه.

په دغه صندوق کی چی د طاهر شتمنی او د صلاح الدین ایوبی «رح» توره وه زید ته تر ځان ګران ؤ، د طاهر له تلونه وروسته هغه له کوره بهر ته نه ووت، او لوڅه توره به یی په بستره کی ورسره ایښودله او ویده کیده.

د شپی به یی چی وړوکی غږ واورید پری راویښ به شو او توری ته به یی لاس کړو د بغداد د هغو بی شمیرو غلو او لوټمارانو مقابلی ته به چمتو شو چی د ده په ګومان د طاهر له تلو وروسته ددی صندوق په لټه کی وو.

لومړی څو اونی خو به یی توره په لاس ټوله شپه په ناستی په پهره تیره کړه، له هغه وروسته یی د چپرکټ پر ځای پر صندوق بستره‌وغوړوله خو د صندوق سور او اوږده لږ وو ډیر ځله به چی په اړخ واوښت لاندی به ولویده، ورو ورو یی اندیښنه کمه شوه او بیا یی صندق تر چپرکټ لاندی کیښود، اوس د کور نوکرانو ویل چی د شپی مهال یی په خوب کی خریدل لږ شویدی.

زید اوس هم نه ؤ ویده شوی چی د دروازی ټک ټک یی واورید، او وریسی سمدستی غږ اوچت شو، د دروازی د خلاصیدو بړغ یی هم واورید توره یی ورسره واخستله اوپه لوړ غږ یی چیغی کړی: څوک دی؟

چی ځواب یی وا نه ورید په تیاره کی د دروازی په لوری ور نژدی شو او په لڅک کی یی غوږ ونیو، یو اس له دروازی نه دننه راتلو او نوکرانو یو بل ویښول.

چا پوښتنه وکړه : زید چیرته دی؟

د زید له خوښی نه زړه په ټوپونو شو، دا د طاهر غږ ؤ کله چی پهره دار ورته وویل چی هغه ویده دی نو ده د څادر اغوستل هم ضروری ونه بلل زر یی دروازه خلاصه کړه او په منډه ورغی طاهر ته ور تر غاړی ووت.

: ستا په لاس کی دا توره د څه لپاره؟

: اوه ! زما لـه یاده ووتـه، مـا گـومـان کـاوه چـی کـوم ډاکـو راغـی دا مـی راواخستله.

طاهر په خندا شو او زید احساس کړه چی ناڅاپه دده نه د گیلی هغه په زرگونو جملی هیری شوی چی د انتظار په ناپایه شیبو کی به یی په یوازیتوب کی له ځانه سره تکرارولی، یوازی دومره یی وویلای شوای: ته خو روغ یی؟ تپی خو به نه یی؟ زه ډیر درته اندیښمن وم.

طاهر ځواب ورکړ : زه بلکل روغ یم.

: ما پرون له یوه نجومی نه ستا په اړه پوښتنه وکړه.

: هغه څه درته وویل؟

: اوس که هغه ماته په مخه راغی نو کتابونه به یی سیند ته ورغورځوم. دروغجن، دوکه باز، مکار!

: بیا هم هغه تاته څه وویل؟

: خدای (ج) یی دی خوار کړی، هغه ویل چی ستا ستوری سرگردان دی، او ته د تاتاریانو په زندان کی یی، او ترڅو چی د ستوری دغه سرگردانی پای ته ونه رسیږی را به نه شی. خو دغه سرگردانی به د یوه کال دننه ختمه شی، ما هغه بی ایمانه ته خوشی پنځه دیناره ورکړل.

هغه ستا په اړه نوری هم خوشی تشی خبری راته کولی.

طاهر وخندل پوښتنه یی وکړه : څه خبری؟

زید چی نوکران بوخت ولیدل ورو یی په راز دارانه لهجه وویل: راځه دننه!

طاهر دوډی پخوونکی ته وویل چی ډوډی تیاره کړی او له زید سره دننه ولاړ، زید ډیوه بله کړه، په رڼا کی د هغه سترگو د طاهر بلا اخسته، طاهر وویل ښه هغه خوشی خبری څه وی؟

: هغه ویل چی پر تا به یوه تاتاری شهزادگی مینه شی، او د هغی په سبب به د مغلو له زندان نه خوشی شی، که سبا ته په مخه راغی نو داسی درس به ورکړم چی ټول عمر ورته یاد وی.

طاهر وویل : له مدینې نه کوم لیك راغلی؟
: احمد بن حسن پخپله راغلی ؤ، دوی هفتی یې تیری کړی بیرته ولاړ، هغه ویل چې ته بغداد ته راشې خپل احوال په لیك کې ورته ولیکه.
طاهر د خپلو دوستانو په اړه وپوښتل زید ځواب ورکړ: مبارك هره ورځ راځي ستا پوښتنه کوي، عزیز او عبدالمالك دوهمه، دریمه ورځ احوال اخلي، نور کله کله راځي، هو یوه بوډۍ څو ځله دلته راغلی او هغه هم ستا په اړه پوښتنه کوي.
: هغه څوك کیدای شي؟
: ماته نه ده معلومه، یوه ورځ له شا پسې ورغلم، هغه د سیند پر سر پله تیره شوه او بیا د صدر اعظم کور ته ننوته.
طاهر وویل : زه اوس یو مهم کار تاته سپارم ته همدا اوس عبدالعزیز ته ورشه ورته ووایه چې عبدالمالك او نور اعتمادي ملګري درسره راوله او دلته راشيء که هغوی ویده وي هم ورته ووایه چې ضروري کار دی باید راشي زما لیك درسره یوسه.

* * * * *

(۲)

طاهر چې د دوډۍ‌له خوړلو نه فارغ شو زید، عبدالعزیز، عبدالملك او مبارك ورسره راوستل، زید بلې کوټې ته ولاړ او ویده شو، طاهر له خپلو دوستانو سره تر ډیره وخته خبرې کولې.
د عبدالعزیز په نظر خلیفه، صدر اعظم او وحید الدین دری واړه په دې دسیسه کې شریك وو، مبارك په دې اړه څه رایه نه درلوده، هغه یوازې د عبدالعزیز خبرې ورسره تائیدولې.
عبدالمالك د څه ویلو پرځای په چورتونو کې ډوب وو، کله چې طاهر تری رایه وغوښتله نو هغه له لږ سوچ وروسته وویل:
ستا ملګري چې ددې دسیسې ثبوتونه یې وړاندې کولی شوای وژل شویدي وحید الدین تر اوسه پوري ورك دی، د هغه پرځای د هغه مرستیال مهلب بن داؤد کار کوي، تر څو موږ د وحید الدین احوال معلوم نه کړو پر چا څه جرم نه شو ثابتولی، که هغه وژل شوی او یا په کومه نا معلومه بندي خانه کې بندي پروت وي نو زه د هغه په اړه دا ویلی شم چې په دې دسیسه کې د هغه هیڅ رول نشته.
عبدالعزیز پوښتنه وکړه: ولې؟

عبدالمالك ځواب ورکړ : په پرده کی د هغه د وژلو او یا بندی کولو علاقه له هغه چا سره ممکنه ده چی د هغه د راڅرگندیدو نه ویرېږی چی راز به یی افشا کړی، مثلاً خلیفه، یا صدر اعظم او یا کوم بل څوك چی دده په نامه یی دسیسه جوړه کړی ده، ددی پر خلاف که دی په خپله خوښه چیرته غلی شوی وی نو بیا دا خبره ثابته ده چی دی یوازی ددی خبرو ذمه وار او مسئول دی،ځکه خو تر څو موږ د وحید الدین د ورکیدو راز معلوم نه کړو ددی پیښو یادونه چاته باید ونه کړو.

طاهر وویل : دغه راز له دری تنو څخه څرگندیدای شی خلیفه، صدر اعظم او مهلب بن داود ، زه مهلب ځکه پکی راشریکوم چی د وحید الدین د ورکیدو نه وروسته په عامو حالاتو کی خلیفه باید د هغه پر مرستیال اعتماد ونه کړی، پردی سربیره سمدستی د هغه په وزیر کیدو هم شکونه را پیدا کیږی.

اوس پوښتنه دا ده چی له دی دری تنو نه لومړی له کوم یوه سره وگورم؟

عبدالملك وویل : تر ټولو دمخه له صدر اعظم سره وگوره، د خلیفه په محل کی په داسی رازونو پوهیدونکی د تل لپاره په ځمکه کی ښخیدای شی. خو د صدر-اعظم په کور کی لږ تر لږه یو داسی څوك شته چی ته یی د ځان بللی شی.

طاهر وپوښتل : هغه څوك دی؟

عبدالملك په موسکا ځواب ورکړ : هیر دی شو؟ ما خو ستا لپاره هره دوهمه او دریمه ورځ خپله میرمن د صفیی د تسلی لپاره استوله.

طاهر وویل : له ما سره ستا همدردی خو به د اخلاقی حدودو نه بهر نه وی؟

: نه ما یوازی د یوه دوست ذمه واری ترسره کړی.

هغه ستا په اړه واقعاً ډیره پریشانه وه.

طاهر وویل : زما پردی څه اعتراض نشته چی مشر ورور می یی، خو داړه اوسه زما له دی نجلۍ سره هیڅ نشته.

: په هر حال د هغی له تا سره مینه ده، ډیره توده مینه او محبت.

زه پردی خوښ یم چی هغه ددی وړ ده، زما میرمن هم ـ هغی ډیره ستاینه کوی.

څلور واړه ملگری بیا اصلی خبرو ته راوگرځیدل او تر ډیر بحث وروسته دا پریکړه وشوه چی طاهر دی تر ټولو دمخه له صدر اعظم سره وگوری، عبدالعزیز همالته ویده شو، عبدالملك او مبارك خپلو کورونو ته ستانه شول.

* * * * *

(۳)

سهار وختی له لمانځه وروسته طاهر د صدر اعظم کور ته ورغی، د کور د مخی په باغ کی یی دواړو خواو ته د ګلونو پټی لیدل، ناڅاپه یی د ګلونو په منځ کی یوه ښکلی نجلی ولیده هغی ورو ورو قدم واهه، په لاس کی یی څو ګلان وو، هغه د یوه بوټی ترڅنګ ودریده، ور تیته شوه د یوه ګل د راشکولو لپاره یی لاس ور اوږد کړ، خو چی د طاهر د پښو غږ یی واورید مخ یی ور واړاوه، طاهر په یوه نظر هغه وپیژندله، هماغه غټی غټی شرابی سترګی چی د دجلی د سیند په څنډه یی لیدلی وی، او هماغه ښکلی مخ چی د سپوږمۍ په رڼا کی یی د همدې بڼ په یوه څنډه کی لیدلی ؤ، هغه صفیه وه، هماغه صفیه!

د طاهر په لیدو د هغی څېره له خوښۍ وغوړېده، د یوې شیبې لپاره طاهر دوه زړی شو ودرید، خو بیا یی اوږده اوږده ګامونه واخستل او وړاندی ولاړ.

صدر اعظم چی خبر شو دی یی دننه وروغوښت، ښه تود روغبړ یی ورسره وکړ او ویی ویل : ډیر ځنډ دی وکړ، زه درنه مایوس شوی وم، څه وخت راورسیدلی؟

طاهر لږ په تفصیل ددی پوښتنو ځواب ورکول غوښتل خو ډیر زر یی احساس کړه چی د صدر اعظم پام په بل لوری دی، تر مایوسی زیات هغه پریشانه شو، د هغه ګومان ؤ چی صدر اعظم به د ابواسحق، کمال او جمیل پوښتنه تری کوی خو هغوی دده په یاد هم نه وو.

طاهر لا تر قراقرم پوری د رسیدو د حال تفصیل نه ؤ بیان کړی چی صدر اعظم یی خبره ورغوڅه کړه ویی ویل : د خلیفه لیك یی چی ولوست چنګیز خان څه وویل؟

: هغه وویل چی موږ پر خوارزم د یرغل اراده پریښوده.

: دروغجن، دوکه باز هغه شونډی وچیچلی.

طاهر لږ فکر وکړ بیا یی وویل : مګر د چنګیز خان له خبرونه داسی ښکاریده چی د خلیفه د بی طرفی نه ډاډمن شوی وی، ښایی په قراقرم کی داسی خلك وی چی چنګیز خان ته دا تسلی ورکوی چی د خوارزم شاه په اړه د خلیفه ظاهر او باطن یو شان نه دی.

: دا خو هر احمق ته معلومه ده او زه چنګیز خان احمق نه ګنم، په هر صورت زه په دی خفه یم چی ته مو هلته واستولی، اوس نړیوالو ته ددی ویلو موقع په لاس ورغله چی موږ پټ چنګیز خان ته ډاډ ورکړ او د هغه حوصله مو مضبوطه

کړه، د لښکرو مشر له استعفی سره دغسی شکونه نور هم زور اخلی.

: د پوځ مشر استعفی ورکړه؟

صدر اعظم پردی پوښتنه تکان وخوړ ویی ویل : چاته تر اوسه په دی اړه څه مه وایه، زه هڅه کوم چی هغه خپله استعفی بیرته واخلی، اوس زموږ هغه ته اړتیا ده.

طاهر وپوښتل : د وحید الدین څه درك معلوم شو؟

: نه؛ او زما له دی خبرو سره اوس هیڅ دلچسپی نشته.

: زه له خلیفه سره لیدل غواړم، ته زما سره په دی اړه څه مرسته کولی شی؟

صدر اعظم په بی پروایی ځواب ورکړ : خلیفه د ځوانانو د احساساتو هیڅ پروا نه لری، ته به هغه ته وایی چی سمدستی د خوارزم شاه د ملاتړ اعلان وکړی، او ته به هماغه ځواب واوری چی د لښکر مشر یی مایوسه او استعفی ته مجبور کړ، او هغه ځواب دا دی چی ته موږ له کومه وخته راهیسی مشاور ټاکلی یی؟

: امکان لری زه د خلیفه په وړاندی د راتلونکو خطرونو سهی نقشه وکاږم او...

وزیر اعظم د هغه خبره ورغوڅه کړه : بچیه! په بغداد کی د پوهوونکو کمی نشته، ته ولاړ شه په مناسب وخت کی به دی راوغواړم ستا لپاره په یو مناسب منصب فکر کوم. تر څو ورځو پوری به خبر درکړم.

طاهر وویل : زه دی نتیجی ته رسیدلی یم چی په اوسنیو حالاتو کی د خلافت په دربار کی د کوم منصب په اخستلو څوك د قوم او اولس سهی خدمت نشی کولی، بیا هم زه تاته وعده درکوم چی د وخت په راتلو به زه ځان د اولس یو سرښندوی سپاهی ثابت کړم.

* * * * *

(٤)

صفیی په لاس کی د گلو گیډی نیولی وه او په بڼ کی د تیری شوی ویالی په غاړه ولاړه وه، یو گل به یی په رڼو بهیدونکو اوبو کی وغورځاوه او چی هغه به لږ لری ولاړ بیا به یی بل وروغورځاوه او ننداره به یی کوله، کله به یی چی گیډی خلاصه شوه د لنډو پټیو نه به یی نور گلان راوشکول او بله گیډۍ به یې جوړه کړه او بیا به په همدی لوبه له سره راگرمه شوه.

د صفیی به دریمه گیډۍ نژدی خلاصه شوی وه طاهر یی ولید چی له درشل نه راووت، د دروازی په زینو کی لاندې راکوزیده، دا زر زر د مرمرو دبرونه جوړ

شوی پله‌پرسر له ویالی تیره شوه او د گلانو له بوټونه یې گلان شکول او ورو ورو طاهر ته ور نژدی کیدله.

صفیې بوی او بلې خواته وکتل هیڅوك یې هم شاوخوا ونه لیدل، بیا یې هم زړه درزیده، ورو ورو د گلو له بوټونه را ووتله او سړك ته د وروتلو لپاره یې د مرمر دبرې په پله پښه کیښوده، خو په سترگو یې د حیا پردې راغلی دوه زړی شوه پښې یې وریږدیدلی او بیا وښویېده نژدې وه چې په ویاله کې ورپریوزی، طاهر ور وراندی شو او زر یې لاس ورته ونیو، صفیې په خجالت د هغه لاس ونیو د هغې پر څیره د حیا سرو او سپینو څپو نڅا کوله.

له شرم او حیانه وارخطا شوی صفیې په ورو وویل : شکریه!

طاهر وویل : افسوس دی ته خو به خوږ شوی نه یې؟

: نه!

طاهر دوه زړی شو او یو گام یې واخست، صفیې زر ورته وویل، ما دا گلان شکول واخله! بیا یې گلان طاهر ته ونیول، طاهر هم په وارخطایی گلان واخستل.

هغې وویل : په بغداد کې ستا د راتلو ډیر انتظار کیده ته ډیر ناوخته شوی!

: هوکې حالات داسې شول چې وځنډیدم.

طاهر له کومې بلې خبرې پرته خپله لاره ونیوه او ولاړ، صفیه لږ ځنډ نوره هم هلته ولاړه وه، په بوټیو کې گلانو خندل او د ویالې رڼو اوبو په کړس کړس خنداکوله، هغې بیا څو نور گلان وشکول او د مرمر ډبرو په تختو ودریده هغه یې یو یو ویالې ته وغورځول.

سکینه پر درشل رابنکاره شوه د مرمرو په زینو ودریده او ناری یې کړی : صفیې! صفیې ته نن کورته نه راځې؟

صفیې زر ځواب ورکړ : درغلم!

د محل نه له راوتلو وروسته د سیند د پله پر سر طاهر د لږ ځنډ لپاره ودرید، هغه گلانو ته په ځیر ځیر وکتل او بیا د سیند د اوبو د بهیر په سیل ورتېت شو، د یوه زور خیال سره یې پر گلانو لاسونه سست شول، گلان سیند ته ولویدل او په څپو کې تری ورك شول.

طاهر وویل : ثریا! ثریا! زه ستایم، یوازی ستا!

او بیا له هغه ځایه روان شو، د هر گام په اخستلو سره گړندی کیده، په کور کې عبدالعزیز، عبدالملك، مبارك او افضل دده انتظار کاوه، هغوی چې دی ولید

پوښتنې یې ترې پیل کړې، طاهر په داد پر کرسۍ کښیناست ویې ویل : زه حیران یم چې دا خبره تر اوسه زما ذهن ته ولې رانغله چې که موږ د هغه دسیسې اصلي مجرم ونیسو هم د خوارزم مصیبت نشي رفع کېدای، امکان لري صدر اعظم ددې کار ذمه وار وي، دا هم کېدای شي چې د خلیفه پکې لاس وي، او دا هم امکان لري چې هغوی دواړه ذمه وار نه وي، خو دا وخت داسې نه دی چې باید ضایع کړای شي، د تاتاریانو سیلاب ډېر ګړندي پرمخ را روان دی، اوس تر هر څه لوی ضرورت دا دی چې د بغداد اهل د راتلونکو خطرونو نه خبر کړای شي، هغوی د غفلت له خوبه را بیدار کړای شي په بغداد کې یوې دلې د بلې او یوې فرقې د بلې پرخلاف مورچل جوړ کړی دوی ته ددې ویلو اړتیا ده چې داسې یو محاذ هم شته چې د کفر ټول طاقتونه راټول شوي او مسلمانانو ته د ټولو قوتونو د یوکولو بلنه ورکوي.

زما باور دی چې یو شریک خطر موږ ټولنیز جهاد او هڅو ته اړ کولی شي، په داسې حال کې به هغه خلك چې غلي غلي د تاتاریانو ملاتړ کوي، براﻻ زموږ مخې ته راووزي.

زه غواړم چې اوس د بغداد د هر جومات نه یوازې یوه ناره اوچته شي او هغه دا چې د تاتاریانو د مقابلې لپاره موږ سره یو یو، تر ټولو دمخه زه د بغداد په لوی جومات کې دا ناره اوچتوم.

افضل وویل : خدای (ج) د وکړي چې بریالی شې، خو له تیرو دوو درې پیړیو راهیسې د بغداد مسلمانانو یوازې پخپلو کې د یو بل سر ماتول زده کړي دي، سنې د شیعه دښمن دی او شیعه د سنې د وینو تږی، حنفي، شافعي، او مالکي یو له بل سره لاس او ګریوان دي، او حنبلي‌خبل خواته ډنګوي!

تاسو کوم جومات ته ولاړ شئ کومې ټولنې ته د خبرو له پاره پاڅیږئ له تاسونه به لومړۍ پوښتنه همدا وي چې جنابه ته له کومې مذهبي فرقې سره یې؟

طاهر ځواب ورکړ : زما سره ددې ستونزو احساس دی، خو زه ددې منلو ته تیار نه یم چې دغه حالات به نور هم دوام وکړي د شریك خطر احساس دغه اختلافات لرې کولی شي.

افضل وویل : ددې ذمه واري زموږ د هغو تنبلو او لټو علماؤ ده چې هیڅ هدف نه لري خو نن هغوی ته دا ویل کېدای شي چې د تاسو مقابله له داسې چا سره ده چې د هر کلمه ویونکي دښمن دی، ستاسو د خپلواکۍ ډیوه مړه کېدونکې ده، موږ

دی علماؤ ته ویلی شو چی تاسو مسلمانان یو له بل سره وجنگول، اوس کفار په میدان کی درته د مقابلی چیغی وهی، زما باور دی چی خلك به هغوی میدان ته په زور راکش کړی.

عبدالعزیز او عبدالملك هم په دی بحث کی برخه واخستله، بالاخره دا پریکړه وشوه چی طاهر به د جمعی په ورځ د بغداد خلك د خوارزم د خلکو له حالت نه خبروی او له دی نه وراندی به دا خبره مشهوروی چی یو سړی د بغداد د اولس په نامه د خوارزم د مظلومو مسلمانانو پیغام راوړی دی.

له جگیدو نه وړاندی عبدالعزیز وویل : زما باور دی چی حکومت به موږ ته دیر د داسی چارو اجازه رانه کړی، او په راتلونکو څو اونیو کی به زموږ منزل د خوارزم د جگړی ډگر وی، خو زموږ لپاره غوره دا ده چی حکومت زموږ له چارو څخه ناخبره وی، د طاهر د وینا نه وروسته به هغه کسان چی موږ یی په تاتاریانو پلورلی یو چوپ نه کښینی. له هغه وروسته موږ باید طاهر تر هغه وخته پوری پټ وساتو ترڅو د اولس احساسات د نه فتحه کیدونکی کلا په څیرنه دی راولاړ شوی. که د صدر اعظم یا خلیفه نیت خراب وی نو سمدستی به د طاهر د نیولو هڅه وکړی، په دی ورځو کی له بده شامته په موږ کی د غدارانو کمی نشته، ځکه خو زه ستاسو په مخکی له ټولو وړاندی له طاهر سره د وفاداری سوگند کوم، او له تاسو نه هم غواړم چی دغسی سوگند وکړی.

ټولو ملگرو قسمونه وکړل، بیا عبدالعزیز وویل: اوس که په موږ کی کوم یوه خیانت وکړ د نورو ملگرو به دا ذمه واری وی چی څټ یی ور پری کړی.

ټولو دوستانو ددی وړاندیز تائید وکړ او مجلس رنگ شو.

*****

(٥)

د جمعی نه وړاندی په ښار کی د هر جومات او مدرسی په وره دا اعلان ځړیدلی ؤ چی د جمعی له لمانځه وروسته به یو سړی د ترکستان د مسلمانانو پرسر د تاتاریانو د ظلونو په اړه د خپلو سترگو لیدلی کیسی اوروی.

قاضی فخر الدین د ښار څو با عمله علماؤ او د مختلفو مدرسو طالبانو د بغداد په کوڅو او واټونو کی دا شعارونه ورکول چی د بغداد د مسلمانانو په نامه د ترکستان مسلمانانو یو پیغام را استولی او ددی پیغام راوړونکی هغه ځوان دی چی پلار یی په بیت المقدس کی د هلال او صلیب په جگړه کی د مسلمانانو د

فتحی بیرغ رپولی ؤ او صلاح الدین ایوبی «رح» په انعام کی خپله توره وربخښلی وه.

د پنجشنبی په ماښام صدر اعظم طاهر کورته وروباله او تری ویی پوښتل چی ته د بغداد خلکو ته څه پیغام اورول غواړی؟

د صدر اعظم په باب د طاهر شکونه بیا تازه شول خو هغه د تدبیر نه کار اخستل مناسب وبلل ځواب یی ورکړ:

ته پوهیږی چی د خوارزم هیواد د تاتاریانو وروستی هدف نه دی، که هغوی هلته بریالی شول نو دوهم هدف به یی عراق وی، کیدای شی د عباسی دولت سره د جنگیز خان اړیکی دوام وکړی خو کمزور ته د زورور په دوستی باور حماقت دی، ځکه خو زه غواړم چی د هر ډول بدو حالاتو لپاره چمتو اوسو، زه غواړم د بغداد ویده خلك راویښ کړم که دښمن یرغل راوړی دوی خو لږ تر لږه د خپل کور ساتنه او دفاع وکړی.

: تا ماته هغه ورځ ولی ونه ویل چی په جامع جومات کی خبری کول غواړم.

: هغه ورځ دا زما په ذهن کی نه ؤ، که ته زما پر ځای وای په داسی چارو کی به دی له چانه مشوره اخستل لازم نه وو بللی.

: زه ویریږم چی ته د خلیفه په باب څه گستاخی ونه کړی؟

: مگر ددی پرخلاف زه فکر کوم چی په دی وینا زه خلیفه او تاسو ته لوی خدمت ترسره کوم.

طاهر د صدر اعظم پر تینگار همالته ډوډی ته پاتی شو، پر دسترخوان قاسم هم ؤ، هغه په بی پروایی د خوارزم په اړه څو پوښتنی وکړی او چی کله طاهر له صدر اعظم نه رخصت واخست قاسم تر برنډی پوری ورسره راووت، طاهر ته یی لاس ورکړ او په طنز یی تری وپوښتل: آیا تر اوسه دی په کومه لویه غونډه کی وینا کړی؟

طاهر په موسکا ځواب ورکړ:

زه یوازی یو سپاهی یم.

له محل نه بهر عبدالملك او عبدالعزیز په ډیره ناکراری د طاهر انتظار کاوه، عبدالعزیز چی ولید ویی ویل : تا ډیره اشتباه وکړه موږ وویریدو چی صدر اعظم به تا خطرناك وگنی او بندی به دی کړی.

طاهر وویل:

زه هم ویریدم خو په دی کی مصلحت ؤ چی زه دوی تر سبا پوری د ځان په باب بدګومانه پری نږدم، ځکه چی بیا به دوی د جومات په دروازو پهری درولی وی.

* * * * *

(٦)

د جمعی د لمانځه نه وروسته یو ځوان د منبر سرته پورته شو او خلکو ته یی ظاهر ور وپیژاند، طاهر د خبرو لپاره پاڅید. د دومره لویی غونډې په مخکې هغه د لومړی ځل لپاره دریدلی و.

د قرآن کریم څو آیتونه یی تلاوت کړل، بیا یی په وارخطایی خبری پیل کړی، د بغداد خلکو هره ورځ په مناظرو کی د لویو لویو اورژیو وینا کوونکو خبری اوریدلی وی، تر لږ ځنډه دوی په بی پروایی ناست وو او پخپلو کی یی پسپسکی کولی، په دی غونډه کی داسی خلك هم ناست وو چی د بغداد په یو جومات کی یی پر منبر په خپل مخکی د کوم پردی خبری د ځان توهین باله.

داسی خلك هم وو چی دا یی احساسوله چی کاشکی نن هم کومه مناظره وای.

یو مشهور عالم په ډیر ساده انداز اوچت شو ویی ویل : مهربانی وکړه ته کښینه هغه سړی ته د خبرو نوبت ورکړه چی له ترکستان نه راغلی دی.

پردی خبره ځینو خلکو وخندل. خو پر طاهر دی ټوکې بل ور اغیزه وکړه، هغه له یوی شیبی چوپتیا وروسته بیا خبرو ته دوام ورکړ:

زما دوستانو! دا ځای د ټوکو لپاره نه دی، بیا هم زه ستاسو ژوندی روحیی ستایم، کاشکی تاسو د جګړی پر ډګر هم دغسی ژوندی روحیه ولری، زه دلته ددی لپاره نه یم راغلی چی په وینا څوك راته شاباش ووایی، زه نه وینا کوونکی یم او نه داستان ویونکی.

زه یوازی یو استازی یم، د ترکستان د اسلام د هغو بچیانو چی له کوپړیو نه یی تاتاریان د فتحی په ویاړ ځلی جوړوی، زه د اسلام د هغو لونو استازی یم چی د عصمت ساتونکی یی په خاورو او وینو کی شتیږی او اوس یی وروستی امید تاسو یاست.

زما سره کړسندې خنداګانی نشته، اوښکې دی.

ای په خپله جادویی وینا فخر کوونکو! اولس ته د الاهو ویلو او ویده کولو وخت تیر شوی دی، زه تاسو د مرګ له خوبه راپیدارول غواړم، زما خبری په خلاصو غوږونو واوری!

د طاهر غږ ورو ورو اوچتيده، بنده ژبه يې اوس د غرنی خوړ د اوبو په څير روانه شوه، او بيا ورو ورو خلكو په دغه غرنی خوړ كی د سيند څپی احساس كړی، د هغه سيند چی بندونه يو پر بل پسی نړوی، خلك هم په همدی څپوكی ورسره بهيدل.

طاهر د ماضی له مخ نه پرده پورته كړه هغه هير منزل ته يی اشاره كوله چی سارايی عرب د نړی د نيولو په اراده تری راوتلی وو.

هغه د تاريخ پاڼی چپه اړولی د هغو غازيانو داستانونه يی اورول چی په ختيځ او لويديځ كی يی د اسلام نوم لوړ كړی ؤ، هغه د راتلونكی په پردو كی غلی توپان ته اشاره كوله او خلكو په چوپه، چوپتيا كی غوږ نيولی ؤ، د ځينو سترگی لمدی وی، يوه زلمی ډير په زحمت خپلی اوښكی را ايساروِلی طاهر ويل:

د اولس پر لمن د بدبختی داغ په اوښكو نه په وينو مينځل كيږی.

په ياد ولری!

څه وړ ژوند چی تاسو كوی، دا له فطرت سره ملنډې دي، او فطرت له ځان سره ملنډی وهونكی هيڅكله نه بخښی، د مسلمانانو نښنښه دا ده چی دوی به د كفارو په وړاندی د اوسپنيز ديوال په څير دريدل، مگر اوس چی كفار خپل ټول ځواكونه ستاسو پرخلاف سره يو كوی، ستاسو علما تاسو په ځلور لارو كی راغونډوی او د يو بل د سر ماتولو مشوره دركوی.

پردی يو سړی چی د بغداد د مناظرو يو نوماند ويناوال ؤ جگ شو او چيغی يی كړی:

زه په ډير ادب او درناوی پوښتنه كوم چی ته په كومه فرقه پوری اړه لری.

طاهر هغه ته د كښيناستلو اشاره وكړه ويی ويل:

زه يو مسلمان يم.

: څه ډول مسلمان؟

: طاهر په غوسه ځواب وركړ:

: تاسو له دری سوه كالو راسی د مسلمانانو ډولونه شماری خو تر اوسه ژمو د اصلی او بدلې ربښتينی او دروغجن مسلمان پريكړه ونشوه، ددی سبب دا دي چی تاسو نور د اسلام په تله نه تلی، بلكی هر يوه مو ځانگړی او بيله تله پيدا كړی ده چی پر هغوی ستاسو له خپل ذات پرته نور هيڅوك پوره نه خيژی.

زما دوسته! كيدای شی چی زه د يوه كم علمه سړی په بڼه ستا په څير فكرونه

کړای شم، د خیالونو په وزرونو به ستا سره لوړ الوت ونشم کړای  او د نورو د ایمان تللو لپاره چی تا کوم محك جوړ کړی دی زه ښایی په هغه پوره ونه خیژم خو که ته د خوارزم په کوم میدان کی زما سره په څنګ کی پراس سپور وای او بیا دی له مانه پوښتنه کړی وای چی ته څه وړ مسلمان یی نو ما به ځواب درکړی ؤ چی څو ګامه وړاندی د مؤمن د ایمان معلومولو محك دی، که زه د کفارو د غشیو په باران کی موسکی شم، که د دوی د تورو په سیوری کی کلمه وویلی شم که د مرګ لاس خپلی مری ته نژدی ووینم مګر پښی می ونه لړزیږی، نو وپوهیږه چی مسلمان یم، که می بدن د کفارو د اسونو تر پښو لاندی غوبل شی او د ځنکدن په وخت می هم له شونډو دغه دعا اوریدی شی چی یا الله ! د خپل محبوب د دین جنډۍ اوچته وساته نو وپوهیږه چی زه مسلمان یم.

زما وروره! بده یې مه منه، د مؤمن د ایمان د پیژندلو تله هغه نه ده چی ته یی هره ورځ د بغداد په څلور لارو کی بیانوی. نه! د مؤمن د ایمان معلومولو مقام د جهاد ډګر دی  چی هلته د هر مسلمان د وینو رنګ سور وی که سنی وی او که شیعه، که حنفی وی، که مالکی، که ستا په څیر روښانفکر عالم وی او که زما په څیر کم علمه.

د امن په ځای کی که تر زر کلونو پوری هم مناظره او بحث سره وکړی دا به معلومه نکړای شی چی کوم یو دروغجن یاست او کوم یو رښتین! خو ما په توقند کی پخپلو سترګو ولیدل چی د یوی ډلی مسلمانان د بلی ډلی لپاره سپر وو، د حملی په وخت کی د هغوی ناره یوه وه، د شهادت په مهال یی کلمه یوه وه هغوی ټول یو رنګ مسلمانان وو.

هو د جګړی له ډګر نه بهر می څو رنګه مسلمانان لیدلی دی، په موږ کی داسی څوك هم شته چی وایی له زوررور دښمن سره جهاد روا نه دی، په موږ کی داسی څوك هم شته چی د دښمن د نامه په اوریدو تښتی، داسی څوك هم شته چی د چنګیز خان د رحم جلبولو لپاره اسلامی نړۍ پر تاتاریانو خرڅوی، او دا ستاسو په ښار کی هم چی هر عالم د بل د ایمان معلومولو په خیال کی دی په دنګو محلونو کی اوسیدونکیو داسی ډله هم شته چی پر ترکستان د تاتاریانو د حملی ملاتړ کوی.

زما دوستانو او مشرانو!

ښایی ماته بیا په دومره لویه غونډه کی د خبرو فرصت په لاس رانه شی، زما

خبرې په خلاصو غوږو واوري او زما پیغام هر هغه چا ته ورسوي چې د قوم د راتلونکي اندیښنه ورسره ده.

د تاتاریانو سیلاب معمولي سیلاب نه دي، اوس ددغه سیلاب مخې ته د خوارزم هیواد د ورروستي مورچل او کمر په څیر پروت دی، که دغه کمر له منځه ولاړ داسې مه ګڼې چې دغه سیلاب به نور تم شي، د هغه یاغي څپې به یوه ورځ د بغداد د دنګو مانیو تاداوونه هم ورچوي. که موږ غفلت وکړ نو د دنیا له مخې نه به محوه شو، زه داسې نه وایم چې اسلام به ورك شي، اسلام ورکیدونکی شی نه دی، دا د خدای «ج» دین دی، که یې تاسو ساتنه ونه کړای شوای نو خدای «ج» به کوم بل قوم د ده د ساتنې لپاره غوره کړي، دا داسې بیړۍ ده چې هیڅ توپان یې نشي اړولی، تل تر تله به لامبو وهي، که تاسو د خدای «ج» دغه کېښتی پرېښوده او په نورو کې سپاره شوی نو پخپله به ډوب شي او نور اولسونه به پکې سپاره شي.

ستاسو برې په تولنیزو هڅو او جهاد کې دی او ټولنیز جهاد او هڅو ته تر بل هر وخت زیات اوس ضرورت دی چې د کفر ټول ځواکونه ستاسې د ورکولو لپاره چمتو شوي دي.

ما درته وویل چې د بغداد په دنګو محلونو کې اوسیدونکو څینو خلکو د خوارزم په خلاف له تاتاریانو سره ګډه دسیسه جوړه کړې! یو تن جګ شو ویې ویل:

موږ غواړو د هغوی نومونه واورو!

طاهر ځواب ورکړ:

زه یوازې د دسیسې او خیانت په اړه معلومات لرم، تر اوسه کوم ځانګړې چاته اشاره نشم کولی، اوس پر موږ داسې مهال راتلونکی دی چې غلي منافقین په زغرده زموږ مخې ته راووزي.

د خلافت هغه امیران چې دلته حاضر دي، زه له هغوی نه غواړم چې خلیفه له اصلي حالت نه خبر کړي.

که د تاتاریانو «مغلو» په مقابل کې د خوارزم ملاتړ ونه کړو نو دا به زموږ د ځان وژنې په معنی وي.

د حالاتو غوښتنه دا ده چې د مسلمانانو خلیفه سمدستي د مغلو پرخلاف د جهاد اعلان وکړي، له هغه وروسته به د منافقانو د پلټلو اړتیا نه وي، هغوی به

پخپله رامیدان ته شی، هغوی به هڅه وکړی چی زموږ مری خپه کړی او غږ مو چوپ کړی. دوی به د تاتاریانو په ملاتړ د خوارزم د مسلمانانو پرخلاف فتوی ورکړی.

زما مسئولیت دا ؤ چی تاسو ته لاره دروښیم، نور پری تلل او یا کرار کښیناستل ستاسو خپل کار دی، که تاسو منظم شی نو زما باور دی چی د مسلمانانو خلیفه د راتلونکو خطرونو څخه ناخبره نه دی د جهاد اعلان به کوی.

سمدستی زه دانه شم ویلی چی د بغداد په اوسیدونکو کی څوك دی چی له مغلو سره یی سازش کړی دی، له دی نه مخکی زه د خلیفه او صدر اعظم لخوا د یوه اعلان کولو په انتظار یم، که نه نو په باور سره ویلی شم چی په بغداد کی د اسلامی نړۍ ترټولو لوی دښمن څوك دی.

سمدستی په تاسو کی چی څوك د مغلو پرخلاف د خوارزم د مسلمانانو ملاتړ کوی، هغوی دی ما د ځان ملگری وبولی، که هغوی دا لیدل غواړی چی د اسلام په محك د دوی د ځیری رنگ څه ډول راوزی نو د خوارزم میدان زموږ نه ډیر لری نه دی.

# د سیسه

څو ورځې وروسته د صدر اعظم د محل په یوه پراخه کوټه کې د هیواد پر حالاتو د امیرانو یو مجلس جوړ شو، د طاهر بن یوسف وینا د دوی د بحث موضوع وه.

یوه منصبدار وویل : هغه یو لیونی دی او له دی پرته بله چاره نه لری چی باید ونیول شی او چی خلیفه هم همدغسی امر کړی دی نو باید هیڅ سستی پکی ونه شی.

یوه بل وویل:

هغه نیغ پر چا تورونه نه دی لګولی، خو د بغداد د خلکو په نظر موږ ټول مجرمان یو، ددی باید سمدستی چاره وشی، زموږ لپاره د تعجب خبره دا ده چی د بغداد د هری فرقی خلك پری راټولیږی، په تیرو څلوریښتو کلونو کی ما شیعه او سنی په یوه لاره روان نه وو لیدلی خو اوس می اوریدلی دی چی د هغه د کور په یوه دروازه سنی پهردار ولاړ دی او پر بله شیعه، تیره شپه په مامونیه څلور لاری کی مناظره کیدونکی وه، زه هم هلته ورغلی وم، دی له ټاکلی وخت نه مخکی راغی او خبری یی پیل کړی او دا په تیرو دوو پیړیو کی لومړی ځل ؤ چی یو چا د ټولو فرقو خلکو ته توندی خبری کولی خو اوریدونکی چوپ وو، او کله چی هغه دا پوښتنه وکړه چی تاسو اوس هم یو د بل دښمنان کیدل غواړی نو زیاترو یی په نه ځواب ورکړ او دده له وینا وروسته تر ټولو عجیبه خبره دا وه چی سنی او شیعه یو له بل سره تر غاړی وتل.

ځکه خو موږ که هغه ته لیونی ووایو ځان ته به دوکه ورکړو، که موږ هغه اوس بندی کړ، نو د بغداد خلك به بیا دا حق لری چی ووایی چی موږ ریښتیا هم د کومی دسیسی د رسوا کیدونه په ویره کی یو، زه ویریږم چی هغه به په آرامی زندان ته تګ هم غوره ونه ګنی موږ باید د بیړې پرځای د تدبیر نه کار واخلو.

د بهرنیو چارو نوی وزیر مهلب بن داود چی پخوا د وحید الدین مرستیال ؤ یو

زلمی ؤ، خلکو د هغه پر علمیت اعتراف کاوه، د هغه په اړه دا هم مشهوره وه چې ډیر لری پام کوی صدر اعظم چې د هغه نه رایه وغوښتله هغه وویل:
زما په گومان باید موږ دی د لومړی ویښا نه وروسته نیولی وای، اوس یی زموږ له غفلت نه گټه اوچته کړه د ساده گانو یوه لویه ډله یی ورسره ملگری کړی ده، اوس د هغه نیول خطرناك خامخا دی خو له خطرنه د بغداد د ساتنی په خاطر دا خطر باید قبول کړو.
د ښار ناظم جگ شو ویی ویل:
که د بهرنیو چارو وزیر وایی چې دا غفلت له مانه شوی دی نو زه دا ویل ضروری بولم چې ما په هماغه شپه د ده په کور چاپه ووهله، خو هلته د ده له نوکرانو پرته نور څوك نه وو، راتلونکی شپه جاسوسانو خبر راکړ چې هغه د ښار په یوه جومات کی دی، ما دوه سوه تنه سپاهیان ور واستول خو هلته د ده د ساتنی لپاره دری زره تنه ځوانان تیار ولاړ وو.
د بهرنیو چارو وزیر وویل :
مگر زموږ سره خو د سپاهیانو کمی نه ؤ
صدر اعظم ځواب ورکړ:
زموږ د افسرانو او سپاهیانو زیات شمیر د ده پلویان شوی دی، زما په کور کی چې په دی څو تیرو شپو ورځو کی څومره غونډی شوی ددی ټولونه هغه خبر شوی دی.
یو مابنام موږ ته خبر راغی چې طاهر د ماسختن له لمانځه نه وروسته په جومات کی ویښا کوی ما پنځه سوه تنه سپاهیان په عامه جامه کی هلته ور واستول، هدایت می ورکړ چې له ویښا وروسته یی را ایسار کړی او چې کله له جومات نه راووزی ویی ونیسي خو هغه ته بیا احوال رسیدلی ؤ او جومات ته رانه غی.
اوس د خلیفه امر داسی دی چې هغه باید په هر صورت ونیول شی، موږ ته ددی امر له منلو پرته بله لاره نشته، پنځوسو مفتیانو نن فتوی ورکړی ده چې هغه باغی دی، سبا ته به دغه فتوی مشهوره کړای شی، بیا به د خلکو عکس العمل وگورو او مناسب اقدام به وکړو.
نور امیران ولاړل خو مهلب بن داود لږ څند له صدر اعظم سره خبری کولی، مهلب وپوښتل:
تاته معلومه ده چې په بغداد کی د ده پخوانی دوستان څوك دی؟

صدر اعظم ځواب ورکړ:
قاسم ته ټول معلوم دي.
د مهلب په غوښتنه صدر اعظم یو خدمتګار ته وویل چې قاسم راولي، د قاسم په راتلو صدر اعظم جګ شو او بلې کوټې ته ولاړ قاسم او مهلب تر ډیره پورې خبرې سره کولې.
قاسم ویل:
زما په ګومان د ده په دوستانو کې یوازې افضل داسې دی چې موږ کار ترې اخستی شو، د هغه له طاهر سره علاقه شته خو د عبدالملك، عبدالعزیز او مبارك په څیر یې دنده نه ده پریښې.
مهلب وپوښتل : که هغه سبا شپې ته دلته میلمه کړې نو رابه شي؟
: هغه څو شپې وړاندې له ما سره ولیدل، او زه ویلای شم چې زموږ اړیکې ډیرې بدې نه دي، یوه ورځ هغه د خپلو تیرو ګستاخیو بخښنه هم وغوښته او ترڅو چې هغه د حکومت مامور وي موږ ډیر شنه باغونه ورښودلای شو.
که یې ته مناسب بولې نو دلته به یې د راوستلو ذمه واري د لښکر نوی مشر ته وسپارو.
مهلب جګ شو قاسم ته یې لاس ورکړ ورې ویل:
ډیره ښه ده! سبا ته ستا کره زه، د لښکر مشر او افضل میلمانه یو.
صفیه نن هم د پخوا په شان د برنډې په بام ولاړه وه او د کوټې د کړکۍ سره یې غوږ نیولی ؤ ډیر څه یې اوریدلي وو، کله چې قاسم او مهلب بهر ووتل نو دا راکوزه شوه خپلې کوټې ته ولاړه، ترڅنګ بلې کوټې ته یې وروکتل سکینه ویده وه، صفیې به د ویده کیدونه دمخه د ورځې د پیښو په اړه یو لنډ یادښت ولیکه سهار به یې د دروازې پهرې دار ته وسپاره، دې د پخوا په څیر کاغذ او قلم راواخست کښیناسته خو د څو کرښو له لیکلو وروسته یې په زړه کې یو نوی خیال راوګرځید او دغه خیال ددې د زړه په چوپو تارونو د مضراب کار وکړ، بیا ورو څو خوږې نغمې پورته شوې او دې داسې احساس کړه چې دغه نغمې یوه زړه وړونکې ترانه شوه چې ټول کاینات یې را لاندې او په غیږ کې ونیول، دا یو توپان ؤ چې دایې ورسره په هوا کړې وه، یو سیلاب و چې دایې ورسره په څپو کې په اوړو کړې وه، د وریځو شنهار او د تو ند شمال کریږې ویروونکې وې، خو له دې توپان سره په الوتلو دا نه ویریدله، د سیلاب څپې حوصله ماتوونکې وې، خو دې

ورسره بهیدل غوښتل، د ویری زنځیرونه مات شول، د زندان دروازی وشړیدلی، د بغداد دنگی مانی ددی له نظره پناه کیدلی، دا د طاهر سره د عربو د دښتی د خرما ژ په یوه بن کی وه، د احساساتو له زوره ددی له ریږدیدونکو لاسو قلم پریوت، او داسی یی احساس کړه چی د ژوندانه د سندری تار ناڅاپه وشلیده، پراخه کوټه د کپس په څیر ورته تنګه شوه، لویدلی قلم یی بیا راواخست د لیکلو پرځای یی پر کاغذ کوږی وږی کرښی کش کړی، او بیا یی څه په خیال کی وروګرځیدل او په تشو ځایونو کی یی طاهر بن یوسف ولیکل بیا یی کاغذ وشلاوه او ویی وغورځاوه جګه شوه بستری ته ولاړه پری وغځیده هغی په وار وار ځان ته تسلی ورکوله:

زه به له هغه سره وګورم، ویه یی پوهوم چی نور دی په بغداد کی اوسیدل خطرناك دی، د هغه لن به ونیسم ورته ویه وایم چی له دی کپس نه می خلاصه کړه، زما دلته هیڅوك نشته، هغه ښایی دا خوښه نه کړی خو زه به یی د بغداد پر پریښودو او خپل کورته په ستنیدو راضی کړم بیا به کاکا ته ووایم... نه نه د سکینی په خوله به ورته ووایم او هغه به یی ومنی که یی ونه منی نو زه یی بیا هیڅ پروا نه لرم، د بغداد کومه قافله به می هلته ور ورسوی، خو په دی حالت کی خوبه هغه مارتی نه؟

نه، نه، هغه داسی نه دی، هغه زما دی، هغه زمادی طاهر سارایی، زما سارایی:

هغه ویده شوه خو په خوب کی یی هم پر شونډو یوه موسکا نڅیدله.

* * * * *

(۲)

راتلونکی شپه د قاسم پر دسترخوان نوی د پوځ سالار، مهلب او افضل راغونډوو، د ډوډی له خوړلو وروسته د سیند په غاړه د قاسم کوټی ته ولاړل.

د ډوډی خوړلو په کوټه کی صفیی له کړکۍ نه د طاهر په باره کی څه وانه وریدل، کله چی هغوی بلی کوټی ته د تلو لپاره پاڅیدل نو دی له هغوی نه دمخه د تنګو زینو له لاری هماغی دریڅی ته ځان ورساوه، هلته کښیناسته تر لږ ځنډه له یوی او بلی خوا سره ګړیدل، بالاخره مهلب د پوځ سالار ته وویل:

د صدر اعظم نظر داسی دی چی افضل ته په پوځ کی یو لوی منصب وروسپارل شی، پرون قاسم زما د وراندی د هغه صفت وکړ، په پوځ کی د لایقو او وفادارو

ځوانانو اړتیا ده، د صدر اعظم له عبدالملك او عبدالعزیز نه ډیره تمه وه خو ما اوریدلی چی هغوی استعفا کړی او د طاهر بن یوسف ملاتړ کوی.

د پوځ سالار وویل:

که صدر اعظم غواړی زه د هغه خدمت ته چمتو یم.

مهلب وویل:

له دی نه علاوه په مصر کی موږ ته د نوی سفیر ضرورت دی، که د عبدالملك وفاداری شکمنه نه وای نو زما په نظر ددی منصب لپاره هغه ډیر مناسب ؤ خو افسوس چی طاهر بن یوسف ډیر ښه او ساده ځوانان بی لاری کړل، که څنگه قاسمه ته څه وایی که زه خلیفه ته سپارښتنه وکړم افضل ذمه واری قبلولو ته تیار دی؟

قاسم ځواب ورکړ:

زه د ده په استعدادونو اعتراف کوم خو ویریږم چی د عبدالملك او عبدالعزیز سره د دوستی په سبب به د بغداد پریښودلو ته تیار نه شی.

د افضل حالت هغه ماشوم ته ورته ؤ چی څوك یی په مخکی ډیر د لوبو سامان انبار کړی ، هغه د صدر اعظم په ماڼۍ کی د پوځ د سالار او د بهرنیو چارو له وزیر سره یوځای ډوډۍ خوړلی وه، په بغدادکی ده ته د لښکر د سالار د ښی لاس منصب او په مصر کی د سفیر کیدو دروازی په مخکی خلاصی شوی وی، هغه ته په ژوند کی د لومړی ځل لپاره د خپل ځان اهمیت معلوم شو، په شرمیدلی لهجه یی وویل:

که زه د بغداد لپاره کوم خدمت ترسره کولی شم د چا دوستی می په مخکی خنډ کیدای نه شی.

مهلب سمدستی ځواب ورکړ : ته د بغداد لپاره ډیر څه کولی شی د خپلو دوستانو لپاره هم ډیر څه کولی شی، که ته عبدالملك او عبدالعزیز له دردناکی تباهی نه ژغورل غواړی نو یوازی یوه لاره لری.

: کومه لاره؟

: هغوی وپوهوه!

: افضل ځواب ورکړ؟

زما ژبه د طاهر جادو نشی ماتولی!.

د طاهر په باب اوس موږ ته څرگنده شوه چی هغه د خوارزم په اشاره دلته په

بغداد کی بغاوت جوړول غواړی، په کومه ورځ چی د ده مقصد پوره شی په همغه ورځ به خوارزم ته ځی، خو د ده د کړو وړو سزا به د ده ملګری وګالی.

افضل پوهیده چی دا د طاهر پرخلاف یو دروغ تور دی خو چی کله د انسان په زړه کی بدی هیلی راپورته شی نو د خپل ضمیر د تسلی لپاره په دروغو خبرو هم باور کوی، ده وویل:

که دا خبره وی نو تاسو څه فکر کړی دی؟

مهلب وویل :

موږ د هغه نیول ضروری بولو، خو موږ نه غواړو چی له پوځ سره هغه خلك ټکر شی چی په دروغو خبرو هغه پر خپل ځان راټول کړی دی.

موږ دا هم نه غواړو چی د یوه مجرم د نیولو پر سر د ګو بی ګناه خلکو وینی تویی شی، موږ له طاهر سره هم سختی کول نه غواړو، غواړو چی هغه پوه کړو او له دی ځایه یی وباسو، د ده په تلو به دغه فتنه پخپله غلی شی.

د افضل زړه ګواهی ورکوله چی دا دروغ دی، دغه خلك د هغه د وینو تږی دی، خو د ده د ضمیر لپاره دا یوه بله تسلی وه، هغه وویل:

که تاسو ماته ډاډ راکړی چی سختی به نه پری کوی نو زه ستاسو سره مرستی ته چمتو یم.

مهلب وویل :

پر هغه د تکلیف راوستو سوال نه پیدا کیږی، زما خو پر دی هم باور دی چی د هغه نیت سهی دی، د خلیفه او یا کوم بل مسئول سړی په اړه له ده سره د بدګومانی د راپیدا کیدو په سبب که د خلکو د پارولو پرځای نیغ موږ ته راغلی وای موږ به یی بدګومانی لری کړی وای، خو اوس چی هغه ترڅو نیول شوی نه وی موږ خبره نه شو ورسره کولی، دا زما لپاره ډیره د خفګان وړ خبره ده چی داسی یو هوښیار او زړور ځوان د اولس د خدمت پرځای په اولس کی ګډوډی راولی هغه هم د یوی بدګومانی په سبب.

ما له هغه سره دلیدو او د خبرو اترو هڅه وکړه، خو د هغه پټو مجلسونو ته ونه رسیدای شوم، که ته زموږ مرسته وکړی دا به ډیر لوی کار وی.

د لښکر سالار وویل : که افضل په دی هکله څه کولی شی نو خامخا به درسره مرسته وکړی.

قاسم وویل : کوم سړی چی د مسلمانانو ژوند د سمون په خاطر له خپل سره د

تیریدو همت لری هغه به د چا د دوستی پروا ونهٔ کړی.
د افضل پر ضمیر اوس د ملامتی بار سپك شوی ؤ، هغه وویل:
خبره دا ده چی څرنګه چی ما تر اوسه له پوځه استعفی نه ده کړی هغوی پر ما زیات اعتماد نه کوی، د طاهر څو مرکزونه ماته معلوم دی، خو دا ماته معلومه نه ده چی نن به هغه چیرته وی؟
هغه یوازی د شپی د خوب په وخت کی نیول کیدای شی، د ورځی لخوا د هغه په شاوخوا کی ډیر خلك وی، زه به تر یو دوو شپو پوری د هغه د ځای درك درکړم چی په دی ورځو کی چیرته شپه تیروی.
مهلب وویل : که ته په دی ماموریت کی بریالی شوی باوری یم چی خلیفه او صدر اعظم به پخپله مننه درنه وکړی، او امکان لری چی تا د ډیر مهم منصب لپاره مناسب وبولی.
افضل وویل:
مګر تاسو به دا وعده په یاد لری چی له طاهر سره به بد سلوك نه کیږی.
مهلب ځواب ورکړ : زه په دی وعدی ولاړ یم.
بیا هغه پاڅید قاسم ته یی وویل : اوس صدر اعظم ته ددی خبرو په باب څه مه وایه.
قاسم ځواب ورکړ : نه! زه پخپله غواړم چی ترڅو موږ په خپل هدف کی بریالی شوی نه یو د منږو رامنږو په باب مو باید څوك خبر نه شی.

*****

(۳)

قاسم د خپلو میلمنو د رخصتولو لپاره تر بهر دروازی پوری ورسره راووت، دروازی ته چی راورسیدل مهلب وویل : پرون صدر اعظم وویل چی ستاسو محل هم د هغه له جاسوسانو نه پټ نه دی، که نن هم چا زموږ خبری اوریدلی وی نو...!
قاسم په خندا ځواب ورکړ:
د هغی کوټی په چت کی یوازی د کوترو یوه جوړه ځاله لری چی غوږونه لری خو ژبه نهٔ.
خو چی بیرته راوګرځید قاسم په دی خبره لږ اندیښمن شو فکر یی وکړ چی طاهر د دوی له دی مجلس نه خبر شی نو راتلونکی وینا به یی زیاته تونده وی.
په لاره کی یی د ګلانو له پتیو نه څو ګلان راوشکول او چی د خپلی کوټی ور

ته ورسید لږ ودرید او په چرتونو کی شو او بیا یی وموسکل د صفیی د کوټی په لور ورغی په زړه کی یی په وار وار ویل:

خدای پوهیږی چی هغه له مانه ولی داسی ترهیدلی ده؟

که هغه ویده وای نو طاهر به خپ خپ ورغلی وای او په بستره به یی ګلان ورته ایښودل، بیرته به تری تللی ږ خو د هغه د کوټی له نیم کښ وره نه رڼا راوتله دی چی ورنژدی شو ودرید په څه فکرونو کی ډوب شو او بیا بیرته راوګرځید خو دوه دری ګامه چی ولاړ له کوټی‌ڼه‌یی .د چا د ورو ورو غږیدو غږ واورید، سکینی او صفیی به د ویده کیدو په وخت کی یو بل ته کیسی اوروولی، خو دغه غږ لږ درونډ ږ، بیا هغه د صفیی غږ واوریده چی ورو ورو غږیده دی بیرته زر راوګرځید او دوره ترشا ودرید، دننه نه یی واوریدل:

ګوره دا د خبرو وخت نه دی، ته په بیړه ولاړه‌شه، بیا به تاته په وار وار زحمت نه درکوم، واخله دا زما ګوته، تاته به نور هم ډیر څه درکړم.

قاسم زر شاته شو او د یوی ستنی ترشا ودرید، ور خلاص شو او یوه نوکره ګرندۍ راووتله د قاسم سره نژدی تیره شوه.

قاسم په چوپو ګامونو له هغه ځایه په شا ولاړ او د یوی بلی لاري نه د ماڼۍ‌د دروازی زینو ته ورسید، نوکری چی هغه ولید هکه پکه ودریده.

قاسم تری وپوښتل : ته په دی ناوخته چیرته ځی؟

نوکره وویریده په ویره یی وویل : صیب ... زه!

قاسم ډاډ ورکړ ویی ویل : زه خو دیو نه یم ته ولی ویریږی؟

بیا یی ورته وویل : دلته راشه!

قاسم هغه تر مټ ونیوله او خپلی کوټی ته یی بوتله.

: ووایه چیرته روانه وی؟

نوکری څه کړی وړی پلمی جوړی کړی خو قاسم یو ځلیدونکی خنجر راویوست او ور ویی ښود هغی چیغی کړی:

ټول درته وایم ، ماته صفیی لیك راکړی دی.

: چیرته د چا لپاره؟

: د دروازی یوه پهره دار ته !

: څه ملندی وهی قاسم بیا د خنجر څوکه د هغی پر ټټر ورکښیښود.

: نه، نه زه ریښتیا وایم، ماته معلومه نه ده چی پهره دار هغه لیك چیرته وړی.

: لیك كوم دی؟

نوکری له خپل لستونی نه یو وریښمین دسمال راویوست په هغی کی یې نغښتی کاغذ راویوست د قاسم په لاس کی یی ورکړ قاسم پانه ولوسته لنډ شانته لیك داسی ؤ:

ستا په اړه یوه خطرناکه پریکړه شویده، افضل ستا د نیولو وعده کړی ده، ډیری خبری داسی دی چی زه یی په خپله درته ویل ضروری بولم، قاصد به هغه ځای دروښیی چی هلته ته د څه خطر سره له مخامخ کیدو پرته له ما سره لیدلی شی، د خدای «ج» لپاره خامخا راشه!.

د غوسی نه د قاسم شونډی رپیدی، نوکری د هغه د بی رحمه کتو تاب رانه وړای شو او په ژړا شوه.

قاسم وغوړید ویی ویل : چوپه!

: زه بی گناه یم پر ما رحم وکړه، زه یوه نوکره یم، ما د صفیی د امر له منلو نه انکار کله کولی شوای ما وبخښه!

: ستا د خلاصون همدا یوه لاره شته چی له مانه خبره مه پټوه.

: زه هر څه ویلو ته تیاره یم.

: صفیی د ملاقات لپاره کوم ځای ښودلی دی او هغه پهره دار کوم دی چی ته لیك وروړی؟

: هغه سعید دی او ماته صفیی وویل چی سعید دې هغه جنوبی دروازی ته راولی.

: له دی نه وړاندی یی کله سره لیدلی دی؟

: نه!

: پیغام یی ورته رسولی؟

: هوکی!

: ته خبره یی چی دا پیغام چاته ور وړی؟

: نه، پردی یوازی سعید او د جنوبی دروازی پهره دار خبر دی، صفیی ماته یوازی دومره ویلی چی زه یوازی د یوه بی گناه د ژوند ژغورل غواړم.

: ډیر ښه ته ولاړه شه دا لیك سعید ته ورووړه، خو که دی دا ورته وویل چی ما لیدلی دی نو لاس او پښی به دی وتړم او د دجلی سیند ته به دې وغورځوم، چی بیرته راغلی صفیی ته به هم دا خبره نه کوی، خو که هغی وویل چی تا څنډ ولی

وکړ څه ځواب به ورکوي؟

نوکري له لږ فکر وروسته وویل : ما تر اوسه لمونځ نه دی کړی زه به ورته ووایم چې د لمانځه لپاره ودرېدم.

: ته ډېره هوښیاره یې، واخله، تاته به نور هم ډېر څه درکړم، او بیا قاسم ځو طلایي سکې هم د هغې په لاس کې ورکښېښودې.

*****

(٤)

سعید د بغداد د یوې ګڼ میشته ګوښې په یوه تنګه کوڅه کې تیریده بیا یې د یوه زاړه کور دروازه وشرنګوله، یو سړي راووت سعید یې وپیژاند هغه یې یوې بلې تنګې کوڅې ته بوتلو، هغه په لاره کې تري وپوښتل : کوم ضروري پیغام دی راوړی؟

: ډېر ضروري!

لږ ځنډ وروسته دواړه د یوه دري پوړه کور په دروازه کې ودرېدل، د سعید ملګري پنځه ځلې له لږ ځنډ ووسته دروازه وټکوله، چا د دروازې په منځ کې له یوې وړوکې کړکۍ نه راوکتل، او د سعید ملګری یې وپیژاند دروازه یې خلاصه کړه.

د سعید ملګري وویل : دی دننه بوزه؟

سعید چې دننه ولاړ پهره دار دروازه بیرته بنده کړه، لږ ځنډ وروسته چې طاهر، عبدالملك او عبدالعزیز د صفیي لیك ولوست له سعید نه یې ډول ډول پوښتنې کولې، سعید دا خبره تائید کړه چې افضل دننه ماڼۍ ته تللی ؤ، هغه دا هم وویل چې مهلب او د پوځ سالار یې هم دی ماڼۍ ته په تلو راتلو کې لیدلی دی. خو پر دی نه پوهیده چې صفیي طاهر د څه لپاره وربللی دی.

دری واړو دوستانو لږ ساعت پردې بحث وکړ، د عبدالعزیز رایه دا وه چې د پوځ سالار، د بهرنیو چارو وزیر او صدر اعظم له افضل نه زموږ اوسیدو ځایونه معلوم کړي دي او دوی به خامخا کومه خطرناکه پریکړه کړې وي، او صفیه د یوې ښځې په څیر ستا تر هدف ستا د سر خیر غواړي او ورته قیمتي ښکاري، هغه به په غالب ګومان درته وایي چې ته له څلورو خواوو تر خطر لاندې یې محکه خو د خپل ځان د ژغورنې په فکر کې شه.

عبدالملك وویل:

زما د معلوماتو له مخی زه پر دی احتجاج کوم چی تاسو صفیه یوه عادی نجلۍ گنی، که د هغی خپل ښځینه احساسات څرگندول هدف وای په دی لیک کی یی په څو کرښو کی کولی شوای.

عبدالعزیز وویل : مگر ددی د لیک له لندون نه داسی ښکاری چی دی د لیک لیکلو فرصت نه دی موندلی.

عبدالملك وویل : یعنی څه مجبوری به یی په مخ کی وی؟ ددغی مجبوری په سبب یی طاهر ورغوښتی، اوس که طاهر ورنه شی نو هغه به څه گومان کوی؟

طاهر اوچت شو توره یی سنبال کړه ویی ویل : هغی ماته د خدای «ج» نوم شفیع کړی دی زه به خامخا ورځم، هغی یو ځل زما ژوند ژغورلی، که زما پر سر د هغی دا احسان نه وای هم ما به د قوم د یوی لور غږ ته لبیك وایه.

عبدالعزیز وویل : نو زه درسره ولاړشم.

طاهر قاطع وویل : نه! موږ باید پر هغی اعتماد وکړو، که څه خطر وای هغی به زه یوازی نه ورغوښتم.

*****

(۵)

د صدر اعظم د محل د جنوبی دروازی نه چی طاهر ورننوت د سپوږمۍ په رڼا کی یی صفیه ولیده، هغه د یوی گنی ونی لاندی ودریده، طاهر هغی ته ورنژدی شو ویی ویل:

: ووایه!

: زه افسوس کوم چی یو ملگری دی غدار شو.

طاهر وویل : دا خبره دی په لیك کی کړی، زه هغه ضروری خبره پوښتم چی تایی په لیك کی یادونه کړی.

صفیی چی د الفاظو کومی ذخیری جوړی کړی وی د وچو پاڼو د هغه انبار په څیر چی برېوکۍ یی تیت پرك کړی داسی تری تیت او ورك شول، دی پخپله په زړه کی پوښتل چی : ما دی د څه لپاره راوغوښت؟

هغی بیا پر خپلو حواسو د راقابو کیدو هڅه وکړه ویی ویل : زما یوه غوښتنه ده.

: ماته ستا هره غوښتنه د امر په معنی ده.

: حکومت ستا د نیولو په تکل دی، که یی په څو ورځو کی په آرامه ونه

نیولی نو گومان کوم چی د زور له کارولو څخه به دریغ ونه کړی.

طاهر په داډ وویل : ماته معلومه ده.

: نو د خدای «ج» په خاطر له دی ځایه ولاړ شه، تاته هر وخت خطر دی.

: زه له خطرونه نه ویریږم، خو ستا له مشوری نه د مخه ما له دی ځایه د تلو اراده کړی وه.

: کله به ځی؟

: دیر زر!

: نو ما هم درسره بوزه!

طاهر تکان وخوړ یو گام شاته شو، خو صفیه ور وړاندی شوه تر لمن یی ونیوه ویی ویل:

دا مانۍ ماته یو زندان دی، په دنیا کی زما هیڅوک نشته، زه له دی ژونده په تنگ شوی یم، زه په مدینه کی په کومه څېره کی ژوند غوره گنم، زما له بغداده کرکه ده، زما له دی محلونو نه کرکه ده چی د انسان په جامه کی ماران پکی اوسیږی.

: تاته نهایی دا معلومه نه وی چی زما هدف مدینه نه خوارزم دی.

: زه هلته هم تلو ته تیاره یم.

: مگر د هغه ځای حالات تاته معلوم نه دی، هلته له پخوانه په زرگونو د قوم داسی لونی شته چی ساتونکی نه لری.

زه پر هغوی یوه بله نه ور زیاتوم.

نو زه به ستا تر بیرته راتلو پوری انتظار وکړم، ته وعده وکړه چی ما به نه هیروی.

د طاهر ثریا ور په یاد شوه په غمجنه لهجه یی وویل:

زما نه اشتباه وشوه، زما گومان ؤ چی ته زما له ارمانونو سره خواخوږی لری.

صفیه یو گام شاته شوه ودریده، بیایی په دردناکه لهجه وویل : ورځه! ما داسی گڼله چی ستا په زړه کی له انسانیت سره همدردی ده، خو ته پر ځان مین یی، ستا یوازی له خپل ذات سره محبت دی.

طاهر وویل : کاشکی تاته معلومه وای چی زه په ازغیو کی د مزله لپاره پیدا شوی یم، زه تا له ځانه سره نه شم کشولی، تا چی له ماسره کوم احسان کړی نهایی زه یی بدل درونه گرځولی شم، زما ورمیږ به تل پری تیټ وی، زه ځان

غوښتونکی نه یم خو د یوه سپاهی په ژوند کی داسی پراوونه راځی چی هغه د ژوند ډیری غوره هیلی قربانوی، هغه د چا د خولو په بدل کی د وینو توئیدلو ته چمتو کیږی خو د هغه ذمه واری هغه پردی مجبوروی چی د چا د اوښکو پروا هم ونه کړی او د جګړی ډګر ته روانیږی، ته په یوه شانداره مانۍ کی اوسی هم نفس دی تنګیږی. خو په ترکستان کی ستا په زرګونو داسی خویندی دی چی تر دی پراخ اسمان لاندی د سر پټولو ځای نشی موندلی، اوس زما د زیاتی پاملرنی حقداری هغوی دی.

د اسلام بدنصیبه لونی د عراق، مصر او عربو د نورو آرامو ښارونو اوسیدونکو خویندو ته فریادونه کوی چی که ستاسو میړونه، وروڼه او دوستان زموږ مرستی ته را رسیدای شی نو د خدای «ج» لپاره یی لاره مه ترړی!

صفیی خپلی اوښکی پاکی کړی ویی ویل : ما وبخښه، ورځه خدای «ج» دی مرستندوی شه، ما پر تا غلط ګومان وکړ، زه یوه ښځه یم... ولاړ شه...!

دا تر دروازی ورسره ملګری وه، د سعید په اشاره پهره دار دروازه خلاصه کړه، طاهر یو ځل مخ ور واړاوه شاته یی ور وکتل، د هغی څیره تازه او پر شونډو یی موسکا وه، په اوښکو لمبیدلی، ښایسته او سپیڅلی موسکا چی په یوه وخت اروا پاله هم وه او حوصله ماتوونکی هم.

: ته خو به له مانه خفه شوی نه وی؟ طاهر زړه نا زړه وپوښتل:

: هغی په خواږه آواز وویل : نه! ته خو به ما هیروی نه!

طاهر ځواب ورکړ : هیڅکله نه!

طاهر ګړندی له دروازی ووت او صفیه په دروازه کی ودریده، هغه یی څاره، هغه له زینو څخه ښکته کیده چی ناڅاپه له ښی او کینی لوری دوی ډلی سپاهیان راښکاره شول، طاهر پخوا له دی چی توره وباسی د پنځلس شل تنو په منځ کی ایسار شوی ؤ.

صفیی په زوره وویل : سعیده وتښته.

سعید او دوه تنه پهره داران د مانۍ د یوه کونج په لوری په منډه ولاړل صفیه له دروازی راووتله خو قاسم په زینو کی ور وخوت او د هغی مټ یی ونیو ویی ویل : صفیی! تا نن ډیر لوی کار وکړ، ورځه اوس آرام وکړه، او هغه د ده په اوسپنیزو متو کی بی وسه وه ورسره روانه شوه، څو ګامه چی ولاړ ودرید سپاهیانو ته یی وویل : سعید لکه چی وتښتید هغه هم راونیسی.

د کور دننه قاسم صفیه خپلې کوټې ته ور تیله کړه او له بهر نه یې دروازه پسې زنځیر کړه.

چې بیرته راغی قاسم د مهلب په ډیر تینګار طاهر هغه ته وسپاره پهره دارانو د محل ټول ځایونه ولټول خو سعید او دوه تنه پهره داران یې ونه موندل، بالاخره یوه سپاهی خبر ورکړ چې د ځانۍ یوه کښتی ورکه ده، تر اوسه به دوی بلې غاړې ته رسیدلی وی.

د نیمی شپې نه وروسته چې کله مهلب طاهر د زندان ساتونکی ته سپاره سعید او د هغه ملګرو عبدالملك او عبدالعزیز ته خپله کیسه اوروله.

*****

(٦)

طاهر بن یوسف د دجلې د سیند په غاړه د لوی زندان په یوه تل خونه «زیر زمینی» کې قلف ؤ، سهار شوی ؤ خو په زندان کې لا تیاره وه، دوه تنه پهره دار راغلل چې دی یې ویده ولیده دوی یې ورته کښیښوده او ترې ولاړل، یو دوه ځله یې سترګی وغړیدلی خو چې تیاره به وه بیرته به په لټ واوښت او ویده به شو. بالاخره یې داسی احساس کړه چې څوك یې خوځوی او له خوبه یې پاڅوی.

هغه په اړخ واوست وبی ویل : څوك یی؟

: کرار غږیږه!

: طاهر وویریده ، ترګی یې وغړولی او په تیاره کې یې په ځیر له کتلو وروسته یوّ بل څوك ولیدل چې نږدی ورته ولاړ ؤ جګ شو او کښیناست.

نا آشنا سړی ورته وویل : له کومې ورځی چې دا زندان جوړ شوی دی بنایی دومره د اوږده خوب خاوند نه وی ورته راغلی، اوس خو ماسپښین کیدونکی دی.

طاهر وویل : زه له ډیرو شپو راسی داډمن نه یم ویده شوی.

: نو داډه اوسه نور عمر به دلته په مزو ویده یی.

: ته څوك یی؟

: زه یو وخت یو څوك وم، اوس یو بندی یم.

: د شپې یی چې زه دلته راوستم زما په ګومان دلته څوك نه وو، بنایی ته یی همدا اوس دلته راوستلی یی؟

: نه زه له څو میاشتو را په دیخوا شاهی میلمه یم، زما او ستاد کوټی په منځ کی د یوه دیوال پرده ده، داسی ښکاری چې دغه د ځمکی د تل کوټی لومړی

ډېرې پراخې وې خو وروسته چې د بندیانو شمېر زیات شو دیوالونه یې پکې پورته کړل او په دوو برخو یې ووېشلې.

: نو ته په کومه لاره دلته راغلی؟

نا آشنا ځواب ورکړ : راشه زه یې دروښیم. په پیل کې دلته لیدل گران وې، ته زما مټ ونیسه، وېرېږې مه، څو شپې وروسته به زما په څېر ته هم په تیارو کې په لیدو بلد شې، طاهر له نا آشنا سره له یوه تنگ محراب نه د تیرېدو په وخت ووېل : دا خو ډېره پراخه لاره ده.

هغه ځواب ورکړ : نه تر اوسه تا د خپلې خونې اندازه نه ده اټکل کړې.

دا دروازه هغه په دوو برخو وېشي، زما کوټه هم دغسې ده، څو گامه چې نور ولاړل نا آشنا سړي تېټ شو ځمکې لورې ته یې اشاره وکړه ویې ویل : وگوره! دا سورې زما کوټې ته ورغلې دی، له دې لارې تیرېدل بلدېدل غواړي، ته ښایي تیر نه شې لږ چاغ هم یې خود یې زر به ما غوندې ډنگر شې، زه چې لومړی دلته راغلم ډېر چاغ وم، تر یوې میاشتې پورې دلته د لنده بل له امله په سړې تبه راځې او اشتها سوځې.

: دا لاره تا څنگه وموندله؟

: کله یې چې زه دلته راوړم یو سړی په دې کوټه کې ؤ چې سر به یې له دیوال سره جنگاوه، تر دوو درې ورځو پورې مې څه پروا ونه کړه خو بیا مې یوه ورځ د ده په ځواب کې دیوال ور ودباوه، چې بیا لږ څند وروسته زما په کوټه کې دیوال ته نږدې چا له ځمکې سر راویوست او ویې ویل :

السلام علیکم !

زه دومره ووېرېدم چې که د تیښتې لاره وای نو تښتېدلی به وم، هغه راته ووېل : مه وېرېږه زه ستا گاونډی یم، له لږ ځنډ وروسته مې وپېژاند، هغه قاضي ابو داود ؤ چې په یوه دوسیه کې یې د پخوانی صدر اعظم د خوښې سره سم له پرېکړې کولو نه انکار کړی ؤ، دا لاره هغه زما د راتگ نه ډېر پخوا جوړه کړې وه، هغه ماته ووېل چې د بې کارۍ نه په تنگ شوم بیا مې د غولې دوې تختې لرې کړې ځمنجه ځمکه مې د یوه مات لوښي په کودي وکیندله، هغه ویل چې په څو ورځو کې مې دغه سورې جوړ کړ خو چې په دې کوټه کې مې څوک ونه موندل ډېر خفه شوم، په همغه لومړی ملاقات هغه زه پر ځان مین کړم خو دوه نیمې میاشتې پس هغه وفات شو.

پهره دار دلته سهار او ماښام دوه ځله راځي، له هغه وروسته به تول ورځ او توله شپه دواړه سره لیدای شو. یوازې د جمعې په ورځ هغوی د جاروکولو لپاره راځي، په هغه ورځ به دغه تختي پردې سوري ور ایږدي او غوره دا ده چې خپله جامه هم دلته وغوړوی. ته به هم خامخا زما په څیر په اوږده بند محکوم وی. ماته معلومه ده چې د جیل دی کوټو ته هغه څوك رالیږي چې بې ګناه دي، خو ته زلمی یې زه حیران یم چې حکومت ولی دومره مهم بللی یې؟ ما ښایي چیرته لیدلی یې! راځه هغه بل لوری ته ولاړ شو هلته تیاره لږ کمه ده.

طاهر له نا آشنا سره بیا کښیناست، هغه ورته وویل: ډوډی وخوره.

طاهر ځواب ورکړ : زما اشتها نشته.

هغه وویل : دا رښتیا ده چې دلته هر بندی لومړی ورځ ډوډی نه خوري، ما هم درې ورځې ونه خوړه خو بیا ورو ورو سړی عادت کیږي.

ښه ته اوس دا ووایه چې ته تردې ځایه څه ور راورسیدلی، زه ستا نور څه درد نشم دوا کولی خو یو بل ته به خپل خپل داستان واوروو او خپل غمونه به سره سپك کړو.

زما ګومان دی چې ته خامخا ما چیرته لیدلی یې، دلته چې سړی راشي حافظه یې ډیره خرابیږي.

: زما نوم طاهر بن یوسف دی.

: طاهر بن یوسف! ما دا نوم هم اوریدلی دی، ته په پوځ کې وی؟

: نه!

: نو په کومه اداره کې وی؟

: په یوه کې هم نه، زه بغداد ته د یوه لوی ارمان لپاره راغلی وم.

: نو بیا سهی ده دغهٔ زندان د هماغو خلکو نصیب دی چې بغداد ته د لویو ارمانونو لپاره راځي، د خلیفه او نورو امیرانو د غضب ور هماغه څوك وی چې خدای «ج» تری خوښ وی، ښه ده اوس ماته خپله کیسه واوروه!

طاهر بغداد ته د راتلو او له قاسم سره د توری وهلو له مسابقی نه خپله کیسه پیل کړه.

نا آشنا یې خبره ورغوڅه کړه ویې ویل : رایاد شول ته همغه ځوان یې، ما هغه ورځ هم دعا کوله چې خدای «ج» دی له بد نظره ساته، ښه وراندی څه وشول؟

طاهر د خوارزم له سفیر سره د خپل ملاقات یادونه وکړه چې هغه تکان وخوړ

ویی ویل : ماته وگوره، زه وحید الدین یم.
: ته ! طاهر ناڅاپه وپوښتل!
: هوا هغه بدنصیبه زه یم، زما له دی ځایه د خلاصیدو امید نشته، او زه که ځان درته بی گناه ثابت کړم کومه گټه نشم کولی، خو اوس دواړه ملگری یو ځکه زه ستا د تسلی او داد لپاره خدای پاك حاضر گڼم او سوگند کوم چی ما چنگیز خان ته څوك نه دی لیږلی.
طاهر وویل : زما پر تا باور دی، که هغوی پر تا څه جرم ثابتولی شوای نو په برالا محکمه کی به یی محاکمه کړی وای، زه یوازی دا پوښتنه کوم چی ته یی څه وخت او څه ډول دی بندیخانی ته راواستولی؟
لومړی دی ته خپله کیسه تمامه کړه، وروسته به زه ستا د ټولو پوښتنو ځواب درکړم، طاهر تر پایه خپله کیسه وکړه. وحید الدین تر لږ ځنډه په ژورو فکرونو کی ډوب هغه ته کتل، بالاخره یی وویل:
اوس زه ستا پوښتنو ته ځواب درکوم، ستا د کیسی له اوریدو وروسته زما دا شك په یقین بدل شو چی زه د مهلب بن داود په دسیسی کی راښکیل شوی یم. دغه سړی په بغداد کی د چنگیز د سفیر ملازم ؤ، د شهزاده مستنصر په سفارش ما په خپل دفتر کی راسره ونیو د ده د علم په اړه باید ووایم چی زه یی اوس هم ستایم، د خپل عمر په تناسب هغه ډیر هوښیار دی، د شهزاده مستنصر په واسطه یی تر خلیفه پوری اړیکی ورسیدی، او ما داسی احساسوله چی زه هسی تش په نامه د بهرنیو چارو وزیر یم، د سپینو او تورو ټول اختیار له هغه سره ؤ، که زما ورځ نه وای گرځیدلی نو مخکی می باید استعفی کړی وای، خو زما په برخه دغه ذلت ؤ، ما یو دوه ځله هغه ته د استعفی خبره وکړه. خو خلیفه ته یی شکایت وکړ، خلیفه پر ما پټکی وکړی، له هغه وروسته ما له هغه نه سترگی پټی کړی د چنگیز خان د عروج داستانونه چی مشهور شول نو هغه ماته مشوره راکړه چی له چنگیز خان سره د دوستی تړون لاسلیك کړو او د خوارزم پر خلاف یو محاذ جوړ کړو. ما ددغه خبری مخالفت وکړ اول هغه هم چوپ شو، ما صدر اعظم ته څو ځلی شکایت وکړ چی دغه سړی خطرناك دی خو هغه ددی خبری پروا ونه کړه، یوه ورځ زه خلیفه وروغوښتم امر یی راته وکړ چی د چنگیز خان په نامه د دوستی یو پیغام واستوم، خو ما دا عذر وړاندی کړ چی په اوسنی حالت کی زموږ استازی ته له خوارزم نه تیریدل او قراقرم ته رسیدل نا ممکن دی.

که هغه په لاره کی ونیول شي نو د خلافت د دربار بدنامي به وي، خلیفه چي زما دلیل واورید هیڅ یی زور ورنه کړ، خو څو ورځی وروسته مهلب راته وویل چي نن صدر اعظم خلیفه ته یو لیك وراندی کړ چي د خوارزم حکومت د بغداد یو استازی د تلاشی نه وروسته له هغه نه ایستلی دی او په بغداد کی یی خپل ... ته را استولی دی، هغه دا هم راته وویل چي په هغه لیك ستا لاسلیك دی، ځکه خوښه دا ده چي ته چیرته غلی شه خو ما د هغه مشوره ونه منله ورته ومی ویل :
څرنګه چي ما داسی لیك نه دی لیکلی نو زما له پوښتنی او پلټنی څه ویره نشته، زه همدا اوس د خوارزم د سفیر، صدر اعظم او خلیفه په وړاندی خپله صفایی وړاندی کوم، خو چي کله زه له دروازی راووتم بهر نهه، لس تنه سپاهیان او کوتوال ولاړ وو. د مهلب په اشاره یی زه ونیولم اوس راته معلومه شوه چي مهلب زما په جعلی لاسلیك پیغام استولی، او له ما وروسته چي خلیفه هغه سمدستي زما پرځای وټاکه دا معنی لری چي دا هر څه د خلیفه په اشاره شوی دی. هغه د بدنامی له ویری زما د محاکمی کولو څخه ویریده، او د خوارزم د سفیر د تسلی لپاره به یی زما له بندی کولو وروسته هغه ته ویلی وی چي مجرم چیرته تښتیدلی دی.
ستا په ګومان صدر اعظم په دی دسیسه کی شریك نه دی؟
: نه! که هغه شریك وای نو زما سره به مهلب هم دلته یوځای ؤ، زما په ګومان خو هغه زما له بندی کیدو څخه هم نا خبره دی، که نه نو هغه به برالا په محکمه کی زما په باب عرض کری ؤ، زه دا منم چي هغه تر وروستی حده چاپلوسی خوښوونکی دی، خو له مغلو نه یی کرکه ده، او هغه د خوارزم سره د ښو اړیکو پلوی ؤ.
د هغه تر ټولو ستره کمزوری له خپل نالایق زوی قاسم سره مینه ده.
طاهر وویل : مګر خلیفه چنګیز خان ته په پیغام استولو کی ستا نوم ولی استعمال کړ؟ هغه په آسانی ستا پر ځای مهلب او یا بل څوك ټاکلی او د خپل لاس آله ګرځولی شوای.
: دا ددی لپاره چي د استازی د نیول کیدو په صورت کی په داسی چا تور ولګیږی چي خدمتونو ته یی نور خلیفه ضرورت ونه لری، زما په اړه د خلیفه یقین راغلی ؤ چي زه به په دی مسأله کی راز ونه ساتلای شم.

# اور او وینی

علاو الدین محمد خوارزم شاه د لومړی ماتی نه وروسته شمال لویدیز ته مخه کړه او د سیحون «آمو» په غاړه یی واړول، د جنوب له ښارونو نه د نورو پوځونو د ور رسیدلو په انتظار شو، د قوقند له فتحی وروسته چنګیز خان د آمو سیند په بهیر کی د شمال لویدیز پرځای د لویدیز لوری ته مخه کړه او خپل زیات پوځ یی جنوبی لوری ته واستاوه.

هغه له دی محاذه د خوارزم شاه د پام اړولو لپاره خپل دوه زامن په شمال کی «اترار» لوری ته واستول، خوارزم شاه په خپل ګومان د چنګیز خان زامنو ته د سیحون، پر غاړه د یوی سختی ماتی ورکولو لپاره بی دریغه پوځی تیاری نیولی ؤ، خو ناڅاپه یی خبر واورید چی د چنګیز خان پوځ د جنوب ختیځ څخه د آمو سیند په بهیر د سمرقند او بخارا په لوری را روان دی، محمد شاه ته سمدستی دوی اندیښنی پیدا شوی لومړی د خپلی حکمرانی دوی مضبوطی کلاوی د ده له لاسه د وتلو اندیښنه له بله پلوه که دغه دوه مضبوطي کلاوی د ده له لاسه ووزی نو د آمو سیند څخه د ارال تر جهیل پوری به تولهٔ پراخه سیمه په ډیره آسانی د دوی له لاسه و وزی او په جنوب کی به د مرستی او اذوقی لاره پری بنده شی.

محمد شاه په دی وخت کی هم د خپلو تجربه کارو جنرالانو مشوره ونه منله او په یوه محاذ پر خپل ټول ځواك د مغلو د مقابلی پر ځای ئی د لښکر زیاته برخه د مختلفو ښارونو د دفاع لپاره واستوله، څلویښت زره تنه پوځ یی د آمو د سیند پر غاړه آبادو ښارونو د ساتنی لپاره پریښودل او هغه بخارا ته مخه وکړه، دیرش زره تنه یی هلته پریښودل او له پاتی لښکر سره سمرقند ته ورسید.

په دی موده کی د چنګیز خان یو زوی تر آمو پوری ووت او په اترار یی یرغل کړی ؤ، د ښار والی تر وروستی سلګی وجنګید او چی مغلو برجونه او دروازی ور ونړولی او د ده پاتی پوځونه یی هم تر تیغ تیر کړل هغه په یوه برج وخوت او یوازی یی پر مغلو د غشو باران جوړ کړ، چی غشی یی خلاص شول بیا یی پر

خښتو ویشتل.

بالاخره هغه ژوندۍ ونیول شو او د چنګیز خان دربار ته یې بوتلو، چنګیز خان یې په غوږونو او سترګو کې ویلې شوی سرب وروڅڅول او ویې واژه.

د چنګیز دوهم زوی تاشقند ونیو، بیا د مغلو لښکر په څو برخو وویشل شو او د آمو «سیحون» د سیند په غاړه یې څو وړوکي ښارونه لاندې کړل.

چنګیز خان له خپل یوه زوی «تولای» سره د بخارا په لور ورانده ولاړ او په لاره کې پراته کلي یې په وینو او اورونو کې راونغښتل، خوارزم شاه په سمرقند کې د هغه د پرمختګ خبر واورید، د پوځ د سردارانو اوس هم دا نظر ؤ چې د چنګیز خان سره باید یو پریکنده جنګ وشي، خو خوارزم شاه بیا هم د بخارا برجونه او مورچل مضبوط ویلل د دوی رایه یې رد کړه او د ښار د ساتنې لپاره یې نور پوځ هم ور واستاوه، پردې سربېره یې د جنوب له ښارونو نه سمرقند ته د لښکر استولو امر وکړ، خوارزم شاه دا هیله درلوده چې مغل به د بخارا په نیولو څو میاشتې تیروي او په دې موده کې به دی د خپل سلطنت شړېدلی نظم او اداره بیرته راسمبال کړي.

چنګیز خان د ښار له کلابندې نه څو ورځې وروسته دا احساس کړه چې د ښار فتحه کول دومره اسانه نه دي، په تیرو فتحو کې هغه د وسلو جوړولو ډیر مسلکي ماهرین نیولي وو، چې په هغوی کې ځینو د دوی خدمتګاري قبوله کړې وه، د یوه سړي په مشوره چنګیز خان پر ښار اور لرونکي غشي ور وویشتل، د اورنیو غشو له امله د ښار په یوه ګوټ کې اور بل شو، چې په ټول ښار کې له دې پیښې نه ګډوډي او وارخطایي ګډه شوه.

ترکي پوځونو له مجبورۍ نه له ښار نه بهر مقابله او جګړه پیل کړه، خو ماته یې وخوړه، مغلو هغوی له څلورو خواو را ایسار کړل او ټول یې تر تیغ تیر کړل.

د ښار مخور چې له پوځ نه محروم شول چنګیز خان ته یې د یوه هیأت استولو پریکړه وکړه، د ښار یو منلی سپین روبی امام زاده رکن الدین له دې پریکړې سره مخالف ؤ، هغه د ښار د سپین روبو په مخکې احساساتي خبرې وکړې ویې ویل : موږ لږ تر لږه تر شپږو میاشتو پورې د ښار نه دفاع کولی شو، زما باور دی چې د سمرقند پوځونه به په دې حالاتو کې دلته را رسیږي، اوس به چنګیز خان د ښار د دروازو د خلاصولو په خاطر زموږ هر شرط ومني، خو دمغلو په باب دا ګټل چې دوی به د کومې ژمنې پابند پاتې شي د ځان تیر ایستل دي. کله چې د مغلو

پوځونه ښار ته ننوزي نو هماغسی سلوك به درسره کوي چی د اترار او تاشقند له اوسیدونکو سره یی کړی.

خو د امام زاده غږ د صحرا فریاد ته ورته شو چی هیچا وانه ورید د ښار د مشرانو استازو چی له چنگیز خان سره ولیدل پر ښاریانو یی دا زیری وکړ چی ستاسو سرونه، عزت او مال خوندی دی، د ښار نوی حاکم به هم مسلمان وی او د ښار دروازی بیرته شوی.

*****

(۲)

رکن الدین سهی ویلی وو، د بخارا خلکو وحشت او ستم پر خپلو سترگو لیده، هغه مدرسی چی د قرآن زده کړه به پکی کیدله د مغلو پوځیانو اسونه پکی وتړل او طبیلی یی تری جوړی کړی. چنگیز خان د بخارا د لوی جومات په مخکی له اس نه پلی شو، له یوه سړی نه یی وپوښتل:

دا ستا سو د پاچا کور دی؟

: نه دا د خدای «ج» کور دی.

چنگیز خان جومات ته ننوت حاضرو خلکو ته یی په خطاب کی وویل : زما پوځونه ستومانه شویدی هغوی خوب او خوراك ته اړتیا لری، هغوی ته د خپلو کورونو دروازی خلاصی کړی، او زموږ د اسونو لپاره دغسی پراخ ځایونه خالی کړی او واښه هم ورته تیار کړی، په یاد ولری چی تاسو د خدای «ج» له قهر نه ویریږی او زه درباندی د خدای قهر را نازل شوی یم.

چنگیز خان خپل یوه ترجمان ته وویل چی دغه خبری دوی ته ووایه او بیا له جومات نه ووت، دا یی پیل ؤ وروسته بیا چی د بخارا اوسیدونکو څه ولیدل د دوی له اټکل او تصور څخه ډیر زیات وو، د شپی مهال نارینه ؤ ته خپلو کورونو ته د ننوتلو اجازه نه وه، دوی به بهر د کورونو په مخ کی ولاړوو او د کورونو دننه یی د مغلی سرتیرو وحشیانه خنداگانی او د خپلو تورسریو زړه ریږدوونکی کریږی اوریدی، که به د چا غیرت په جوش راغی او خپل کور ته به یی د ننوتلو هڅه وکړه د پهره دارانو د توری په گوزار به پر خاورو او وینو کی راپریوت.

د امیرانو پر ماڼیو د مغلو پهری له دی نه هم سختی وی، هغوی ته به یی ډول ډول شکنجی ورکولی او د پټو خزانو پوښتنی به یی تری کولی، چی کله به دوی کومه خزانه ور وښودله نو ورته وبه یی ویل چی تا نور هم ډیر څه غلی کړی دی.

هغوی به چی څه درلودل ټول به یی ورکړل خو تاتاریانو به تر مرگه نه پریښودل.
د بخارا د اوسیدونکو په لاس به یی بیلونه ورکړل او د امیرانو د ماڼیو تاداوونه به یی پری کیندل. او کله چی دوی پوه شول چی په بخارا کی څه د کار شی پاتی نه دی نو د ښار اوسیدونکی یی یوه پراخ میدان ته راوستل، نور له چا سره شك نه ؤ چی له دوی سره به څه کوی.
هر لوری ته د ماشومانو او ښځو زړه بوږنوونکی کریږی اوچتی وی، د نارینه ؤ په سترگو کی اوښکی وی، ښځی په کریږو چیغو او ژړا له نارینه ؤ نه جلا کړای شوی د بی کسانو سترگی اسمان ته اوچتی وی، له هغوی نه آزادی اخستل شوی وه او په ښار کی د دوی له کورونو نه اوررونه او لمبی جگی شوی وی، اوس د دوی ښځی هم تری اخستل شوی وی، هغه پرده داری ښځی چی تر اوسه یی مخ لمر نه ؤ لیدلی، تاتاریانو د دوی د زامنو او میړونو د وړاندی د دوی پر عصمت تیری کاوه، د نارینه ؤ مخی ته د مغلو د سپرو د نیزو دیوال ولاړ ؤ او له هغوی نه وسلی ټولی شوی وی.
امام زاده رکن الدین چیغی کړی : بی غیرتو! څه ته گوری! له څلورو لوریو د تکبیر چیغی اوچتی شوی او د بخارا اوسیدونکی د مغلو پر لښکر ور پریوتل، د تشو لاسو او دتورو مقابله پیل شوه، خو په څو شیبو کی زیاتو خلکو په تش لاس له مغلو نه نیزی، توری او خنجرونه اخستی وو، هغو سرتیرو چی د تورسریو بی عزتی یی کوله زیاترو د توری سنبالولو او پر اس سپریدو فرصت ونه موند، خو د مغلو زیات لښکر پر اسونو سپاره او هر ډول مقابلی ته چمتو وو هغوی په څو حملو کی د مړیو انبارونه جوړ کړل، بیا هم دوه زره تنه مغلی عسکر وژل شوی وو، هغوی په غوسه شول او په څو ساعتونو کی یی ټول ووژل او ډگر یی صاف کړ، یوازی څو تنه تور سریی پاتی شوی د هغوی لاسونه یی په رسیو وتړل او بیا یی د اسونو پر زینونو باندی وتړلی او د سمرقند په لوری یی کوچ وکړ، پر اسونو تړلی ښځی تر ډیره له اسونو سره سمی نه شوا څخستلای، هغوی به وغورځیدی او چی ساه به یی ورکړه مغلی سپاره به په خنجر له زین نه پړی پړی کړ.
چنگیز خان د بخارا په فتحه دومره خوښ نه شو لکه چی د خپلو دوه زره جنگیالیو په مرگ چی خفه ؤ.

*****

(۳)

سمرقند په دفاعی لحاظ د خوارزم شاه تر ټولو مظبوط ښار ؤ، د ښار د ساتنې لپاره یو لك اولس زره تنه پوځ تیار ؤ، خو د مغلو په لاس د بخارا د فتحې د خبر له اوریدو سره د سلطان اعتماد ولړزیده، د ښار قومانده یې څو سردارانو ته وسپارله او پخپله د بلخ په لوری ولاړ، پوځ چې له دوو لویو شخصیتونو څخه د سهی لارښوونې هیله درلوده هغوی په سمرقند کې نه وو، د پاچا زلمی زوی چې د خوارزم زمری یې ورته ویل، د هیواد په شمال لویدیځو برخو کې پوځ راټولاوه، هغه خپل سرتمبه پلار ته استازی واستاوه او سمرقند ته یې د راتلو اجازه تری وغوښتله خو د سلطان له طرفه دا ځواب ورغی چې : ته زما څخه زیات د تجربې خاوند نه یې. چې کله درته ضرورت شو راویه دی غواړم.

دوهم تیمور ملك ؤ چې د قوقند په جګړو کې یې ټول ترکستان پر میړانه او توره اعتراف وکړ، د هغه په باب د سمرقند زاړه او واړه دا رایه وه چې په یو لك اولس زره پوځ مغلو ته په هر میدان ماته ورکولی شي. خو چې سلطان سمرقند ته راغی هغه یې د بلخ شاوخوا جنګیالیو قبیلو د منظم کولو لپاره ولیږه.

کله چې خوارزم شاه هم له سمرقند نه ووت نو په ټول لښکر کې مایوسی خپره شوه، سرداران او امیران له پخوانه د رقابتونو په سبب په مختلفو ډلو او ټولګیو ویشل شوی وو، چې دیوه با نفوذه سړی له سر مشری نه محرومیت د دوی ترمنځ اختلافونه نور هم زیات کړل.

د کلابندی په دوران کې د چنګیز خان یو زوی چې د سیحون «آمو» د سیند په شاوخوا کې یې دیر ښارونه او ښارګوټی ونیول له زیات شمیر بندیانو سره له خپل پلار سره یوځای شو، د سمرقند برجونه او دیوالونه ډیر مظبوط وو، د وولس او- سپینږی دروازی چې په برجونو کې یې ساتونکی ناست ؤ نه فتحه کیدونکې وې.

چنګیز خان د دیوالونو او برجونو په شاو خوا بندیان د مورچلو پر جوړولو وګومارل او د اوږدی کلابندی تیاری یې پیل کړ، د ښار ساتونکی پوځ دا احساس کړه چې تر دوو میاشتو پوری به تاتاریان په شاوخوا سیمه کې دومره پښې سڼخی کړی چې بیا که له بهر نه له موږ سره مرسته کیږی هم نو ښار ته به یې را رسیدل امکان نه لری، د مورچلونو د جوړولو لپاره له شاوخوا کلیونه د بندیانو نوری ډلی راوستل شوی.

ددغو حالاتو سره د مقابلی په خاطر د پوځ سردارانو پریکړه وکړه چې بهر ورووزی او مقابله وکړی، ترکان ډیر په میړانه جنګیدل او په هماغه شیبو کې چې

د مغلو د لښکر پښې په لړزيدو شوی څو تنه پوځی سرداران چی پخوا يی له چنګيز خان سره معامله کړی وه له ډيرش زره پوځ سره له هغوی سره يوځای شول. د فتحی نه وروسته چنګيز خان په لومړی ورځ د دوی خاطر وساته، دوی ته يی د اغوستو لپاره د مغلی پوځيانو جامی ورکړی، خو کله چی په ښار کی له عامی وژنی نه بيغمه شول هغه ديرش زره غداران يی له سردارانو سره يوځای په خوب ويده په مرګ وسپارل. چنګيز خان د دښمن له غدارانو نه د کار اخستو قايل ؤ خو د هغوی په ژوندی پريښودو نه ؤ.

د سمرقند له فتحی نه وروسته چنګيز خان خپل ډير غوره سپاره په خوارزم شاه پسی ور واستول. چنګيز خان ګومان کاوه چی که خوارزم شاه فرصت وموند نو په څو ورځو کی به نور لښکر تيار کړی. څکه خو هغه تعقيب کوونکو پوځيانو ته حکم وکړ چی په هره بيه د خوارزم شاه درك ولګوی او چی په کوم ښار کی دی هغه کلابند کړی، له نورو ښارونو نه لاره کړه کړی او په خپل حال يی پريږدی.

خوارزم شاه ته هم معلومه شوه چی چنګيز خان د نورو ښارونو له نيولو وړاندی دده د نيولو لپاره هڅی کوی. هغه له مختلفو ښارونو څخه تير شو او نيشاپور ته ورسيد، تاتاريانو د لاری ښارونه پريښودل او همالته ورپسی ور ورسيدل، خوارزم شاه همدان ته مخه کړه خو مغل د سيوری په څير ورپسی وو ، په يوه ځای کی يی را لاندی کړ او د خوارزم شاه نه پرته يی د هغه نور زياتره ملګری تر تيغ تير کړل خوارزم شاه پخپله په غشو زخمی وتښتيد، اوس په دی دنيا ده ته تر ټولو ستره مسأله د ځان ژغورل وو ، د هغه خپل ملګری تری په تنګ شوی وو ، او چی له څلورو خواو نه مايوس شو د خزر بحيری په غاړه يی واړول، د ټولو قبيلو سردارانو ته يی خلك واستول خو هيڅوك يی مرستی ته ورونه رسيدل.

* * * * *

(٤)

خوارزم شاه نور په دنيا کی په هيڅ اعتماد نشو کولای، د مغلو په څير يی هر وخت له خپلو ملګرو نه هم د ځان ويره احساسوله، ده به د ځان لپاره څو خيمی درولی، خو له يو دوو غلامانو نه پرته به هيچا ته دا معلومه نه وه چی نن شپه به هغه په کومه خيمه کی ويده وی. يوه شپه دی له خپلی پراخی خيمی څخه راووت او په يوه وړوکی خيمه کی ويده شو سهار لومړی خيمه په غشيو سوری سوری وه.

يو ماښام د سمندر په غاړه ولاړ ؤ، چی له ليری يی ګردونه وليدل چی پورته

شول، شك ورته پیدا شو چی مغلیان راغلل، خو یو سپاهی راغی خبر یی ورکړ چی دا د مسلمانانو لښکر دی، لښکر چی را نژدی شو ودریدل هغوی یوازی پنځه زره تنه وو، خوارزم شاه مایوس شو یو سپور وراندی راغی او خوارزم شاه یی له لیری وپیژاند اس یی ور وزغلاوه نژدی ورغی
دا جلال الدین ؤ.
یوه شیبه پلار او زوی یو بل ته کتل، خوارزم شاه وویل:
جلاله ! له اس نه نه پلی کیږی!
: نه زه باید ډیر لری ولاړ شم، زه یوازی ددی پوښتنی لپاره راغلی یم چی زه دی د څه لپاره رابللی وم؟
: نو ته زما مرستی ته نه یی راغلی؟
: په دی ویرانه کی تا ته د څه شی خطر دی؟ زه د مرگ په لټه پسی ځم، له مرگه د تښتیدونکو به څه مرسته وکړای شم؟
خوارزم شاه ور وراندی شو د جلال الدین د اس جلب یی ونیو ویی ویل : نه نه زه تانه پریږدم چی ولاړ شی، ځکه پر ما تنگه شوی ده، ته زما وروستی تکیه یی، راځه زه خپله خیمه دربښیم چی په غشو سوری سوری ده، نن ټوله دنیا زما دښمنه ده، ایا زما زوی هم زما مرسته نه کوی؟
جلال الدین ځواب ورکړ: کاشکی تا له دنیا سره څه ښیگنه کړی وای ستا په سبب هیواد ته د یوه وحشی غلامی ور په برخه شوه، تا یوازی د ځان د ژغورلو په خاطر ټول هیواد لیوانو ته وسپاره، اولس ستا د اشتباهاتو سزا گالی، مسلمانان ستا په خاطر د مغلو له لاسه د خپلو خویندو او نږورانو بي پتی گوری، نن ته دا پیغام ور استوی چی راشی زما پر خیمه پهره وکړی خو په کومه خوله؟
: جلاله ! جلاله زه ستا پلار یم.
: کاشکی زه ستا د کور پرځای د یوه غریب خو غیرتی په کور کی زیږیدلی وای.
جلاله ! زما زړه مه خپه کوه!
: کاشکی ستا په سینه کی زړه وای. خو تقدیر هلته د غوښو یوه بی حسه ټوټه ایښی.
: آخر له دی خبرونه ستا مطلب څه دی؟
: هیڅ نه، دا زما له تا سره وروستی ملاقات دی. او زه تاته له دی غوښتنی

سره راغلی یم چی خزانه ماته وسپاره، زه غواړم چی د بخارا او سمرقند د خزانو په څیر دا هم د دښمن په لاس کی ونه لویږی. زه د نویو پوځونو راټولولو لپاره یوی یوی تنګی ته اړتیا لرم.

: نو ستا ګومان دی چی له مغلو سره جنګیدلی شی؟

: زما له پیله دا ګومان ؤ خو تا می لاره بنده کړی وه.

: جلاله ! له تاتاریانو سره جګړه لیونتوب دی، او زه په دی مصیبت کی له پاتی شتمنی ځان خلاصول نه غواړم. د خدای «ج» لپاره زما ملګری شه، پر ما تر ځانه ستا ژوند ډیر ګران دی، ددی آسمان لاندی داسی ځایونه شته چی موږ پاتی ژوند په آرامه پکی تیر کړای شو. موږ به مصر ته ولاړ شو، اندلس ته به ولاړ شو.

: زه له بی غیرتو سره د ژوند تیرولو پرځای له میړنیو سره مرګ غوره ګنم، هغه اولس چی ستا د تخت لپاره خپلی وینی بهولی، نن هغه زما وینو او خولو ته ضرورت لری، زه هغوی ته شا نه شم کولی!

: مګر په دی پنځه زره کسانو به ته څه وکړای شی، مغل د شګو له ذرو نه هم ډیر دی.

: په داسی وختونو کی یو سر تیری له بری او ماتی نه بی پروا ډګر ته په ور ننوتلو مجبوریږی، زه به خپله ذمه واری پوره کړم، بری او ماته د خدای (ج) په لاس کی دی، خو په ژوند پر ما ته اعتراف د یوه مسلمان له شان سره نه ښایی. زما پردی هم باور دی چی که زه دغه پنځه زره تنه پوځ ته د میړنیو مرګ ور زده کړم نو ټول قوم به ژوندی او راپاڅی، ته مصر ته ولاړ شه زما دا خزانی په کار نه دی، زه به په نس ډبری وتړم او بدن به په زغروکو پټ کړم وبه جنګیږم، او زما باور دی چی اولس به راسره ملګری شی.

جلاله الدین اس راوګرځاوه او پونده یی کړ،

: جلاله‌ودریږه! ما دلته مه پریږده! دلته زما هیڅوک نشته ماله ځانه سره بوزه.

جلال الدین اس ودراوه ویی ویل : راځه!

: چیرته ؟

: د آزادی په لټه پسی په مرګ پسی!

: نه نه! زویه زما خبره واوره موږ له مغلو سره نه شو جنګیدای.

: ستا حکم ماته د خدای «ج» او رسول «ص» له حکم نه معتبر نه دی.

زموږ لاری او هدفونه سره بیل دی خدای پامان!

څو ورځی وروسته خوارزم شاه ته چا خبر راوړ چی تاتاریان راغلل او هغه د خزر بحیری یوی جزیری ته پناه یو وړه، او بیا همالته په نوموړکی مړ شو.

* * * * *

(۵)

د مغلو سیلاب د ترکستان، خراسان او ایران پراخه میدانونو ته مخه کړه، د اور او وینو ددغه توپان په مخکی غرونه، سیندونه، او کلاگانی هیڅ هم نه وی، په شمال او لویدیځ کی د مغلو د سیلاب څپی د خوارزم له هیواده تیری شوی او د دنیپر د سیند څنډ وته ورسیدی. د چنگیز خان یو زوی په روس کی د مسکو دروازی ورټکولی، بل زوی یی په ختیځه اروپا کی وړوکی وړوکی پادشاهی تر ناتار لاندی راوستی وی خو د خوارزم په پراخ هیواد کی تر اوسه یوه نه ماتیدونکی مورچه پاتی وه، د سیلابونو توندی او ګرندی څپێ څو ځلی پری ور واوښتی خو هغه یی ونه لړزولی شوه، د خوارزم په ایرو کی لا تر اوسه یوی سپرغۍ لمبی وهلی، او چنگیز خان دا خطر احساساوه چی که یی دغه سکروټه مړه نه کړه نو د ایرو دغه انبار به یو وخت یو اور غورځوونکی غرشی، دغه اوسپنیز کمر او دغه بله سپرغی جلال الدین و، د یوه بی زړه پلار میړنی زوی. هغه له هغو کسانو څخه ؤ چی په ژوند یی ماته منل نه پیژندل او چی د ماتی او بری څخه بی پروا جګړه کوی، او چی د سمندر د ژور توپ پروانه کوی او پکی ور ښکته کیږی.

جلال الدین د سرتیرو د ګوتو په شمیر یوی ډلی سره څو ځلی له مغلو سره مقابله وکړه، هغه به چی په یوه ځای ماته وخوړه وبه ووت او دویمه ورځ به اوریدل کیدل چی دیرش څلویښت میله لری یی د خپل هیواد کوم له لاسه تللی ښار بیرته نیولی دی، کله به له هغه سره پنځه زره تنه سپاهیان وو او کله پنځه سوه او کله بیا له پنځو سوو نه هم لږ، خو هغه به جنګیده، د وړی زمری په څیر به یی له شا یرغل راوړ، د شاهین په څیر به یی د مخی پر لښکر حمله وکړه او تاتاریانو به ورته کتل دوی به د سترګو په رپ کی په کوم غره او یا ځنګل کی الوتیه شول.

د شپی مهال به د هغه سپرو د مغلو په چونۍ حمله وکړه، او د سترګو په رپ کی به د بلومشالونو په واسطه سلګونو خیمو اور واخست، هغه د تاتاریانو د بی شمیره لښکر نه ونه ویریده، پر فتحه شویو ښارونو او کلیو د مغلو د تیریو او ظلمونو داستانونو او نکلونو دده حوصله ماته نه کړه.

د جنوب د ښارونو اوسيدونکو چې د بخارا، سمرقند او نورو ښارونو پر خلکو د مغلو د ظلم داستانونه واوريدل زياتره اوسيدونکی يې گاونډيو هيوادونو ته په هجرت اړ شول. د عراق، شام «سوريې» افغانستان او مصر په لوري تلليو لارو پر سر په لکونو کډوال له لوږې مړه کيدل، شتمن خلك د محمد شاه د لومړی ماتی د خبر له اوريدو سره گاونډيو هيوادونو ته مهاجر شوی وو. خو د څو نورو ښارونو له فتحې وروسته چې کله د ټولو پردی باور شو چې مغل کوم داسی نارينه سړی ژوندی نه پريږدی چې توره اوچتولی شی نو غريبو او بی وسه خلکو هم خپل کلی او ښارونه پريښودل دغو قافلو او لارښوونکو ته يې ډيرو لږوته دا معلومه وه چې د دوی هدف کوم ځای دی، خو دوی بيا هم روان وو، له شمال ختيځ نه د مغلو يرغلونو دوی د جنوب لويديځ په لور خوځولی وو.

کومی قافلی به چې له مغلو سره مخ شوی په هغوی کی به له څو ښځو پرته ټول وژل کيدل.

د ازل له ورځی تر ننه د ورځی لمر او د شپې ستوريو د خدای «ج» په ځمکه پر خپلو سترگو داسی ظلمونه نه وو ليدلی.

د کډوالو زياتره ډلی د مروی په لوری تللی، او دا هغه ښار ؤ چې شپږ پيړی پخوا د ترکستان لوی فاتح قتيبه «رح» بن مسلم باهلی پکی اوسيده، هلته د سلطان سنجر سلجوقی قبر هم ؤ.

د جلال الدين د عملياتو له امله زياتره کډ وال د مغلو له يرغل نه خوندی مروی ته ورسيدل، په څو مياشتو کی هلته څو لکه تنه کډوال راټول شول.

# مهمې پرېکړې

د طاهر په بندیخانه کې لس میاشتې تیرې شوې وې، په لومړنیو څو هفتو کې خلك ډیر احساساتي او پاریدلي وو، خو ورو ورو يې جوش او جذبه غلې شوه او مظاهرې بندې شوې، حکومت چې د اولس نه ډاډه شو د حکومت پر خلاف د بغاوت په تور يې د عبدالعزیز، عبدالملك او د دوی د نورو ملګرو د نیولو فرمان صادر کړ، خو د هوښیارو او د نفوذ خاوندانو يوه ډله بیا هم د دوی ملاتړې وه او حکومت ته په آرامه د دوی د نیولو فرصت برابر نه شو.

چې د بخارا، ترمز، سمرقند، طوس او ري په باب د بغداد خلکو دردوونکې خبرونه واوریدل بیا پر بل اړخ واوښتل او د طاهر پلویان زیات شول.

د کډوالو یو کاروان بغداد ته ورسید، د هغوی نه چې د مغلو د اروا ځوونکو ظلمونو کیسې خلکو واوریدې د بغداد په هر مجلس کې د خلیفه او نورو امیرانو پر بې حسۍ مجلسونه تاوده شول، چې ایران ته يې د تاتاریانو د لښکرو ننوتلو خبر واورید اندیښنه او وارخطایي يې په ویره بدله شوه، او خلکو په وازکومي د خلیفه، صدر اعظم او نورو امیرانو پرخلاف خپله غوسه څرګندوله.

یوه شپه د ښار د هر جومات په دروازه دا اعلان لګیدلی ؤ چې:

«د غفلت پر خوب ویدو! ویښ شئ چې د مرګ اوبربادۍ توپان د بغداد دروازې ټکوي، کوم خلك چې تاسو خپل ساتونکي ګڼئ هغوی له مغلو سره ستاسو د عزت او ازادۍ معامله کړې ده، ایا تر اوسه د حکومت بې طرفۍ ددې ثبوت نه دی چې طاهر بن یوسف چې د خلیفه او چنګیز خان په منځ کې د پټې معاهدې خبره رسوا کړه هغه رېښتیا شوې ده. که د طاهر تور غلط ؤ نو حکومت په محکمه کې ولې د دعوې جرئت نه کوي؟

که خلیفه له علاوالدین محمد خوارزم شاه سره دښمني درلوده هغه خو مړ شو، اوس په ترکستان، ایران او خراسان کې د مغلو د بې دریغه ظلمونو د خبرونو له اوریدو سره ولې هغه د جهاد اعلان نه کوي؟

د بغداد خلکو! ستاسو غدار تاسو پر هغه دښمن پلوري چې رحم هيڅ نه پيژني، اوس ددې مهال را رسيدلی دی چې تاسو يوه پريکړه وکړئ د بغداد په لوی جامع جومات کې به د جمعې د لمانځه نه وروسته يو پيغام واورول شي!»

د جمعې په ورځ په جامع جومات کې د ښځې ايښودلو ځای نه ؤ، پيغام اوروونکی عبدالملك ؤ، اوريدونکو دا احساسوله چې د طاهر بن يوسف روح د بنديخانې نه راوتلی او د ده په وجود کې دی، د هغه د وينا تر ټولو رومبی اغيزه دا وه چې کومو قاضيانو چې د طاهر بن يوسف پر خلاف د بغاوت فتوی ورکړې وه، د هغوی کورونه يې وسوځول، ماښام مهال پاريدونکو خلکو د صدر اعظم د کور په مخکې شعارونه ورکول.

* * * * *

(۲)

د پاچهی مشران په يوه پراخه کوټه کې د خليفه د تخت مخې ته پرکرسيو ناست وو، جاروهونکي د خليفه د راتګ اعلان وکړ او اميران ټول ودريدل، يوه سپاهي د تخت تر شاه پرده پورته کړه، او خليفه د څلورو توره ايستلو حبشي غلامانو د تورو په سيوری کې راښکاره شو پر تخت کښيناست، د جاروهونکي په بل اعلان اميران ټول پر خپلو کرسيو کښيناستل.

د خليفه په امر د ښار ناظم جګ شو د ښار د تازه حالاتو په اړه يې خپل راپور وړاندې کړ، زياترو اميرانو په نوبت د هغه په اړه خپل خپل نظر واوراوه دوی ټول پر دې ټکي متفق وو چې د طاهر بن يوسف په زنداني کيدو خلك زيات پاريدلي دي، د ښار د لوی قاضي کور يوازې په دې سبب سوځول شوی دی چې ولې يې د هغه پرخلاف د بغاوت فتوی ورکړې وه، او کومو علماؤ چې د هغه د بې دينه کيدو اعلان کړی ؤ احساساتي خلك يې پر کورونو هره ورځ کاڼي اوروي. د ښار پر جوماتونو بې لارې ځوانانو قبضه کړې ده او د پاچهی هر امير او منصبدار ته د منبر پر سر کنځلې کوي.

د ښار کوتوال ووېل چې د عبدالعزيز او عبدالملك د هڅو په نتيجه کې د پوځ يو شمير افسران پټ د همدغو باغيانو ملاتړ کوي، خليفه ددې ټولو خبرو له اوريدو وروسته په ناکراری پر بل اړخ واوښت او ويې ويل :

د باغيانو د مصروفيتونو په اړه مو ډير څه اوريدلي دي، زه دا پوښتنه کوم چې تاسو تر اوسه پورې څه کړي دي څومره کسان نيول شويدي؟

کوتوال او د ښار ناظم پردې پوښتنه صدر اعظم ته وکتل، صدر اعظم جگ شو ویې ویل :

د امیر المؤمنین په اجازه دې پوښتنې ته زه ځواب وایم، خلیفه په اثبات سر وخوځاوه او صدر اعظم وویل:

خلك زیات پر دې پاریدلي دي چې موږ طاهر د محکمې د پریکړې نه پرته بندي کړی دی، هغوی په خپلو ویناگانو کې پر حکومت سخت تورونه لگولي دي. که هغه محکمې ته راوستل شي نو زما باور دی چې د کوم تور ثبوت به رانه وړاي شي او د اولس ذهنیت چې نن زموږ پر خلاف دی سبا ته به تر دې ډیر زیات د هغه پر خلاف وي، موږ که نن بې دریغه نیول پیل کړو، نو د بغداد زندانو نه به ډك شي خو د باغیانو شمیر به لږ نه شي.

پردې سربیره د ترکستان په فتحه شویو سیمو کې د مغلو ظلمونه له چانه پټ نه دي، کله چې د اسلامي هیوادونو اوسیدونکو ته معلومه شي چې د بغداد خلك حکومت له مغلو سره په سازش تورن کړی دی، او حکومت د براﻻ محاکمې پرځای پر خلکو فشار راوړي او غږ یې خپ کول غواړي نو هغوی به پر دې حق په جانب وي چې دا سوچ وکړي چې زموږ حکومت رښتیا هم مجرم دی.

طاهر په منبر دریدلی ؤ او دا اعلان یې کړی ؤ چې له ده سره کوم نوکران له دې ځایه تللي وو د هغوی پر خریبلو سرونو د پخوانۍ بهرنیو چارو وزیر او د حضرت امیر المؤمنین په لاسلیکونو داسې لیك و چې مغلو ته پر خوارزم باندې د یرغل هڅو نه شوی وه، خو موږ په آسانه دا ثابتولی شو چې دا هسې یوه افسانه ده، وحید الدین د خپلې لومړنۍ دسیسې له رسوا کیدو سره غلی شوی ؤ او تر اوسه پورې یې درك نشته. او طاهر د وحید الدین د غلي کیدو او ورکیدو نه یوه یوه نیمه میاشت وروسته قراقرم ته تللی. ځکه هغه دا نشي ثابتولی چې د ده ملگریو د وحید الدین څخه څه لیکنه او یا هدایت وړی دی.

له دې پرته هغه دری کسان وژل شویدي او سرونه یې خوارزم شاه ته وړاندې شویدي ځکه خو دې هغه لیك هم نشي وړاندې کولی، زما باور دی چې که هغه د قاضي مخې ته راوستل شي نو د بغداد تر ټولو ناپوهه سړی به یې هم دروغجن وبولي، ددې پرخلاف که بې له محاکمې هغه بندي وساتل شي او یا کومه بله سزا ورکړای شي د بغداد د خلکو ناکراري به ورسره زیاته شي.

د سلطنت زیاترو امیرانو د صدر اعظم له وړاندیز سره اتفاق او ملاتړ وښود،

خلیفه مهلب بن داود ته وکتل او هغه جگ شو په فصیحه ژبه یی وینا پیل کړه:
موږ د طاهر په باب دا اشتباه کوو چی هغه د عادی عقل خاوند دی. زما په گومان هغه د بغداد د فضا د تیاره کولو لپاره د خوارزم د حکومت په لارښونو عمل کوی، د هغه د دولت او شتمنی کیسی پخوا هم مشهوری وی، اوس به یی ددی پروگرام له پاره نور هم ډیر څه راوړی وی، هغه نوکران چی له ده سره تللی وو ډیر معمولی خلك وو، امکان لری چی د دولت په تمه د هغه د لاس آله کیدو ته چمتو شوی وی، او دا هم امکان لری چی هغوی ژوندی وی. او طاهر دوی د بغداد په کوم گوټ کی غلی کړی وی، او د دوی د مرگ خبر یی د دی لپاره خپور کړی وی چی موږ یی لټونه ونه کړو، تاسو یوازی پر دی اعتبار هغه محکمی ته راوستل غواړی چی د ده په ملاتړ د شاهدی ورکولو څوك تشته، خو که ناڅاپه هغه دری کسان له کوم گوټ نه را ووزی او عدالت ته راشی نو خلکو ته تاسو بیا دا نشی ویلی چی هغوی دروغجن دی.
پر دی علاوه دا هم امکان لری چی وحید الدین یوازی د دی سازش د پټولو لپاره غلی شوی وی، همغه د هغو دریو کسانو پر سرونو څه لیکلی او همغه د خلیفه جعلی لاسلیك کړی وی، چاته به د پخوانی د بهرنیو چارو وزیر د لاس لیکلو پیژندل گرانه نه وی. طاهر په یوه وینا کی ویلی وو چی په قراقرم کی یی د هغو نوکرانو سرونه خریلی وو او لیکونه یی لوستی وو، ځکه خو داسی ښکاری چی هغوی یی له طاهر سره له بغداد نه د لیږلونه څه موده دمخه چمتو کړی وی.
وحید الدین یو عام سړی نه ؤ، هغه د حکومت یو مهم غړی ؤ، که په محکمه کی د هغه گناه ثابته شی نو اولس به موږ ټول ذمه وار وگڼی، ځکه خو محکمی ته د هغه راوستل له خطره خالی نه گڼم، که موږ له عقل نه کار واخلو دا ټولی ستونزی حل کیدای شی، حضرت امیر المؤمنین او د درناوی وړ صدر اعظم دی ماته اجازه راکړی زه دوی ته یوازی یو ځانگړی وړاندیز لرم.
خلیفه مازدیگر مهال صدر اعظم او مهلب ته د حاضریدو وویل او نوربی مجلس رنگ کړ.
مازدیگر مهال چی کله صدر اعظم د خلیفه د مانۍ دروازی ته ور ورسید نو د ښار ناظم او مهلب تری راوتل، د صدر اعظم د پوښتنی په ځواب کی مهلب وویل چی زه خلیفه له وخته وراندی ور وبللم او ما خپل وړاندیز هغه ته وکړ، خلیفه زما سره پری متفق دی او اوس زه ستا حضور ته در روان وم، ما خلیفه ته دا مشوره

ورکړی چی طاهر ته له بنده د تښتیدو موقع ورکړی، د مغلو لښکر پر مروی حمله کړی ده، هغه او د هغه سربښندوی ملګری به تول د جګړی میدان ته ورتښتی، چی وروسته به بیا خلك په خپله آرام شی، د ده له نیولو نه وروسته حکومتی جاسوسانو وویل چی که دی یو دوی ورځی نور نه وای نیول شوی نو بغداد به یی پریښی وای، اوس موږ هغه ته د خوشی کیدو موقع ورکوو په ښار کی به دا اعلان وکړو چی هغه څوك چی نوموړی بیرته ونیسی ډیر لوی انعام به ورکړل شی. او د هغه له تلو نه دوی ورځی وروسته به موږ دا مشهوره کړو چی طاهر د خوارزم شاه په اشاره په بغداد کی د لویی فتنی پیدا کولو لپاره راغلی ؤ.

صدر اعظم وویل : تا چی موږ ته دا لاره راوښودله د هیواد لوی خدمت دی وکړ، زه همدا اوس د جیل ساتونکی ته امر کوم چی د هغه د تښتیدلو بندوبست وکړی.

مهلب وویل : دا کار ماته وسپاره، زه سبا ته پخپله د ښار له ناظم سره د زندان مسئول ته ورځم او پر دی به یی پوه کړم چی څه وکړی.

صدر اعظم وویل : تا زه د یوه لوی ذهنی کشمکش نه خلاص کړم زه ستا مننه کوم.

مهلب ځواب ورکړ : دا زما فرض وو.

: خلك ډیر احساساتی شویدی زما په ګومان باید هغه زر له جیله راووزی.

: ته داډه اوسه هغه به تر سبا پوری آزاد شی.

* * * * *

(۳)

صفیه د سیند په غاړه د دوهم پوړ پرچت ولاړه وه، ماښام شوی ؤ، په لویدیځ افق کی چی وریځو لمر په خپله غیږه کی نیولی ؤ تکی سری ځلیدی، مارغانو چی د آسمان مشال پټیدونکی لیده خپلو خپلو ځالو ته یی پناه وړله، د فضا د تیاره کیدو سره د سپوږمۍ ژیړه څیره روښانه کیدله، ستورو د آسمان له پیڅکو راکتل او غمجنو کائناتو موسکل، فضا ورو ورو سړیده، تووله ورځ سرګردانه او ستومانه کب نیوونکیو په بله څنډه خپلی کښتی درولی، د اوبو پر مخ به کله کله کوم ناکراره کب توپ وواهه او بیرته به په اوبو کی ډوب شو.

صفیی د کوزیدو اراده کوله چی د چا د پښو غږ یی واورید دی مخ ور واړاوه ویی لید او بیرته یی په بی پروایی مخ واړاوه، هغه قاسم ؤ.

هغه ووېل : صفیي يخني ده څه دلاندي!
صفيي هيڅ ځواب ورنکړ، او وړاندي شوه د سيند په ننداره شوه.
: صفيي د خدای «ج» لپاره، چی څومره دی زړه غواړی ما ورته، خو ستا دا چوپتيا راته له زغم نه اوچته ده، که ماته معلومه شی چی د دی سمندر د لوری په بدلولو ستا موسکا راګرځولی شم نو په خدای «ج» سوګند چی ورته چمتو یم.
هغی چيغی کړی : ته دروغجن یی، مکار یی، د خدای «ج» لپاره ورك شه ما مه پريشانه کوه.
: بس زه د همدی اوريدلو لپاره راغلی وم، هغه د خپل خجالت د پټولو لپاره د موسکا هڅه وکړه.
د صفيي لهجه نوره هم ترخه شوه ویی ویل : ته ظالم یی، کينه کښ یی، د اولس غدار یی، ورځه که نه نو له دی بامه به ځان وغورځوم.
قاسم ور وړاندی شو د هغی مټ یی ونیو ویی ویل :
صفيي رښتيا ستا له مانه دومره کرکه ده؟
: زه تا د کرکې وړ هم نه بولم، او بیا یی د خپل مټ د خلاصولو هڅه وکړه.
قاسم په غوصه خپل غاښ چیچل ویی ویل : دا هر څه د هغه سارايی طاهر له لاسه دی.
: ماته تل د کرکې وړ بللی.
: تـه دروغ وایی، تـا چی نـن پـلار جان، مـور او سکـينـی تـه وویـل تـول مـی واوريدل. زمانه دی د کرکی سبب دا دی چی ته له هغه جاهل سره مینه لری، خو ته به دی خپله پريکړه بدلوی، ته به پردی مجبوريږی چی زما په پښو کی سر کيږدی.
صفيي قاسم ته په سپك نظر وکتل ویی ویل : زه به مرګ غوره وبولم، او زه پر دی ويلو نه شرميږم چی زه له هغه سره مينه لرم، ما چی کاکا، کاکا ناويی او سکينی ته څه ويلی دی تولی دنيا ته یی ويلی شم، ته هغه ته تر تولو درنه د مرګ سزا ورکولی شی، خو ماته به د دی مانۍ نه د هغه د قبر خاوره ګرانه وی. ته له مانه هر څه اخستی شی خو د هغه مينه نشی رانه اخستی!
: تاته به د هغه د قبر خاوره ګرانه وی خو زه په باور درته وايم چی د هغه به قبر هم نصيب کی نه وی.
: زه د دی پروا نه لرم، زه به هغه هر ځای وليدای شم، د سيند په هغو څپو

کی، د سپوږمۍ په رڼا کې، د ستوریو په ځلکا کې، هغه به هر وخت له ماسره وي. زه به په ګلانو کې د هغه موسکا وینم، د شمال په غږ کې به يې غږ اورم، ته هغه له مانه اخستی شی خو بېلولی يې نشی.

: نو د دی مطلب دا دی چی ستا د مینی په اړه ددی پروا نه شته چی هغه ژوندی وی که مړ، ستا د هغه د ژوند له لوړو ارمانونو سره هیڅ نشته؟

: ته د هغو اوچتو ارمانونو نه څه خبر يې، په یوه خبر نه وياله کی رالوی شوی چینجی د آسمان له لوړو سره د خبری کوونکی عقاب په خيالونو کله پوهيدای شی.

: نو ته دا خوښوی چی ستا د شاهين وزرونه پوازی ستا په خاطر غوڅ کړای شی؟ که ته دا غواړی چی هغه د خپل لوړ ارمان لپاره ژوندی پاتی شی نو ته هغه د مرګ له خولی ژغورلی شی، خو ته به یوه وړوکی قربانی ورکوی.

: زه د دی لپاره ډیری لویی قربانی ورکولو ته چمتو يمه.

: خو ښه فکر وکړه ستا د ده له ذات سره مینه ده، د هغه د ارمان لپاره به تاته قربانی آسانه وی، ته به د خپلی مینی قربانی ورکوی، ووايه د دی لپاره تیاره يی؟

وايه! ولی چوپه يی...! زه نن ستا د ازمویښت لپاره راغلی یم، غوږونه دی ښه خلاص کړه، واوره! د هغه د وژلو پریکړه شویده، خو ستا یوه وعده د هغه ژوند ژغورلی شی، زه هغه ته له زندان نه د تښتیدو موقع برابرولای شم، دی ترکستان او یا بل هیواد ته تلاشی او د خپلو لوړو ارمانونو لپاره ژوندی پاتی کیدای شی.

صفیه لږ نرمه شوه وېی پوښتل:

ددی په بدل کی له مانه څه وعده غواړی؟

: ته به له ما سره د واده وعده کوی.

دواړو لږ څنډ یو بل ته وکتل، د صفيی په غوږونو کی د طاهر دا خبری کړنګیدلی: ته په یوه شانداره ماڼۍ کی اوسی هم خپله ساه بنده ګنی، خو په ترکستان کی ستا په زرګونو داسی خويندی دی چی تر دی آسمان لاندی د سرپټولو ځای نه لری اوس تر تا زیاتی هغوی زما د پاملرنی حقداری دی، د مسلمانانو هغه بد نصیبه لورانی په عراق، مصر او د عربو نورو په امن ښارونو کی اوسیدونکو خويندو ته په چیغو چیغو وايی چی که ستاسو ورونه، میړونه او دوستان زموږ مرستی ته را رسیدای شی نو د خدای «ج» لپاره يی لاره مه

بندوي.

د هغه سیند وړي په څېر چې د ځنډي څو بوتي يې لاس ته ورغلي وي صفيي يوه ژوره ساه واخسته او ويې ويل : زه ... زه وعده كوم، خو زما ستا پر خبرو باور نشته، له زندان نه را خلاصول ستا د وس خبره نه ده.

قاسم اميدوار شو ويې ويل : ته داډه اوسه هغه به ډېر زر خلاص شي.

صفيه سر تر پايه عذر او هيله شوه ويې ويل : قاسمه زما سره چل مه كوه، اسلامي نړۍ هغه ته اړتيا لري، كه ته مانشې بخښلی نو په خپلو لاسو مې زندې كړه، په دنيا كې زما وجود اونه وجود برابر دي، خو د هغه مرګ ښايي د سلګونو انسانانو مرګ وي.

قاسم ځواب وركړ : ته به ډېر زر واورې چې هغه خوارزم ته ورسيد، راځه چې ښكته شو.

صفيه له هغه سره روانه شوه.

دا چې كوټې ته ورننوته سكينې ورته وويل : چېرته وركه وې دوډۍ سړه شوه.

دا د ځواب وركولو نه پرته پر بستره وغځېده او په بالښت يې مخ پټ كړ په سلګيو شوه.

سكينې راجګه كړه او ورته ويې ويل : صفيې، صفيې! په تا څه وشول، وٙايه، د خداى «ج» لپاره ووايه!؟ خو صفيې د هغې لاس وښانده ويې ويل : سكينې ولاړه شه، ما يوازې پرېږده.

* * * * *

(٤)

ماښام مهال د بندي خانې په انګړ كې دننه د بنديخانې د ساتونكې د كور په يوه كوټه كې مهلب، د ښار ناظم او د زندان مسئول ناست وو، د ښار ناظم له مهلب نه وپوښتل :

كه نن هم هغه ډوډۍ ونه خوري نو؟

: نو سبا ته به يې خامخا وخوري.

د زندان مسئول وويل : زما په نظر خو وحيد الدين هم لږ خطرناك دى، زه وېرېږم چې كله هغه زموږ پر ورميږونو توره ثابت نه شي، ځكه خو زه غواړم چې هغه هم د زندان له ژونده خلاص كړاى شي.

مهلب وويل : د هغه په باب به وروسته ګورو.

یو سپاهی دننه ور ننوت او مهلب ته یی وویل چی قاسم له تا سره لیدل غواړی.
مهلب حیران شو ویی ویل : قاسم! رایی وله.
قاسم چی راغی په شا کی لهجه یی وویل چی له خُندہ یی لتهوی، مهلب تری وپوښتل: تاته چا وویل چی زه دلته راغلی یم؟
: ماته ستا له کوره معلومه شوه چی د ناظم سره راغلی یی، د ناظم له کوره د دی ځای درك را معلوم شو، زه یوازی له تا سره دوی خبری لرم.
مهلب ناظم او د زندان مسئول ته اشاره وکړه، هغوی دواړه جګ شول او بلی کوټی ته ولاړل، قاسم په یوه کرسۍ کښیناست مهلب تری وپوښتل : ته اندیښمن معلومیږی روایه خیریت خو به وی؟
: زه له تانه یوه پوښتنه کوم.
: وپوښته.
: د پلار جان له خولی راته معلومه شوه چی ته طاهر ته د تښتیدو موقع ورکوی؟
: دا سهی ده خو ته دا خبره چاته مه کوه.
: زه د یوه دوست په حیث پوښتم چی آیا ته ریښتیا داسی کوی؟
: دا بلکل سهی ده، خو که ستا دا خبره خوښه نه وی نو پریکړه بدلیدای شی.
قاسم ځواب ورکړ : نه، نه بلکی زه غواړم چی دا پریکړه بدله نه کړای شی.
مهلب وموسکل ویی ویل : ولی ته په خپل ضمیر څه بار احساسوی؟
قاسم وخندل ویی ویل : زما سره د بوج احساسولو ضمیر نشته.
: زه د داسی ضمیر له ستاینی نشم تیریدای، خو ماته روایه چی ته داسی خطرناك سړی ولی آزادول غواړی؟ که هغه خلاص شی هم زما او ستا دښمن به وی.
: نو ددی مطلب دا دی چی ته هغه..؟
: ته ویریږه مه، که ستا دا خوښه وی چی هغه دی ژوندی وتښتی نو زه د خپلی خوښی پر خلاف هغه ته د تیښتی موقع برابروم.
قاسم وویل : زه تاته یو بل زحمت درکوم.
: که زه د خپل دوست لپاره څه وکولی شم نو پری آرام به شم.
: زما کومه خبره له تانه پټه نه ده، ته پوهیږی چی زما له صفیی سره واده

کیدونکی دی، طاهر موږ د هغی په مخکی ونیو، د هغی له طاهر سره یوازی پر دی مینه وه چی هغه د اسلام یو لوی خدمتګار دی، اوس هغه پر ما بدګومانه ده، که ته زما مرسته وکړی نو دی ته دا باور ورکولی شو چی د طاهر په خلاصیدو کی زما ډیر لاس ؤ، او تا زما د دوستی په سبب خلیفه ته دا وراندیز کړی ؤ، ښایی د هغی زما پر خبره باور راشی.

مهلب وویل : همدومره خبره! ما دا ګڼله چی ته به ماته د یوه لوی کار کولو وایی، سبا سهار به دا زما لومړنی کار وی خو دا به غوره وی چی له دی سره د مخامخ خبرو پرځای زه له تاسره داسی ځای خبری وکړم چی دا یی واوریدای شی.

قاسم ځواب ورکړ : ددی بندوبست به وکړای شی.

هغی ته یوازی دا باید معلومه شی چی زه له تا سره خبری کوم، دا به یی خامخا د اوریدو لپاره راشی.

مهلب وخندل ویی ویل : په راتلونکی سیاسی ژوند کی به تاته داسی هوښیاره میرمن ډیره ښه مرستندویه وی، زه ستا پر سر د پوځ د سر مشر پتکی وینم.

: مننه، او ستا په اړه زما زړه شاهدی وایی چی زما د پلار نه وروسته به د عظمیٰ صدارت منصب ستا په لاس کی وی.

: خو زما ستا په اړه اندیښنه ده چی په یوه مهال به د دوارو منصبونو چلولو هڅه وکړی!

: او د تا په باب زما اندیښنه ده چی د خلیفه نه به د تاج د اخستلو له هڅو هم دریغ ونه کړی.

مهلب وخندل او بیا یی جدی وویل : خو ته پوهیږی چی زه خلیفه ته وفادار یم!

قاسم جګ شو ویی ویل :

ما توکی کولی، ښه ده زه نو ولاړم، تاسو سهار ته د راتلو وعده په یاد لری.

: زه به خامخا درشم.

# د تقدیر لاس

طاهر د ماښام له لمانځه وروسته لاس پورته کړل او دعایی کوله چی پهره دار راغی د ډوډۍلوښی یی کیښود او بیرته ولاړ، له تیرو دوو ورځو را په دیخوا د هغه صحت ښه نه و، ځکه خو یی د دعانه وروسته هم ډوډی ته پام ونه کړ، لږ څنډ په کوټه کی له قدم وهلو وروسته یی دیوال ته تکیه وکړه او کښیناست، بیا یی څه فکر وکړ جگ شو او د کوټې بلې خواته یې پر وحید الدین ورغږ کړ:

نن ته نه راځې؟

هغه ځواب ورکړ : اوس درځم.

طاهر لږ څنډ د هغه په انتظار قدم وواهه، بیا د ماسخوتن په لمانځه ودرید، وحید الدین چی د ده کوټې ته ورغی پوښتنه یی وکړه:

اوس څنگه یی؟

د طاهر ځواب یی چی وانه ورید ورنژدی شو او ویی ویل :

ته لمونځ ادا کوی!

هغه لږ څنډ ورسره ناست ؤ بیا یی ناڅاپه وویل:

ستا په کوټه کی د پنیر بوی دی.

طاهر د سنتو د ادا کولو نه وروسته هغه ته وکتل، وحید الدین بیا په زوره پزه کش کړه ویی ویل : زه حیران یم چی نن د پنیر بوی راباندی لگیږی.

طاهر ځواب ورکړ : زما د بویولو حس تن کار نه کوی، د دروازی سره زما خوراك دی که پنیر پکی وی خوړلی یی شی.

وحید الدین بیا په زوره زوره د پزی کشولو سره وویل:

غوښه هم شته، زه چی له کومی ورځی راهیسی دلته راغلی یم ظالمانو یوازی په دواړو اخترونو کی غوښه رالیږلی وه، د پنیر خو می تر اوسه کله تصور هم نه دی کړی، زما پر خبره باور وکړه په پهره دارانو کی خامخا ستا کوم خواخوږی شته، زه د غوښی او پنیر هیله نه لرم خو په داسی وختونو کی دوستان یادول ضروری دی.

اوف ته لا لمونځ کوی!

طاهر سلام وګرځاوه : او ویی ویل : ته هغه خواړه ولی نه را اخلی! که پنیر پکی وی ټول یی ستا، که غوښه وی نیمایی یی ته وخوره او که سره ډوډی وی نو ټوله به ته خوری.

: په خدای «ج» سوګند ماته می د بوبولو حس دوکه نه راکوی، دایی وویل او لوښی یی راواخست او طاهر ته نژدی کښیناست:

خدای «ج» دی ستا خواخوږی ته خیر ورکړی، غوښه هم شته او پنیر هم، او ډوډی هم غوړه ده.

طاهر وویل : زما انتظار مه کوه، زه چی لمونځ بشپړ کړم بیا به درشریك شم.

: سهی ده په داده زړه دی لمونځ کوه، ډوډی‌زموږ له ضرورت نه زیاته ده.

زه یی له پنیر نه پیلوم خو ستا برخه به پریږدم، هغه ږمږی ژووله او له ځان سره یی ویل:

دا به د کوم سخی سړی کار وی، په خدای «ج» سوګند که زه له بنده خلاص شوم او صدر اعظم شم د بغداد ټول سخیان به د بندیخانی ساتونکی کړم، او دا امر به ورته کوم چی بی ګناه بندیانو ته دوه وخته غوښی او پنیر ورکوی. نه، بلکی شیدی، شات او میوه هم، زه به د سرکاری باغونو ټولی میوی د بندیانو لپاره وقف کړم.

طاهر لمونځ پای ته ورساوه او د دعا لپاره یی لاس اوچت کړل چی د وحید الدین د زامو غږ ډیر پری بد ولګید ناڅاپه دا غږ بیا چوپ شو او څو شیبی وروسته هغه په زحمت وویل : طاهره! ډوډی ته لاس ورنه وړی زهر پکی دی، زهر!

طاهر وارخطا شو ورته ویی کتل، هغه پر ځمکه ولویده او په ترپکو ییٔ پیل وکړ ویی ویل : دوسته خدای «ج» پامان! وحید الدین احساس کړه چی څوك یی په مضبوطو لاسونو مری ورخپه کوی.

څو ځلی له اړخ په اړخ اوښتو وروسته هغه لاسونه پر غولی تکیه کړل او سر یی اوچت کړ او بیا یی په زوره په ځمکه وواهه، طاهر د هغه متی ونیوی او سر یی په خپله غیږه کی ونیو، ناڅاپه یی د وجود ټول رګونه ساړه شول او هغه د څو سلګیو نه وروسته ساه ورکړه.

طاهر هغه سړی ته ورته ؤ چی ناڅاپه د فلج حمله پری وشی، هغه په خپل ژوند

کی دومره نه ؤ ویریدلی، څو شیبې یې د وحید الدین سر په غیږ کې ؤ او بې حرکته ناست ؤ، ورو ورو یې د زړه ټکانونه بیرته پرځای شول.

له ویرې دریدلې سترګې یې وخوځیدې یوه او بله خوا یې وکتل په لاسو کې یې حرکت پیدا شو وحید الدین یې وخوځاوه او غږ یې پرې کاوه، بیا یې په زړه کې وویل :

ته مړ شوی یې، دا دودی ستا لپاره راغلې وه او اوس؟

یو خیال یې د برېښنا په څیر په ذهن کې ور وګرځید او له دې سره یې ساه ګړندۍ شوه، زړه یې په درزا شو، په غوږونو کې یې کړنګهار شو.

لاس او پښې یې ورپسې مړه شول، له دروازې نه بهر یې په زینو کې د خلکو د پښو غږ واورید او د سترګو په رپ کې د ده ټول حواس بیرته را پرځای شول.

د وحید الدین مړی یې په اوږه کړله همغه سورۍ ته یې ور ننه ویست او د پاسه یې تختې پرې کښېښوودې، د پښو غږونه نور هم رانږدې شول، هغه زر د خوراك د لوښو ترڅنګ پرمخې پریوت، خلك د دروازې سره ودریدل او لږ څنډ یې خبرې سره کولې، بیا چا په زوره دروازه وټکوله او بیا په کولپ کې کلي وګرځیده او د دروازې د زنځیر د خلاصیدو غږ اوچت شو، د دروازې د خلاصیدو او د غږ له اوریدو سره طاهر سترګې پټې کړې او ساه یې ونیوه.

مهلب، د زندان څارونکی او د ښار ناظم د پنځو تنو سپاهیانو سره دننه ورغلل د یوه سپاهي په لاس کې مشال ؤ.

د طاهر پر بدن د یوی لغتې له ګوزار نه وروسته مهلب وویل : ودې لیدل! تا ویل چې لږ نور انتظار هم وکړی، د دې زهرو یو څاڅکی د یوه پیل د وژلو لپاره بس دی، لږ مشال راتیټ کړه، زه وګورم چې ده څه شی خوړلی دی. سپاهي مشال تیټ کړ او مهلب وویل : وګوری! ما درته ویل چې دغه وحشي به لومړی پنیر خوري، له نیمایي نه زیات یې خوړلی دی، داسې معلومیږي چې له ژوولو پرته یې تیر کړی دی، د دې یوه نمړی هم بس وه دا نور پنیر درسره واخله سبا ته به د وحید الدین میلمستیا وی، راځئ چې زما دلته نفس ایساریږي نور کار سنبالول د سپاهیانو کار دی، ګوری له مړی سره دبرې خامخا وتړی خو دومره درنې نه وی چې ځای پر ځای دوب شي. او سبا ته یې کب نیوونکي راوباسي، داسې دبرې ورسره وتړی چې مړی یوازې د اوبو پر سر معلوم نه شي خو اوبه یې ورسره یوسي.

د زندان مسوول وویل : ته غم مه کوه، دوی د دې په څیر په لسګونو مړی

خوندي کړي دي دا زما خاص کسان دي.

مهلب څو د سرو زرو سکې را وایستلې پر سپاهیانو یې وویشلې او ویې ویل : دا ستاسو بخشش دي.

مهلب، د ښار ناظم او د زندان څارونکي ولاړل، سپاهیانو طاهر راکش کړ بهر ته یې راویوست او پر اوږه یې واړاوه روان شول، د سیند غاړي ته چې ورسیدل دې یې کښتۍ ته ور وغورځاوه، د طاهر ملا کلکه ولګیده خوله خولې یې غږ ونه خوت. دري تنه سپاهیان بیرته روان شول او دوو تنو یې کښتۍ اوبو ته ورتیل وهله او پکې سپاره شول.

یو سپاهي وویل : ته د ده پر ملا ډبره وتړه زه به پارو وهم.

دوهم یې ځواب ورکړ : ته ټول بد کارونه پر ما کوې.

اوس له ده سره نور څه بد کیدای شي، نن ته دا کار وکړه سبا ته به یې زه وکړم.

سبا ته به هم موږ دوه دوه اشرفۍ اخلو، خدای (ج) د وکړي چې د بهرنیو چارو وزیر پر څو نورو کسانو هم خپل زهر وازمویي خو آشنا! په دې کار چې وزیر د ښار ناظم او د زندان څارونکي څومره شي ترلاسه کوي د هغو زرمه برخه هم موږ ته نه راکوي.

پر کښتۍ ټول ضروري شیان موجود وو، یوه سپاهي د طاهر تر ملا رسۍ راتاو کړه او یوه ډبره یې پرې وتړله، یوه ګرداب ته چې ورسیدل دواړو طاهر له لاسو او پښو ونیو او ورو یې په اوبو کې ورغورځاوه طاهر تر لږ ځنډه ساه نیولې وه او د اوبو څپو ورسره یووړ بالاخره یې د اوبو سرته د راپورته کیدو هڅه وکړه، ډبره یې پر ملا پخوا هم مضبوطه‌تړلې وه چې د لمدیدو سره درسې غوټې نوري هم کلکې شوې، بیا هم هغه احساس کړه چې دې د ډبرې وزن ورسره اخستې او لامبو وهلې شي ترڅو کښتۍ ښه لرې نه وه تللې تر هغو یې یوازې د ساه ایستلو لپاره سر له اوبو راوایست، هغه څو ځلې د ملا د بار نه د ځان خلاصولو هڅه وکړه خو د بړې پرځای یې څو غوټې وخوړې، له جامو سره یوځای په اوبو کې لامبو ورته ګرانه وه او دایې احساس کړه چې له دې سره تر ځنډې په لامبو ځان رسول آسانه نه دی، د ده مخه د سیند بله غاړه وه خو د اوبو د توندۍ له امله به چې یو ګز ځنډې ته نژدې کیده نو څو ګزه به ښکته اوبو ورسره یووړ، ساه یې سوځیده، او غړي یې ورو ورو شلیدل، خو د تقدیر پر مرسته د ده نه لړزیدونکي باور د ده حوصلې

ماتولو ته نه پرېښوده.

* * * * *

(۲)

د شپې مهال له ویده کیدونه دمخه سکینه لږ څنډ له صفیې سره کښیناسته له یوې او بلې خوا یې خبرې کولې، صفیې به په بې پروایی کله کله ځواب ورکړ او بیا به چوپه شوه.

صفیې سکینې ته وویل : ولاړه شه او بیا پر بستره وغځیده.

سکینه جګه شوه او ورو ورو بلې کوټې ته روانه شوه، پر ده یې جګه کړه او بیا یې څه فکر وکړ او صفیې ته یې راوکتل ویې ویل :

صفیې ! زه غواړم څه شی دروښیم.

: څه شی؟

: اوس یې راوړم.

سکینې له خپلې کوټې نه د نقرې یو وړوکی ډبلی راوړ او چوکۍ یې راکش کړه د صفیې د بسترې ترڅنګ کښیناسته.

سکینې په معصومیت وویل : په دې کې څه شی دی؟

: ماته څه معلوم دی!

: ته خو یې یو ځل وګوره! سکینې ډبلی خلاص کړ او صفیې ته یې ور وړاندې کړ.

صفیې په بې پروایی سر راپورته کړ یو نظر یې پرې واچاوه او بیرته یې سر پر بالښت کښیښود.

سکینې له ډبلې نه ځلیدونکې امیل راوېوست هغې ته یې وروښود او ویې ویل : واخله! دا مې نن درته راغوښتی دی، غوښتل مې د واده په ورځ یې په تحفه کې درکړم خو زه تر هغې انتظار نه شم کولی، ته یې له ځانه سره وساته، زرګر ویل چې تر دې لوی غمی په ټول بغداد کې نشته، ما له هغه نه د یوه غمي ګوته هم غوښتې ده هغه ویل چې په بغداد کې به داسې غمی له چا سره نه وي. واخله صفیې دا امیل راته واغونده او ویې ګوره!

صفیې بې حسه او چوپه خوله امیل ته کتل سکینې هغه تر مټ ونیوله او راپورته یې کړه او د هغې د تینګار سره سره یې امیل په غاړه کې ور واچاوه.

صفیې د امیل د لړۍ کولو هڅه کوله، او سکینې هغه منعه کوله.

په دی کشمکش کی پرهار د دواړو لاسونه کلك شول،
سکینی وویل : د خدای «ج» لپاره دا امیل مه لری کوه دا بد شگون دی.
: نه زما ستا له امیل او ستا له غمیو نه کرکه ده، زما له دی ماڼی نه کرکه ده، زما له خپل ژوند نه کرکه ده، سکینې، سکینې! ما مه خوروه!
په دی جنجال کی امیل وشلیده، غمی څه پر بستره او څه پر غولی تیت شول،
د سکینی په سترگو کې اوښکې ډنډ شوې وی ویل :
ته ډیره ظالمه یی!
صفیه لږ نرمه شوه وی ویل : سکینې ما وبخښه، زه به سهار دغه غمی پخپله وپیم او په غاړه کې به یی واچوم، خو یوازی ستا لپاره د بل چا لپاره نه.
مگر تا له قاسم سره د واده وعده نه ده کړی؟ تا د دودیز خوړلو په وخت کی مورجانی ته خپله رضا ځرگنده نه کړه؟ زه پوهیږم ته یوازی ما ژړوی.
:سکینی زما مطلب دا ؤ چی که ژوندی پاتی شوم له قاسم سره به واده کوم.
: لیونی، خلك په مرگ کله واده کوی.
: خو سکینې که دواده نه وړاندې زه مړه شوم نو؟
: جوته خبری مه کوه ته به تر اتیا کلنی ژوندی وی.
سکینی غمی راټول کړل په ډبلی کی یی واچول ویی ویل : زه به یی سهار پخپله وپیم او بیا به یی ستا په غاړه کی واچوم، د قاسم، پلار او مورجانی په مخکی نه بلکی د ټولو سهیلیو په مخکی!
سکینه خپلی کوټی ته ولاړه او ویده شوه، صفیه تر څه ځنډه پرته وه چت ته یی کتل، بیا یی کتاب راواخست او د لوستلو هڅه یی وکړه خو د څو پاڼو له اړولو وروسته یی کتاب بیرته کیښود، شمعه یی مړه کړه او د ویده کیدو هڅه یی وکړه، خو خوب ورنه غی، څو ځلی په یوه او بل لټ له اوښتو وروسته جگه شوه او په کوټه کی یی قدم واهه، په قدم وهلو کی بیا پر کرسۍ کیناسته او بیا یی دروازه خلاصه کړه او ورو ورو بهر ته ولاړه، د برنډو نه تیره شوه او د ماڼۍ بلې څنډې د سیند غاړی ته ورسیده، په لاره یی پام شو چی پښی لوڅی ده خو بیا یی پروا ونه کړه.
لږ ځنډ د کونج د کوټی په مخه کی په جگه چوتره ودریده او د سپوږمۍ په رڼا کی یی د سیند ننداره وکړه، بیا یی ورو ورو پر زینو پښی کیښودی لاندی ښکته شوه او په وروستی پایه چی د اوبو له مخ نه یو بالښت لوړه وه کښیناسته.

قاسم نن دا زيري پرې کړې ژ چې طاهر به نن شپه خلاص شي. او سبا به د خلاصيدو سره له بغدا نه ووزي، هغه چې څومره د ده په خلاصيدو خوښه وه، همدومره پر دې خبره خفه وه چې نور ژوند به تول دې ته بغداد يو ويده ښار ښکاري، د دې د ژوند موسکا گانې به د تل لپاره ترې واخستل شي کاشکې هغه له خلاصيدو وروسته همدلته اوسيدلاى شواى کاشکې... دا له هغه سره تلاى شواى، څو گامه وړاندې يوه کب توپ وواهه او بيرته په اوبو کې ورك شو، صفيې په زړه کې وويل : زما او د دې ماهي هيڅ توپير نشته، هغه آسمان يو سمندر گڼي او په يوه توپ ځان ور رسول غواړي، خپل وړوکې وړوکې پرونه چې گوري دا يې په خيال کې ور تيرېږي چې ښايي زه الوتلى هم شم، خو دې د اوبو له مخې نه لږ جگ سم ليداى هم نشي.

هغه ته دا معلومه نه ده چې د ده پرونه يوازې د لامبو لپاره دي د الوتلو لپاره نه دي، دې په اوبو کې غوټه وهلى شي او تر لاندې ختو پورې تلاى شي، خو په شنه آسمان کې الوتلى نشي.

صفيې دا مانۍ‌ستا لپاره يو زندان دى، تا ددې په دريدليـو او بوينـو اوبو باندې د لامبو په وخت کې په آسمان کې يو آزاد مرغه په الوتلو وليد، تاله اوبو نه توپ واهه او د هغه ملگرې دې زړه غوښته خو د الوتلو لپاره دې وزرونه نه وو، ستا ملگرې له آسمان سره راز او نياز کوونکې شاهينان نه بلکې، په دې بدبويه اوبو کې پالل شوې کيشپان دي، تا په دې ډنډ کې د پيدا کيدو سره سره ښايې له هغه شاهين سره ملگرې کړې واى، خو ښکاريانو هغه راونيو او په کپس کې يې بندې کړ، او يو کشپ راغې تاته يې وويل چې که ته په دې بدبويه ډنډ کې له ماسره اوسيږې نو دغه شاهين به له کپس نه خوشې کړم، تا د شاهين د خلاصولو لپاره دا وعده وکړه، تا ډير ښه وکړل، خو ايا ته به په دې ختو کې له دې کرکجن کشپ سره ژوند وکړاى شې؟ تا يوازې مرگ له دې کشمکش نه ژغورلى شي، ځان وژنه، نه نه، دا ډيره بې غيرتي ده.. دا د خداى «ج» له رحمت نه انکار دى، دا د انسانيت سپکاوى دى، د هغې په سترگو کې اوښکې ډنډ شوې اسمان ته يې وکتل او لاس يې پورته کړل ويې ويل :

زما پالونکيه ! همت راکړه، ماته صبر راکړه، يوه بې وسه ښځه چې په دنيا يې هيڅوك هم نشته نن ستا د رحمت تکيه غواړي.

*****

(۳)

دی د جګیدو اراده وکړه چې په اوبو کې یې ځان ته نژدې څه شور واورید، ټکان یې وخوړ یوې او بلې خواته یې وکتل، زینو ته څوګامه نژدې چا په اوبو کې ورو ورو لاس او پښې وهل له ویرې یې زړه په درزا شو، څو زینې پورته وختله او ودریده، یو سړی یې ولید چې په اوبو کې یې غوټې خوړلې او هغه د راوتلو هڅه کوله صفیې احساس کړه چې د هغه ځواك ختم شویدی څو ګزه لاندې وروستی پایې ته ورسید هغه دواړه متې وغځولې او سر یې پر پایه کیښود خو د هغه نور بدن په اوبو کې ؤ، یو ځل صفیې د تیښتې خیال وکړ خو بیا یې خواخوږي پر ویرې غلبه وکړه په ویره ویره لاندې ورغله په ویریدلی غږ یې پوښتنه وکړه : ته څوك یې؟

هغه هیڅ ونه خوځید، ساه یې تونده چلیده، صفیې نور جرئت وکړ ور وړاندې شوه او له هغه نه دوې پایې پاس ودریده او ویې ویل : زه له تا پوښتم څوك یې او اوس دلته د څه لپاره راغلی یې؟

هغه د یوې شیبې لپاره سر راپورته کړ یو ځل یې صفیې ته وکتل او بیرته یې سر ښکته واچاوه.

د یوې شیبې لپاره صفیه ځای پر ځای هکه پکه ودریده په خپ غږ یې وویل : طاهر... طاهره !! ته ...! په دې حالت!!

هغه بیا سر راپورته کړ ویې ویل : څوك یې صفیه...!؟ صفیه ور وړاندې شوه هغه یې تر متو ونیو او پورته یې کش کړ، طاهر پر زینو ورپورته شو او بیا پریوت، صفیې چې د هغه پر ملا ترلی ډبره ولیده ویې ویل : ظالمه، دوکه بازه، مکاره!

: څوك ؟ زه؟ طاهر لږ سر راپورته کړ ویې ویل.

: نه نه، زه د قاسم په باب وایم، هغه له بنده ستا د ژغورنې وعده کړې وه.

طاهر جګ شو سر یې په خپلو لاسونو کلك ونیو ویې ویل :-دا ستا مانۍ ده؟

: هوکې!

زه ډیر لرې راغلی یم، دې ډبرې زه بلې دنیا ته ورټیل وهلم، زما نه غلطي وشوه باید له هغو دوو کسانو سره مې په کښتۍ کې حساب خلاص کړی وای.

صفیې وویل : دلته خطر دی راځه له ما سره!

طاهر زنګیدلی له صفیې سره روان شو، دواړه د ځنګل نه څو ګامه لرې د یوې

گنې ونې لاندې ودرېدل.
صفیې پوښتنه وکړه : ته خو به تېږی نه یې؟
: نه خو له ستوماني نه بې سیکه یم، ما له زندان سره نژدې له هغې دبرې سره لامبو پیل کړه، تا دلته څه کول؟
هیڅ نه، راوړه زه دا دبره خلاصه کړم، له ژوندیو خلکو سره دبرې ترل او سیند ته یې غورځول له قاسم پرته څوك کولی شي؟
: ما قاسم نه دی لیدلی او په سیند کې د غورځوونکو دا گومان ؤ چې زه مړ یم.
: هغه څه وړ؟
: زه اوس درته وایم خو یوازې دومره راته ووایه چې د دې نوي زندان نه د وتلو لاره شته؟
: هلته وگوره کښتي ولاړې دي، ته کښتي چلولی شې که نه، که نه وي نو زه د مانۍ یو نوکر درسره استولی شم.
: نه زه کښتي چلولی شم، هغه ورځ خو به زما په څېر ستا هغه نوکر نیول شوی نه وي.
: نه هغه ما وتښتاوه، ستا د نورو دوستانو نه هم څوك ونه نیول شول، زما ویره وه چې ته به پر ما بدگومانه شوی وې، قاسم ستا د ځوروولو لپاره ماته هغه خبرې کولې، اصلاً خبره داسې وه چې قاسم هغه لیك له خدمتگارې نه اخستی او لوستی ؤ.
طاهر وویل : ستا د ځان سپینولو ضرورت نشته، زه قاسم ډېر ښه پېژنم، او ستا د داډ لپاره وایم چې زه تا د بغداد د ټولو ښځو نه زیاته د درناوي او عزت وړ گڼم.
ته زموږ له دې ملاقات نه چاته څه مه وایه، دښمن له نن نه وروسته داسې گڼلې چې زه مړ شوی یم.
امکان لري چې زه بیا بغداد ته راشم، ماته په بندي خانه کې هغوی زهر راکړل او زما د وژلو هڅه یې وکړه، خو زما پر ځای هغه دودۍ بل چا وخوړه، هغه زما د کوټې ترڅنگ په بله کوټه کې بندي ؤ، موږ د یوه تنگ سوري له لارې یو د بل کوټې ته تلای شوو، د شپې مهال هغه زما کوټې ته راغی، زما دودۍ ایښې وه هغې په زهرو ککړ پنیر وخوړ او مړ شو، ما هغه همغه سوري ته ور تېل واهه او

دپاسه می پری تختی کیښودی، بیا می ځان مړ وغورځاوه هغوی زه مړ وبللم او په سیند کی یی وغورځولم، ماته د زهرو راکولو په فریب کی د ښار ناظم، د زندان ځارونکی او مهلب بن داود شریك وو، د قاسم په باب زه خبر نه یم.

: داسی ناولی دسیسه د قاسم نه پرته امکان نه لری. له ماښام نه لږ وروسته هغه راته وویل چی مهلب او د ښار ناظم له ده سره ستا د خوشی کیدو وعده کړی ده، هغه ښایی تر اوسه بیرته نه وی راغلی.

طاهر وویل : زه په دی دسیسه کی د قاسم شریکیدل له اټکل نه لری نه بولم، اوس ستا په ذمه یو کار دی هغه دا چی ته له دی کیسو نه خپل کاکا خبر کړه.

: ستا مطلب دا دی چی زه هغه ته ستا په باب هم ووایم؟

: نه زما په اړه څه مه ورته وایه، هغه ته دومره ووایه چی د مهلب د زهرو په اثر پخوانی د بهرنیو چارو وزیر وحید الدین وژل شویدی او هغه چیرته غلی شوی نه ؤ پخپله مهلب بن داود بندی کړی ؤ.

چنگیز خان ته پیغام مهلب استولی ؤ، او د همدی خیانت د رسوا کیدو له ویری یی دوه بی گناه نور ووژل، د دی ثبوت دا دی چی د وحید الدین مړی په هغه سوری کی پروت دی خپل کاکا مجبور کړه چی سهار پخپله زندان ته ورشی او هغه کوټی وگوری، که نه نو سبا شپی ته به هغه هم زما په څیر په سیند کی وغورځوی. ستا کاکا به ستا پر دی خبرو له باور نه د مخه دا پوښتنه درنه کوی چی ته د دی پیښو نه څه وړ خبره شوی؟

ته د هغه په ځواب کی ویلی شی یوه سپاهی دغه پیښی زما یو دوست ته ویلی او هغه ستا نوکر سعید نیمه شپه تاته را استولی ؤ، زما باور دی چی هغه به بیا د دی پیښو د پلټنی پرځای نیغه د زندان لاره ونیسی.

صفیی وویل : زه به د دی بندوبست وکړم، زه به سهار وختی پر اس سپره شم او میدان ته به ووزم له هغه ځایه به زر بیرته راستنه شم او کاکا ته به دا ټول حال ووایم چی ماته همدا اوس یوه ناپیژندوی دا حال ووایه او له ما نه یی وغوښتل چی زه زر تر زره تا خبر کړم.

: له دی وروسته زما باور دی چی د خلیفه د ملاتړ سره سره به مهلب ته په بغداد کی اوسیدل ناممکن شی، ته دی کاکا ته مشوره ورکړه چی د ښار ناظم او د زندان ځارونکی ته اخطار ورکړی هغوی به سمدستی د اصلی مجرم پرښودلو مجبور شی، خو له هر څه وړاندی دی د وحید الدین مړی خامخا راوباسی، زه اوس

ځم، ښایي سبا شپې ته ترکستان ته روان شم، تا د هغو ځایونو په باب څه خبر اوریدلي دي؟

: هو ډېر بد خبرونه، مغلو د بخارا او سمرقند نه پرته د شمال ډېر نور ښارونه نیولي دي. اوس یې پوځونه د جنوب او ختیځ په لوري پرمختګ کوي.

: د بلخ په اړه دې څه اوریدلي؟

: پر بلخ حمله کېدونکې ده.

: ډېر ښه زه ځم.

: صفیې د هغې لاره ونیوه ویې ویل : ما یو ځل رد کړې غوښتنه بیا تکراروله، نه غوښتل خو د ژوندي انسان لاس د امید له لمنې نه نه جدا کیږي، زه دلته پاتې کیدل نه غواړم ، ما له دې ځایه درسره بوزه، که مې له ځانه سره نه بیا یې مدینې ته مې درسره بوزه، هلته به ستا انتظار کوم.

: نه نه، دا خبره مه راپلټه!

: مګر ولې؟ ته ما دومره د کرکې وړ ولې بولې؟

: زه تا د کرکې وړ نه ګڼم خو ویریږم چې په خپل نظر کې ځان د کرکې وړ نه کړم.

صفیې څه ویل غوښتل خو دوه پهره داران په خبرو کې له برنډې راووتل او په چوتره ودریدل.

یوه یې ویل : قاسم د شپې په کښتۍ کې بلې غاړې ته تللی تر اوسه بیرته نه دی راستون شوی.

دوهم وویل : وروره د واده تیاری نیسي د کوم زرګر دوکان ته به تللی وي.

: د چا واده؟

د قاسم!

: له چا سره؟

: پر دې خو زموږ د طبیلې پاکوونکې هم پوهیږي، له صفیې سره!

: دروغ! پر صفیه خو د دې کور شاپرک «خفاشان» هم خبر دي چې د هغې د زړه‌بدو له ورځې له قاسم نه کرکه کیږي.

: راځه شرط تړو!

: تا مخکې هم له ماسره څو شرطونه بایللي دي، لومړی د تیر شرط څلور دیناره راکړه، بیا نوی شرط تړو.

: هغه به سهار درکړم، خو مزه به هغه وخت وي چې ته له ماسره په شل ديناره شرط وتړي.
: بس سهي ده!
: مگر داسې نه، راځه د صادق په مخکې دواړه سوگند کوو.
: راځه!
سپاهيان ولاړل او طاهر ورو وويل : ايا دا رښتيا ده؟
: هوکې ! قاسم د دې شرط په بدل کې ستا د خوشې کولو ذمه واري اخستې وه چې زه ورسره د واده وعده وکړم او ما ستا لپاره دا وعده وکړه اوس د دې راز له افشا کيدو نه وروسته د دې وعدې پر پابندۍ مجبوره نه يم، خو پر دې سربيره که ته زما په سبب ځان ته په خپل نظر کم راځې نو ماته امر وکړه، په دې دنيا کې د ذلت هيڅ داسې کنده نه شته چې زه ستا په امر په پټو سترگو ځان ور ونه غورځولی شم، په دې ماڼۍ کې د اوسيدو لپاره زما په مخکې دوې لارې دي، له قاسم سره واده او بل په دې سيند کې ډوبيدل، که زما دا قرباني د اسلامي نړۍ بې کسه خويندو ته څه گټه رسولی شي نو زه ورته تياره يم، خو خدای «ج» زما گواه دی زه يوازې تا غواړم او تر څو چې ژوندۍ يم ستا سره به مې مينه وي، که دا گناه وي نو زه گنهگاره يم، که د دې گناه سزا مرگ وي نو د خدای «ج» په خاطر پخپلو لاسو مې مرۍ خپه کړه، ما له دې ډبرې سره وتړه او سيند ته مې وغورځوه، زه تا د ځان قاضي کوم، ستا نه د ځان په هکله فتوی غواړم، که ما په دې ختو او چټلۍ کې د پالل شويو چينجيو پرځای د خپلې د مينې لپاره د يو انسان موندلو گناه کړې وي نو ووايه زما سزا څه ده؟
تا ويل چې د ترکستان ميدان ډير خطرناك دی، خو کاشکې دا درته معلومه وای، چې کومه ښځه چې له چا سره يې زړه غواړي د غشو په باران کې هم ورسره خوښه وي، خو له هغه پرته به د سرو زرو محل هم ورته زندان ښکاري.
هغې ژړل،طاهر دا احساس کړه چې د نړۍ د تسخير ټول عناصر د دې ځلې په بدن کې راغونډ شويدي، هغه د لومړي ځل لپاره دې ښکلې مخ ته وکتل چې په زرگونو ډيوې پکې بلې وې، طاهر ځان راټينگ نکړای شو:
صفيې ! صفيې ! کاشکې ما ته مخکې معلومه وای، مجرمه ته نه زه يم. قراقرم ته له تلو نه مخکې ماته معلومه نه وه چې ته ما دومره د پاملرنې حقدار گڼې، خو په دې سفر کې... طاهر دومره وويل او چوپ شو.

صفیی لکه چی په ژورو اوبو کی ساه اخسته چی کله یی د طاهر له خولی خپل نوم واورید د امید خوشی کړی لمن یی بیرته راونیوله: ووایه په دی سفر کی څه وشول، ووایه؟

: ما له یوی نجلۍ سره د واده وعده کړی ده.

د طاهر دا گومان ؤ چی د دی خبری په اوریدو به هغه ده ته یو ځل په حقارت وگوری او په منډه به ولاړه شی، خو هغه ځای پر ځای ولاړه وه، د کرکی او نفرت پر ځای یی پر شونډو زړه وړونکی موسکا وه، د ترخې خبرې پر ځای یې په نرمه او خوږه لهجه وویل : نو تا له مانه کرکه نه کوله؟

: زه څه وړ له تا کرکه کولی شم؟

: هغه ښکلی ده؟

: هوکی!

: خامخا به تر ما ډیره زیاته ښایسته وی؟

: نه ماته معلومه نه ده.

که تا له هغی سره د واده وعده نه وای کړی هم زما زاری به دی نه وی منلی او له ځانه سره به د زما له بیولو نه انکار کاوه؟

: هوکی ! په اوسنیو حالاتو کی به خپلو ذمه واریو زه انکار ته مجبورولم، زه په دگر ستا د ساتنی پرځای د دی ښار او هیواد پر بریدونو پهره آسانه بولم.

: د هغی نوم څه دی؟

:ثریا.

: چیرته ده ؟

: په بلخ کی .

: که هغی ته څرگنده شی چی د دی په څیر په بغداد کی هم داسی یو څوك شته چی له تا سره مینه لری نو ایا دا به یی د ځان پر حق تیری وبولی؟

: نه هغه له حسد نه ډیره اوچته ده.

: یوه ښځه د بلی مجبوری ښی پیژنی، ته ورسره واده وکړه، زه به په دی تمه ژوندی وم چی یوه ورځ به له دی نه د مینی سوال وکړم او تاته به ځان ورسومه موږ به دواړه د ځان لپاره ستالمن پراخه ووینو، زه به د دی په نوکرۍ کی هم خوښه یم. ما یوازی دا معلومول چی ته خو به له مانه کرکه نه کوی، دا زما لپاره ډیر ستر انعام دی، یوه لویه تکیه ده، پر دی لویه تیره چی ودریږم زه له تولی نړی سره

مقابله کولی شم، زه به اوس کاکا، کاکاناوی او قاسم ته ځواب ورکولی شم زما له هیچا نه ویره نشته.

طاهر وویل : صفیی زه وعده کوم چی له ترکستان نه وزګار شم دلته به راځم، تر هغه وخته ښایی ستا د کاکا نظر هم زما په اړه اوښتی وی او زه به د یوه لوی انعام لپاره خپله لمن وغوړوم، زه داډ درکوم چی زما د مینی پر اسمان به تل دوه ستوری ځلیږی او زما په نظر کی به ستا او ثریا درجه یو شان وی.

: زه به ستا د لمنی ګرد واوسم او له تا سره به واوسم، په بلخ کی اوسیدونکی زما خور ته زما سلام وایه او هغی ته زما یوه ننبه ور وړه.

صفیی له ګوتی نه یوه ګوته راوویسته د طاهر په لاس کی یی ور کیښوده ویی وویل : زه به ستا سو دواړو انتظار کوم، که تاسو ځنډ وکړ نو ښایی تقدیر ما درولی، په نړۍ کی هیڅ داسی خلیج نشته چی د مینی په کښتۍ کې دې څوك تری پوری نشی وتلای.

په اوبو کی دوی د کښتی د پارو ګانو غږ واورید دواړو سیند ته وکتل صفیی وویل : لکه چی قاسم راغی؟

دواړه دونی دډته ودریدل، کښتۍ ځنډې ته ورسیده قاسم او دوه تنه نور تری کوز شول او مانی ته دننه ولاړل.

صفیی وویل : هغه ښایی ماته ستا د خلاصیدو خبر راوړی وی. اوس ورځه زه به تر هغی دلته ولاړه یم چی تر څو دا کښتی ښکاری، خو لږ ودریږه پهره دار راغی.

پهره داران راغلل او تر لږ ځنډه یی په چوتره خبری کولی او بیرته ولاړل، د دوی د خبرو موضوع تر اوسه پوری د قاسم اوصفیی د واده په اړه وه.

: آخر په قاسم کی څه کمزوری ده چی صفیه له هغه سره واده نه کوی؟ هغه ړوند دی، کوڼ دی، ګو ډ دی او یا ستا په څیر بی عقل دی؟

: بس هر څه چی دی زما باور دی چی صفیه له هغه سره واده نشی کولی، د پاچاهی کوم ولی عهد او شهزاده د هغی سره جوړیږی.

صفیی وویل : اوس ولاړ شه!

طاهر تیټ شو د یوی وړوکی کښتی پړی یی پرانست او پکی کیناست پاروګان یی ونیول او ویی ویل : صفیی خدای پامان! صفیی کښتی اوبو ته ورتیل وهله ویی ویل : خدای پامان!

تر هغو چې کښتې یې له نظره پناه کېدله دې له ځانه سره ویل خدای دې مل شه، خدای دې مل شه!

*****

(٤)

سهار وختې صدر اعظم د صفیې د تولو خبرو له اوریدو وروسته وویل : که دا خبره رښتیا شوه نو د یوې خبرې داډ درکوم او هغه دا چې زما د وریرې واده زما د ناوړه زوی سره نشي کیدای، زه پوهیدم چې طاهر یو مخلص ځوان دی، زه د ده د نیولو مخالف وم، ځکه مې ده او د ده ملګرو ته د تیښتې موقع ورکول غوښتل، ماته د ده ملګرو چې پیغام راکړ دا یې بل د اخلاص ثبوت دی که نه نو د وحید الدین نه وروسته ښایي په بې خبرۍ کې زما وار وای هغه بد معاش نن ماته وویل چې د خلیفه په امر زه نن طاهر ته د تیښتې موقع برابروم اوس ورځم!

صفیه خپلې کوټې ته ولاړه هلته قاسم له سکینې سره خبرې کولې، هغه چې صفیه ولیده ویې ویل : صفیې ما یو لوی خبر راوړی دی، مهلب همدا اوس ماته خبر راکړ چې طاهر له بندیخانې نه تښتیدلی دی، ما له هغه نه ټول تفصیل نه دی پوښتیدلی، ما تا ته خبر راوړ او دلته راغلم زه اوس هغه ته ورځم هغه د سیند سره په برنده کې ناست دی چې بیرته راستون شوم ټول احوال به درته ووایم.

سکینې وویل : له شاهي زندان نه د طاهر د تښتیدو داستان به ډیر په زړه پورې وي، راځه صفیې موږ به د کوټې د پردې ترشا کښینو او وابه یې ورو، څنګه قاسمه! موږ ته اجازه ده چې ستاسو خبرې واورو؟

: مګر په دې شرط چې تاسو څه واورئ چاته به نه وایئ، خبره داسې ده چې د هغه د تښتیدو په پېښه کې زما د څو ملګرو لاس دی.

: واه واه موږ څه ساده ګاني یو!

قاسم له کوټې نه ووت.

سکینې صفیې ته وویل : راځه صفیې! زما د هغه د تیښتې د کیسې له اوریدو سره مینه ده.

صفیې چې په څه پوهیدل غوښتل پرې پوهیدلې وه، خو بیا یې څه چرت وواهه او له سکینې سره تلو ته تیاره شوه، د سیند پر غاړه کوټې ته ورسیدې د دروازې د پردې ترشا ودریدې مهلب ویل:

اوس زه ویریږم چې که هغه چاته څه وویل زموږ خیر نشته.

قاسم وویل : نه، هغه ستا په څیر نیکی کوونکی ته دوکه نشی ورکولی.
مهلب وویل : د هغه نیکی کوونکی خوته یی، ما دا ټول ستا لپاره وکړل، او ما هغه ته وویل هم چی تاته مو د قاسم په سپارښتنه د تیښتی موقع درکړه.
: مگر هغه څه ډول وتښتید؟
: ایا هغه پنځه سوه دیناره چی تا ماته راکړی وو د بندیخانی د پنځو تنو پهره دارانو لپاره بس نه وو؟
قاسم وویل : تا هغه چیرته ورساوه؟
مهلب ځواب ورکړ : د بندیخانی نه بهر مو پریښود هغه به خامخا خپلو دوستانو ته ورغلی وی، زما امید دی چی زر تر زره به له بغداده ووزی، هغه له ماسره وعده کړی چی له یو دوو تنو ملگرو پرته به له چا سره نه گوری او د شپی به له بغداده ووزی.
نو د ذی مطلب دا دی چی موږ به نور د هغه په اړه څه نه اورو!
: زه افسوس کوم چی د حکومت ځینی امیران پری بدگومانه وو که نه هغه یو د کار زلمی دی په هر صورت هغه ستا په باب له بد نظر سره نه دی تللی.
د صفیی د زغم او صبر دیوالونه ونړیدل، پر مخ یی پرده راوغورځوله او د دروازی پرده یی پورته کړه برنډی ته ورغله ویی ویل : تاسو دواړه څوك غواړی تیر باسی، دا خبره اوس په نیمایی ښار کی مشهوره شوی ده چی کب نیوونکو له نیمی شپی نه وروسته له سیند نه یو مړی را ایستلی دی او هغه د طاهر مړی دی.
د قاسم او مهلب رنگونه تك سپین وتښتیدل، او په رډو رډو سترگو یی صفیی ته کتل. صفیی وویل : او کاکا جان د شپی په ورروستی برخه کی پخپله د پلټنی لپاره زندان ته ورغلی هلته یو بل مړی هم ؤ چی په خوله کی یی په زهرو ککړ پنیر ؤ، هغه د پخوانی وزیر خارجه وحید الدین مړی ؤ.
او پر دی پوهیږی چی کاکا ته د زندان څارونکی څه ویلی دی؟ د شپی د بغداد د یوه لوی غدار په حکم دوو تنو ته زهر ورکړل شول، یو هغه ؤ چی اوس تاسو د هغه په اړه خبری کولی چی مړی یی اوس هم د بغداد په کوم څلور لاری کی د ځدل فریادونه کوی، دوهم هغه چی د بندی توب نه یی یوازی ستا دوست او د هغه له څو تنو ملگرو پرته نور څوك خبر نه وو.
مهلب پاڅیدلو او ودرید، صفیی چیغی کړی:
ځمکه به تا غوندی بد چاری انسان ته ځای ورنکړی، په ښار کی ستا لټون

روان دي.

د دې ماڼۍ پر هرې دروازې پهره داران دریدلي دي، د بغدا د هر بچي ستا د بوټيو شکولوته تيار دي.

قاسم صفيه تر مټ ونيوله او ټکان يې ورکړ ويې ويل : صفيې ! دا ته څه وايې په هوش کې خبرې کوه.

: ما پرېږده! زما له تانه کرکه ده، ته بې غيرته او مکار يې.

قاسم په مخ پرڅپړ ووهله او په کشولو يې دننه بوتله، هغې چيغې کړې: بې غيرته سړي د ښځو له وهلو پرته نور څه کولی شې؟

سکينه ور وړاندې شوه ويې ويل : صفيې پر تا څه وشول؟ قاسمه پرېږده نن يې دماغ سم نه دی.

صفيه سره اوسپينه شوه ويې ويل : آخر د ده خور وختې!

ته هم مايوه څپړ ووهه!

سکينې وويل : صفيې د خدای «ج» لپاره لږ چوپه شه.

هغه عزتمن سړی به څه فکر کوي!

صفيې وويل : غل، ډاکو، قاتل! د خدای «ج» لپاره سپاهيان راوغواړې. کاکا جان په هغه پسې ګرځي، چې ونه تښتي!

قاسم هغه له کوټې نه وايستله او په کشولو يې د ماڼۍ بل کونج ته بوتله. صفيې چې خواجه سرا ، نوکران او مينځې وليدل چوپه شوه، او بيا يې په نرمۍ وويل :

ما پرېږده خپلې کوټې ته ځم، ما تاته د خپلو دروغو سزا درکوله خو د کاکا تر راتګه دې ملګرې ايسار کړه.

قاسم د انديښنې او پرېشانۍ په حالت کې د بخښنې او عذر مناسب الفاظ او ټکي لټول او د برنډې په لور ور روان ؤ خو هلته مهلب نه ؤ، يوه کنيزې د سيند د بلې غاړې په لوري ګرندۍ روانه وه او هغه پکې سپور ؤ.

ماسپښين مهال په ښار کې دا اعلان کيده چې هر چا د مهلب ځای معلوم کړ پنځه زره اشرفۍ به انعام ورکړل شي، مازديګر چې قاسم له خپل پلار سره له اوږده مجلس وروسته راووت نو څېره يې تروشه او خوږينه وه، اوسکينې صفيې ته ويل : تا واوريدل پلار جان قاسم ته وويل چې تر څو زه د بغداد صدر اعظم يم ته بايد دلته ونه اوسې هغه سبا ته مصر ته روانيږي، پلار جان د مصر پاچا ته ليکلي دي

چی هغه ته په پوځ کی کوم معمولی منصب ورکړی، خو چی کله یی غوسه سړه شوه راوبه یی غواړی.

سبا ته په ښار کی دا خبره مشهوره وه چی د شپی مهال زر تنه سپاره د مغلو پرخلاف په جګړه کی د خوارزم شاه د ملاتړ لپاره له بغداده ولاړل.

# د خوارزم زمری

جلال الدین د افغانستان له شمالی سرحد نه د مروی والی ته پیغام واستاوه چی لږ تر لږه څلور اونی له مروی نه دفاع وکړی، په دی موده کی به دی له بلخ، هرات او نوروښارونو څخه نوی پوځ راټول کړی او مرستی ته به یی ور ورسیږی.
د مروی روزل شوی منظم پوځ لږ ؤ خو د پناه اخستونکو په لکونو توری موجودی وی، هغوی ټولو تصمیم نیولی ؤ چی دلته به د بخارا، سمرقند او نورو ښارونو اشتباهات نه تکراروی، ښځو د غشیو ویشتلو تمرین کاوه، هلکانو د کورونو پر بامونو ډبری غونډولی، تر دی چی د مروی هر کور یو مورچل ؤ او د اولس دا باور و چی نه یوازی دا چی له ښار څخه به ساتنه کوی بلکی له مغلو نه به د تیرو ټولو ظلمونو بدل هم اخلی.
په جوماتونو کی د هر لمانځه نه وروسته خلکو ویناوی اوریدلی، او د مروی د ساتنی لپاره یی د وینو د وروستی څاڅکی تویولو پریکړی کولی.
یو سهار چی د ښار موذن خلك د لمانځه لپاره رابلل د مغلو بی شمیره لښکر د ښار د برجونو مخی ته راڅرګند شو، د سترګو په رپ کی غشی ویشتونکی د ښار د دیوالونو تر شا اوږه په اوږه ودریدل او هلته د ښځی ایښودلو ځای نه موندل کیده د مغلو د لښکر قومانده د چنګیز خان د کشر زوی تولای په غاړه وه، چنګیز خان ته تولای په زړورتیا او تر زړورتیا هم په چل او دوکه زیات ګران ؤ، د مروی د دیوالونو تر شا د خلکو بی دریغه راټولیدل د ده د پریشانی او اندیښنی لپاره بس وو.
تولای زړه نا زړه ولاړ ؤ د ښار څو تنه غداران چی د دوی د راتلو د خبر له اوریلو سره ورسره یوځای شوی وو دا خبر ورکړ چی د دیوالونو تر شا په مورچلو کی تر نارینه ؤ ښځی زیاتی دی، تولای چی دا واوریدل د یوی توپانی حملی امر یی وکړ خو د ښار د دیوالونو له شانه د غشو او ډبرو باران د مغلو غاښونه

وبریښول، د دیوال په بیخ کی په زرګونو تنه تاتاریان انبار شول، تولای چی دا حالت ولید پوځ ته یی د شاته کیدو حکم ورکړ او د ښار نه په یوه واټن کی یی واړول، تر پنځو ورځو پوری تولای ته د ښار د نیولو هیڅ تدبیر اغیزمن نه شو، د زور له استعمال نه چی مأیوس شو له معمول سره سم یی د چالاکی او فریب څخه کار واخست، او د ښار یو غدار یی والی ته وروواستاوه له هغه سره یی دلیدو هیله وکړه، او په پیغام کی یی دا هم ورته وویل چی موږ د والی نه د ځینو وعدو له اخستلو نه وروسته بیرته ستنیږو، خو باتدبیره خلك تولای ته د والی له ورتګ سره مخالف وو، خو والی هغوی وپوهول چی زه د هغه د مکر او فریب تر دام لاندی نه راځم، دوی به چی دیر څه وکړی نو ما به ووژنی، خو زما په نه راتګ به هغه خلك هم داده شي چی له مغلو سره د مقابلی پرځای د سولی هیله من دی، زه به دا هڅه وکړم چی تر څو د جلال الدین پوځ راځی له مغلو سره به د سولی خبرو اترو ته دوام ورکړو.

تولای د والی دیر تود هرکلی وکړ او هغه یی له ځان سره کښیناوه ویی ویل : زما په زړه کی د میړنیو لپاره عزت دی، سهار چی خبری اتری پیل شوی نو تولای وویل:

موږ یوازی دا وعده غواړو چی ستاسو پوځ به په موږپسی له شا څخه نه راځی، موږ بیرته شاتګ ته چمتو یو پردی سربیره دی وعدی ته هم چمتو یو چی که له جلال الدین سره زموږ اړیکی هر ډول وی موږ به پر «مرو» بیا یرغل نه کوو. د دی په بدل کی تاسو ته یو معمولی تاوان ادا کول په کار دی، والی په هره بیه د مهلت ترلاسه کول غوښتل هغه لږ سوچ وکړ او بیا یی وویل:

زموږ خزانه که څه هم تشه ده، بیا به هم د ښار له خلکو نه تاسو ته پوره مبلغ راټول کړم او دربه یی کړم.

: ستا دا پریکړه به د ښار ټولو خلکو ته د منلو وړ وی؟

: زه د ښار والی یم.

: دا سهی ده مګر ته تاوان یوازی پر خپله ذمه ولی اخلی ایا دا به غوره نه وی چی ته د ښار مخور او مشران دلته راوغواړی، که د هغوی په موجودیت کی تړون وشی د هغوی اعتراض به بیا نه وی، تاسو د هغوی په نامه یو مکتوب واستوی.

زما په ګومان به موږ دیر ژر یوی پریکړی ته ورسیږو.

والی د ښار د لسو تنو سپین روږو په نامه لیك ولیکه او ویی لیږه، د والی د

لیك په لوستلو هغوی د ډیرو خلکو د مشوری پر خلاف هلته ورغلل، تولای له هغوی سره هم په ورین تندی وکتل خو د تاوان د پیسو په اړه یی وویل چې ښار له اوسیدونکو سره د مشوری پرته کومه پریکړه نه شو کولی.

تولای وویل : ماته معلومه ده چی د ښار خزانه تشه ده، ماته ستاسو مجبوری معلومه ده، تاسو ولاړ شی سبا ته به بیا سره گورو، غوره دا ده چی تاسو سبا ته د ښار د هری ډلی یو استازی درسره راولی.

تاتاریانو والی او د هغه ملگری په درناوی د ښار تر دیوالونو پوری ورسول، د شپی مهال په ښار کی پردی خبره جشن جوړ ؤ چی سبا ته به سوله وشی او مغل به ولاړ شی. خو هغو پناه اخستونکو چی د مغلو له تولو چلونو او مکرونو نه خبر وو د ښار خلکو ته د هوښیاری تلقین کاوه، د ښار د مشرانو سره هم د مغلو په اړه څه غلط فهمی نه وه، خو والی پردی ټینگار کاوه چی موږ باید د سولی خبری اتری جاری وساتو او څه مهلت ترلاسه کړو سبا ته نژدی څلوښت کسان تولای ته ورغلل.

ماسپښین مهال له هر یوه مشر نه په زور اوجبر د ښار د نورو مشرانو په نامه لیکونه واخستل شول چی غدارانو هغوی ته ورسول او مازدیگر مهال او یا تنه نور مشران هم د تولای قرارگاه ته ورورسیدل.

ماښام مهال مغلو له والی، د لښکرو مشر او د هغوی دری تنه نورو ملگرو پرته ټول ووژل، د شپی یو سل اولس تنه تاتاریانو د والی د وژل شویو ملگرو جامی واغوستی او والی او ملگرو ته یی خنجرونه وروښودل او په مخکی یی د ښار په لور روان کړل، وړاندی وړاندی څو تنه د ښار غداران هم وو چی له والی سره یی په عربی او فارسی ژبه په زوره زوره خبری کولی، د دروازی مخی ته چی ورسیدل هغوی په برجونو کی ناستو پهره دارانو ته د سولی مبارکی ورکړه او د دروازی خلاصولو امر یی ورته وکړ، د دروازی یوه پهره دار له کړکی نه سر راویوست او چی دوی یی ولیدل نو دروازه یی خلاصه کړه، دننه زیات خلك راټول وو، د دروازی د خلاصیدو سره یو سړی بهر ووت او پوښتنه یی وکړه : تاسو ډیر ناوخته شوی څه خبر مو راوړی والی څه شو؟ او بیا ور وړاندی شو په تیاره کی یی سترگی خلاصی کړی او د دوی د لیدو هڅه یی کوله تکرار یی کړه : تاسو څوك یاست، والی چیرته دی؟

د غدرانو نه یوه شاته اشاره وکړه ویی ویل : هغوی را روان دی، په دی کی

پنځه شپې تنه نور هم بهر ته راووتل:

والي منډه واخستله او وړاندې ولاړ او چيغې يې کړې: دروازې وتړې مغل راغلل! ژر کوئ!

يو تاتاري هغه په توره وواهه او پر ځمکه يې وغورځاوه، درې څلور نور غړونه هم اوچت شول: دروازې بندې کړې تاتاريان حمله کوي! خو هغوی هم نورو کسانو ووژل، د يوې شيبې لپاره پهره داران حيران ودريدل، او کله چې د دوی دروازې ته پام شو د مسلمانانو په جامه کې مغل دروازې ته ورننوتي شوي ووه پهره دارانو داسې گومان کاوه چې مغل له شانه پر دوی غشي اوروي دروازه يې ورته خلاصه کړه او دننه يې ننوتلو ته پرېښودل، چې کله يې د مشالونو په رڼا کې نا آشنا څېرې وليدلې چيغې يې کړې خو د سترگو په رپ کې تاتاريانو پنځوس شپيته تنه ووژل، څو تنه مغلان چې دننه په ننوتلو بريالي نه شول د ډبرو او غشو په باران کې بهر ووژل شول، خو نورو يې د هره شيبه زياتيدونکو پهره دارانو سره مقابله پيل کړه، ناڅاپه بهر د زياتو اسونو د پښو ترپهار واوريدل شو، پهره دارانو دننه ورننوتلي مغلي سرتيري ټول ووژل خو څو يې دروازه تړله د سترگو په رپ کې د سپرو يوه ډله تر دروازې ورننوتل.

لږ ځند وروسته د ښار اوسيدونکو په بازارونو کې د ډبرو او غشو د باران سره د دښمن يوه ډله سپاره ليدل چې گزمې يې کولې.

تر نيمې شپې پورې په ښار کې غوغا گډه وه، د شپې تر درېمې برخې پورې مغلو د ښار په څو نورو دروازو هم قبضه وکړه، او ډېرو کورونو ته يې اور واچاوه، تر سهاره دغه اور ډېرې پراخې ساحې ته خپور شوی ؤ، هغه خلك چې له اوره د ژغورنې په خاطر بهر ته راوتل د مغلو د تورو سره مخ شول تر پنځو ورځو پورې په ښار کې قيامت جوړ ؤ.

شپږمه ورځ تاتاريانو د مروې په دروازه کې د خپلې فتحې يادگارونه «د کوپړيو څلې» جوړول، دغه څلې تر نورو پخوا نيو ټولو دنگ وو، خو د مغلو د مړيو له شميرلو نه وروسته تولای ووېل : مړي په کومه لويه جگړه کې هم دومره تاوان نه ؤ گاللی، او بيا يې د دې تاوان او زيان جبران داسې وکړ چې په «مرو» کې يې يو لوی اورتون تيار کړ بيا به يې دوه دوه تنه بنديان په پړيو کلك تړلي راوستل او پر اوچت تخت به يې يو د بل په مخ کې د هغوی لاسونه او پښې په نوبت ترې غوڅ کړل، بنديانو به تر پکې وهلې او ساه به يې ورکړه او مغلو به له

خوښیو نه چیغی وهلی، اتڼ به یی کاوه، او اورته به یی هغوی وروغورځول.

د کوپړیو د شمیر د زیاتولو لپاره به یی حامله ښځی راوستلی، او ګیډه به یی په برچه څیری کړه، یوه حامله ښځه په لوړ تخت وغورځیده او بچی یی وزیږاوه، تولای وویل : وګوری د دښمن ښځی زموږ پرخلاف نوی پوځ تیاروی!

یو تاتاری ور وړاندی شو او غوښتل یی ماشوم تر پښو لاندی غویل کړی خو د مور مینه د مرګ په مخکی هم صبر نه شوه ښځی زوی راواخست او په سینه پوری یی کلك کړ، مغلو مور او زوی دواړه اورته وروغورځول، هغی تر وروستی سلګی د لمبو په منځ کی د زوی د ژغورلو هڅه کوله خو دواړه پکی سکاره شول.

یو دوولس، دیارلس کلن هلك تر سترګو لاندی‌د خپلی خور بی عزتی ونه زغملای شوه پر دوو مغلی افسرانو یی حمله وکړه او یو یی تری وواژه، وژل شوی د تولای د کاسه سری ؤ، کشری هلك یی د تولای په مخکی حاضر کړ، د چنګیز خان په څیر تولای هم د دښمن د کمزوریو او ښو صفتونو د پیژندلو عادت درلود، هغه هلك ور وغوښت او تری ویی وپوښتل : ته پوهیږی چی د یوه تاتاری منصبدار د وژلو سزا څه ده؟

هلك ځواب ورکړ : زه پوهیږم ستاسو په محکمه کی ګناهکار او بی ګناه دواړه تر یوه میچن لاندی دل کیږی.

: که موږ تا له ځانه سره بوزو چی لوی شی سپاهی کیدو ته چمتو یی؟

: ته ذلیل یی زه پردی ځای مرګ قبلوم.

: مرګ یو دردناك شی دی.

: مګر مظلوم ته نه ظالم ته!

تولای خان وویل : دی زما په مخکی غرغره کړی، ته پوهیږی چی غرغره څومره دردناکه وی؟

زړور هلك ځواب ورکړ : ته ما غرغره کولی شی زما اولس نشی غرغره کولی، ستاسو نیزی به ماتی شی، ستاسو توری به پخی شی، متی به مو شلی شی، خو زما د اولس په رګونو کی به د شهادت وینه چلیږی.

د تولای په اشاره یی هلك ته ډیری بدی شکنجی ورکړی او حلال یی کړ، په دی ماښام تولای خپلو څو مشاورینو ته ویل : موږ له یوه خطرناك دښمن سره لاس او ګریوان یوو د کوم اولس میندی چی ددغی هلك په څیر زامن زیږولی شی هغوی تر ډیره د چا غلام نشی پاتی کیدای.

زه داسی هلکان تر جلال الدین لږ خطرناك نه بولم، د مروی د هر کور تلاشی پیل شوه، د کورونو د ځمکی د تل له خونو نه غلی شوی خلك راوایستل شول او ټول ووژل شول، تولای ته د ښار غدارانو د شتمنو خلکو لست ورکړ، هغوی چی له ژوند نه نا امیده شول خپلی ټولی پټی خزانی یی تاتاریانو ته وروښودلی، خو د هغوی تسلی به ونه شوه او د زیاتو مالونو د راپیدا کولو په هڅو کی یی هغوی ته ډول ډول شکنجی او عذابونه ورکړل او بیا یی ووژل، بیا یی د هغوی کورونه له بیخه ونړول او ویی لټول.

جوماتونو، مدرسو او کتابتونونو ته یی اور واچاوه یوازی څلور سوه تنه هغه خلك مغلو له ځانه سره ژوندی بوتلل چی په معماری او وسله جوړولو کی یی کمال درلود، د کوچ نه لږ دمخه چا تولای ته وویل چی په ښار کی په ځینو ځایونو کی تر اوسه هم په پټو خونو کی ښځی او نارینه غلی دی، تولای دوه زره تنه پوځ په مرو کی پریښود او امر یی وکړ چی ښار ښه وپلټی، د هغو سپاهیانو افسرانو ته یی وویل : ما لوی خان ته پیغام استولی چی له دی څو کسانو پرته چی ماته د کار خلك ښکاری او ژوندی می راوستلی نور په مرو کی د دښمن یو تن هم ژوندی نه دی تښتیدلی، زه نه غواړم چی زما خبری دروغ شی، ځکه خو تر څو ستاسو ښه تسلی نه وی شوی لټون ته دوام ورکړی.

دغو سپاهیانو د یوه جومات موذن له کوم ځایه را پیدا کړ او ویی نیو، هغه ته یی عذابونه ورکړل او په دی یی مجبور کړ چی په جومات کی آذان وکړی.

د آذان په اوریدو جومات ته نژدی په یوه پټه خونه کی غلیو شویو خلکو گومان وکړ چی مغلی پوځونه تللی دی راووتل او مغلو ټول ووژل.

په دی ډول هغه په هره محله کی آذان کاوه او بهر ته راوتلی خلك به ټول تر تیغ تیر شول، تر دی چی نور په ښار کی د شړیدلیو او خوسا شویو مړیو له لاسه داسی بدبویی خپره شوه چی تاتاریان پردی داده شول چی اوس دلته د چا د ژوندی پاتی کیدو امکان نشته او تری ولاړل.

*****

(۲)

له بغداد نه چی طاهر او د هغه ملگری وتښتیدل مروی ته یی مخه کړه، په لاره کی د ایران د ښارونو اوسیدونکو چی له یوی مودی پر خپلو ماتو اعتراف کړی ؤ د دوی د اروا پالو ویناو نه بی اغیزی پاتی نه شول، په هر نوی پړاو د رضاکارو

غازیانو یوه ډله ورسره یوځای کیدله، تر دی چی د دوی شمیر دري زرو تنو ته ورسید، له مروی نه سل میله لری طاهر د دی ښار د تباهی خبر واورید او د جلال الدین په اړه یی د معلوماتو ترلاسه کولو نه وروسته د جنوب ختیځ لاره ونیوه.

یو ماسپښین د رضا کارانو دغه پوځ د ختیځ په تونلو غرنیو لارو تیریده د مخی ډلګی مشر عبدالعزیز ؤ، د هغه د لارښوونی لپاره یو ایرانی زلمی ګومارل شوی ؤ، له یوه تنګ پیچومی نه چی تیر شول ایرانی ځوان په لاس د دریدو اشاره وکړه او بیا یی لاندی تنګی ته اشاره وکړه.

عبدالعزیز چی لاندی وکتل چیغه یی وکړه : بیدار اوسی! افسرانو د سترګو په رپ کی دغه پیغام تر وروستی سپاهی پوری ورساوه، طاهر او عبدالعزیز د لښکر له زړه نه راووتل او د پیچومی پر سر ودریدل لاندی یی تنګی دری ته وکتل، په یوه نژدی یو میل سورورړه او دری میله اوږده دره کی سخته جګړه روانه وه، یوه ترکی په ځیر ځیر د هغوی له لیدلو وروسته وویل :

مغلو مسلمانان له څلورو خواو را ایسار کړی دی، د شاله غونډیو نه د مغلو نور پوځونو هم دری ته ورښکته کیږی، د مسلمانانو شمیر تر پنځو شپږو زرو زیات نه دی، خودمغلوتر دوی دری چنده زیات دی. د شاله غونډیو نه نور هم ورکوزیږی، زما په ګومان دا د مغلو د لوی پوځ دمخی ډلګی ده، او د دغه لږ پوځ دومره په میړانه جنګیدونکی له جلال الدین پرته بل څوک نه دی!

طاهر وویل : د مغلو د کلابندی کړی پر دوی راتنګیږی که تر لږ څنده نور پوځ ور ورسیږی بیا به یی ژوندی پاتی کیدل نا ممکن شی.

ترکی وویل : جلال الدین ته کومه خبره له امکان نه وتلی نه ده، خو دا ځل ډیر بد راګیر شویدی.

د طاهر ملګری د ده په هدایت په وړوکو وړوکو ډلو وویشل شول او د مختلفو لارو نه لاندی دری ته ورښکته شول، د دری په مخه کی د یوی وړوکی غونډی تر شا راټول شول، په میدان کی ځینو مغلی سر تیرو دوی ولیدل هم، خو له لری یی داسی ګومان وکړ چی دا د دوی د مرستندویو تولګی دلګیو څخه دی.

په همغه مهال چی مغلو ډیره تونده حمله کړی وه د دوی یوه سالار نویو تولګیو ته د لارښوونی په خاطر له میدان نه راووت او اس یی د هماغه غونډی په لوری وزغلاوه، خو چی کله نژدی ورغی د خپل غم په ځواب کی یی الله اکبر ناری واوریدلی، له دی سره سم یی پر سینه یو غشی ښخ شو، راغلی پوځ په دوو برخو

وویشل شو او د غونډی له دواړو خواوو نه پر دوه وویشکته شوه. مغل تر څو پوهیدل د دری زره تنو سپرو تیزی یی تېرونو ته رسیدلی وی، د هغوی پښی یو ځل بیا وښویدی او بیا راتینګی نه شوی، تردی دمخه جلال الدین پخپل لاس ځلویښت تنه د مرګ په خوب ویده کړی وو، د هغه متی شلی شوی وی، کله یی چی پر خپل بری باور شو له میدان نه ووت له اس نه پلی شو په یوه وړوکی کمره وخوت او د ډبری سیوری ته کښیناست، ساه یی لنډه لنډه کیده خول یی له سره راکوز کړ او یو طرف ته یی ترڅنګ کیښود. د مخ خولی یی پاکی کړی لینده یی راواخسته او بیا یی پر مغلو د غشو باران پیل کړ، هغه حیران ؤ چی دا نوی مرستندوی یی څوك دی!

مغلو لس زره مړی په میدان پریښودل او وتښتیدل، سرتیری د شهیدانو په ښخولو او د ټپیانو په پټی تړلو مشغول شول، طاهر له اس نه پلی شو، خول یی له سره لری کړ او له یوه ترکی نه یی وپوښتل : سلطان چیرته دی؟

د ده په ځواب کی یو سپور له اس نه راکوز شو او ورترغاړی ووت:

طاهره ! آخر راغلی، زه حیران وم چی نن خدای «ج» زموږ لپاره مرستندوی له کوم لوری را واستول. زما له تانه همدغه تمه وه.

: تیمور ملك ! طاهر د خول د چاکونو نه د هغه سترګو ته کتل او ویی ویل.

هغه خول له سره لری کړ او یوه سر تیری ته یی ورکړ ویی ویل : هوکی زه یم.

د تیمور ملك د نامه په اوریدو د طاهر ملګری پری ورتول شول، طاهر عبدالعزیز، عبدالملك، مبارك او د خپل پوځ نور افسران معرفی کړل.

تیمور ملك له هغوی سره تاوده ستړی مشی وکړل ویی ویل :

زه ستا ملګرو ته ښه راښلاست وایم.

عبدالعزیز پوښتنه وکړه : پاچا چیرته دی؟

تیمور ملك خپلو ملګرو ته مخ واړاوه او پوښتنه یی تکرار کړه: پاچا چیرته دی؟

هغوی په حیرانی له یو بل نه پوښتل : پاچا چیرته دی؟

یوه افسر د هغه کمره په لوری اشاره وکړه ویی ویل: هغه پاس پر کمره د یوی ډبری سیوری ته ناست دی.

: راځی زه مو ورولم.

د طاهر څو ملګری او د سلطان د پوځ څو تنه افسران پر کمره وروختل. پاچا په

یوه ډېره سر لګولی ؤ او په درانه خوب ویده ؤ.

تیمور ملك هغه تر مټ ونیو او غوښتل یې راویښ یې کړي خو طاهر په بیړه ور وړاندې شو د هغه لاس یې ونیو:

نه ! د داسې سپاهي خوب ډېر ګران وي. خدای خبر دی چې له څو ورځو وروسته ویده شوی دی.

تیمور ملك وویل : د تولای خان لښکر له دې ځایه یوازې څلور پړاوه لرې دی مونږ باید زر تر زره وخوځېږو.

تیمور ملك بیا د هغه مټ ونیو ورو ورو یې وخوځاوه او ویې ویل : اعلیحضرته! جګ شه!

جلال الدین سترګې وغړولې، او کښیناست او ویې ویل : تیموره! ته خو مې کله لږ خوب ته پرېږده.

: اعلیحضرته ! د تولای خان لښکر له مونږ نه ډېر لرې نه دی،

ستا په ګومان زما دې خبرې ته پام نه ؤ، ماته له څو ورځو وروسته یو مهال د خوب فرصت په لاس راغی هغه هم تا رانه واخست.

ماته اوبه راکړې!

یوه افسر خپل پتك ور وړاندې کړ، جلال الدین د څو غوړپه اوبو له څښلو وروسته ودرید، طاهر او د هغه ملګرو تر اوسه د ده نه زیات د رعب او دبدبې خاوند سړی نه ؤ لیدلی، هغه رښتیا هم یو کمر غوندې و.

پوښتنه یې وکړه : دا پوځ له کوم لوري راغلی؟

تیمور ملك ځواب ورکړ : له بغداده.

: له بغداده ! نو خدای «ج» زما دعا واوریده.

اوس مونږ د نړۍ د هر ځواك مقابله کولی شو، که د بغداد خلك راویښ شوي وي نو زما باور دی چې د ټولې اسلامي نړۍ خلك به راپورته شي، او مونږ به د دنیا تر وروستۍ څنډې د دې وحشي کام مقابله وکولی شو.

سلطان اسمان ته کتل او په سترګو کې یې د شکراني اوښکې وې.

: ددې پوځ مشر څوك دی!

: تیمور ملك طاهر ته اشاره وکړه ویې ویل : دی دی نوم یې طاهر بن یوسف دی، دا همغه څوك دی چې د قوقند نه د تیښتې په وخت کې یې زما ژوند وژغوره، ما تا ته ویلي وو چې په بغداد کې یو ځوان زمونږ لپاره ډېر کار کوي، دا

همغه څوان دی!

جلال الدین طاهر ته ډیر تاوده لاس ورکړل او ویی ویل : د عقابانو په نړۍ کی آرامی ځالی نه وی، زما سره چی اوسیږی نو په داسی ډبرو به په خوب عادت کیږی، زه په دی کمره کیناستم او ستاسو د جګړی کمالونه می لیدل، ستاسو د ځینو سرتیرو د روزلو اړتیا ده، ځو تنه هسی د بی ځایه احساساتو په وجه وژل شول، له یوه زلمی نه زه ډیر اغیزمن شوم همغه بلکل د یوه عرب په څیر جنګیده، د همغه اس نیم تور او نیمایی سپین ؤ، په مخکینی پښه یی د غشی لګیدو په وجه لړلړنګو ښیده هم زه همغه ته شاباشی ورکوم.

تیمور ملك وویل : همغه همدێ دی مایی اس لیدلی دی.

جلال الدین وویل : زه تاته مبارکی درکوم. او له خپلو دریو غوره اسونو څخه یو نن تاته درکوم.

تیمور ملك وویل : طاهره! ته څومره نیکمرغه یی، سلطان صلاح الدین ایوبی «رح» ستا پلار ته خپله توره ورکړی وه او د خوارزم لوی مجاهد تاته خپل اس درکړ.

جلال الدین وویل : د سلطان صلاح الدین ایوبی «رح» توره!

: هوکی ! د ده پلار ته ایوبی د زړورتیا په انعام کی خپله توره ورکړی وه، څنګه طاهره! همغه دی درسره راوړی که دی دا ځل هم په بغداد کی پریښی ده؟

: همغه توره اوس له ما سره ده او ما د لومړی ځل لپاره نن وچلوله.

جلال الدین وویل : زه یی لیدای شم؟

طاهر توره وکښله او وروړاندی یی کړه، سلطان یی پر موتی د صلاح الدین نوم ولید توره یی ښکل کړه ویی ویل:

نیکمرغه دی همغه زوی چی پلار یی دومره لوی انعام حاصل کړی دی، کاشکی زما پلار هم د خوارزم د پاچا پرځای د همغه ستر مجاهد د پوځ یو سپاهی وای او ما هم ستا په څیر فخر وریاندی کولی شوای.

طاهر وویل : که یی تاسو ومنی زه دا سوغات تاسو ته وړاندی کوم.

: مننه! زه یی حقدار نه یم او نن ته ما ولیدی چی د حق په ادا کولو یی ډیر ښه پوهیږی.

پاچا دا وویل او توره یی بیرته طاهر ته ورکړه.

*****

(٣)

چې پوځ د کوچ لپاره تیار شو سلطان وویل : طاهره ته به بغداد ته زموږ لارښوونه وکړې؟

: طاهر په حیراني وپوښتل : بغداد ته ؟

: هوکې بغداد ته ! د خلیفه په چلن کې د دغه بدلون نه وروسته اوس زما ذمه واري ده چې پخپله یې په خدمت کې حاضر شم او د هغه بدګوماني لرې کړم.

زما امید دی چې موږ هلته ځو ورځې پاتې شو د مصر، شام او عربي هیوادونو په مرسته به یو لوی پوځ تیار شي زما باور دی چې ستاسو له را استولو نه وروسته به هغه د تاتاریانو پرخلاف د جهاد اعلان کړی وي.

طاهر په غمجنه لهجه ځواب ورکړ : تا غلط ګومان وکړ، له بغداده زما سره راغلي پوځیان حکومت باغیان بللي دي، زه پخپله له زندان نه راتښتیدلی یم، له بغداده یوازې زر تنه له ما سره ملګري شوي دي، دا نور رضا کاران په لاره کې له موږ سره ملګري شوي دي.

د سلطان پر شونډو غمجنه موسکا راغله ویې ویل : نو د دې مطلب دا دی چې زما دعا تر اوسه پوره نه ده قبوله شوې خو زه مایوس نه یم، ستا سو راتګ د دې خبرې ثبوت دی چې بهر مسلمانان زموږ له مصیبتونو نه نا خبره نه دي، هغه مهال به راشي چې د دې ستري فتنې په مقابل کې به ټوله اسلامي نړۍ راپاڅي او زه به تر همغه وخته خپلې ذمه واري ترسره کوم.

تر څو چې کیدای شي زه به د اسلامي نړۍ د ساتنې ذمه واري پر اوږه اخلم، تر څو د مغلو اسونه زما پر مړي تیر نه شي زه به په هر ګام مقابله ورسره کوم، زه به نړۍ ته دا ثابته کړم چې کوم اولس پخپله د ورکیدو پریکړه ونه کړي د دنیا هیڅ ځواك یې نشي ورکولای، زه به د اسلامي هیوادونو د هر واکمن دروازه ورټکوم، زه به د اسلامي نړۍ په لرې پرتو هیوادونو کې ویده کیدونکي سپاهیان راپاڅوم او زما باور دی چې زما غږ به د بیابان کریغه نه وي، تیموره!

لښکر ته د روانیدو حکم وکړه زموږ منزل افغانستان دی.

طاهر د تیمور له خولې د هرات او بلخ د عبرتناکې تباهۍ داستان اوریدلی ؤ، تیمور ملك د هغه د اندیښنې د سبب پوښتلو نه وروسته دا تسلي هم ورکړه چې د ښار ډیر اوسیدونکي له حملې نه دمخه وتلي وو.

په پوځ کې د بلخ څو تنه وو، د طاهر د پوښتنې په ځواب کې هغوی ټولو وویل

چی شیخ عبدالرحمن له خپلی شتمنی او مال سره پر بلخ له یرغل نه څو اونی دمخه په کومه خوا ولاړ.

بیا هم په هر پړاو طاهر تیمور ملك ته ویل چی زه باید بلخ ته ولاړ شم، تیمور ملك هر ځل دا ځواب ورکاوه چی هلته به له سوځیدلیو کورونو او خوسا شویو مړیو پرته هیڅ هم ونه وینې، د ښار له زغم نه وتلی بدبویی به تاله دوه میلی نه بیرته راستون کړی.

چی جلال الدین ته د طاهر د اندیښنی معلومات وشو نو هغه د بلخ ټول سرتیری راوغوښتل او د بلخ په باب یی تری پوښتنه وکړه، په دوی کی ناڅاپی یو سړی داسی پیدا شو چی ورور یی له شیخ عبدالرحمن سره مزدور ؤ، هغه وویل چی شیخ عبدالرحمن له جګړی نه څلور هفتی دمخه له خپلی ټولی کورنۍ سره ووت او ورور می راته وویل چی سمدستی د هغه مخه غزنی ته وه، ښایی له هغه وروسته بیا بل لوری ته مخه وکړی.

سلطان طاهر ته تسلی ورکړه ویی ویل : د تقدیر لاری ناڅاپه یو له بل سره ترل کیږی، موږ د مروی په لوری روان وو خو اوس ښایی ستا لپاره غزنی ته ولاړ شو.

په لاره کی ځای ځای د سلطان په لټه پسی وتلی د تاتاریانو وړوکی ګروپونه په مخه ورتلل خو سلطان به هغوی تر تیغ تیر کړل او غزنی ته ورسیدل.

په غزنی کی امین الملك له پنځوس زره عسکرو سره د ده هرکلی وکړ، په څو ورځو کی شمس الدین اغراق هم له څلویښت زره تنو سره ورسره یوځای شو چی بیا د افغانستان له هر ګوټ نه د ملکانو او سردارانو خپله خپله ډله غزنی ته ور ورسیدله.

*****

(٤)

غزنی ته چی ورسیدل طاهر ته معلومه شوه چی شیخ عبدالرحمن له دوو هفتو تم کیدو وروسته هندوستان ته مخه کړی ده، دایی هم واوریدل چی شیخ په اوسنیو حالاتو کی یوازی مدینه خوندی بلله او دایی ویلی وو چی ډیر ژر به خپله کورنی مدینی ته واستوی.

طاهر ته همدومره داډ بس ؤ چی هغوی له خطر نه ډیر لری دی، اوس د هغه ټول پام جګړی ته واوښت، د غزنی په جومات کی له څو ځله ویناؤ سره ده د خلکو احساسات راپارول او یوه نوی ساه یی پکی پوه کړه، د افغانستان علماؤ پخوا د

جهاد فتوی ورکړې وه، اوس یې د طاهر په غوښتنه دلرې لرې سیمو دوره وکړه او خلك یې د جهاد لپاره راټولول په یوه جمعه له طاهر نه وروسته عبدالملك هم خبرې وکړې، د هغه خبرې چې څومره لنډې وې هومره اغېزمنې وې، سبا ته سلطان د غزنې د جیدو علماؤ دوې ډلې جوړې کړې او طاهر او عبدالملك یې ورسره واستول چې په شاو خوا سیمو کې د جهاد تبلیغ وکړي.

غیرتي افغانانو د جهاد بلنې ته لبیك ووایه او ډله ډله د سلطان په پوځ کې شاملېدل، په دې دوره کې طاهر له عبدالملك نه زیات بریالی ؤ، د دې سبب یو د ده ښه وینا وه، بل دا چې له هغه سره د یوه داسې غازي توره وه چې د مېړانې کیسې یې د خلکو په زړه کې وې، افغانان د اسلامي نړۍ‌هر باتور سپاهي خپل دوست او عزیز ګڼي.

سلطان جلال الدین د خپل ځواك د شمیر له معلومولو وروسته چنګیز خان ته چې په هغو ورځو کې په تالقانو کې ؤ د څو تاتاري بندیانو په لاس دا پیغام واستاوه:

تا د بې خبرې په حالت کې پر موږ یرغل راوړ، تا تر زور زیات په مکر او فریب زموږ ښارونه ونیول، ستا سپاهیان له یوې مودې راهیسې زما په لټه کې سرګردانه دي، زه اوس په افغانستان کې یم او تا ته د مقابلې چلنج درکوم او داډ درکوم چې دا محل به ستاسو تورو ته د بې کسه تور سریو د ورمیږونو پرځای تورې وي، که همت لرې نو د مقابلې لپاره راځه!

چنګیز خان د «شیګي توتو» په مشرې یو لوی پوځ د جلال الدین د مقابلې لپاره واستاوه، سلطان له غزنې نه څو میله وړاندې د هغوی مقابله وکړه، تر درې ورځو پورې سخته جګړه روانه وه، ترکان او افغانان یو تر بل پر مېړانه او زړورتیا کې مخکې کېدل، په څلورمه ورځ د تاتاریانو پښې ولړزیدې، سلطان تر څو میله دوی تعقیب کړل او بیا یې را ایسار کړل او داسې یوه تنګۍ ته یې برابر کړل چې سلطان هلته خپل غوره غشي ویشتونکي کېښنولي وو.

«شیګي توتو» له ډیر لږ پوځ سره په تیښته بریالی شو خو سلطان یې تعقیب جاري وساته او د کابل تر سیند پورې یې وزغلول، شیګي توتو په سیند کې ځان وغورځاوه او ځان یې وژغوره او چې د غشو په باران کې یې بلې غنډې ته ځان ورساوه نو یوازې اته کسه پاتې وو.

په افغانستان کې د جلال الدین د برې خبر د بریښنا په څېر خپور شو، چنګیز-

خان له دی خبر سره سم دا هم واوریدل چی د هندوکش له غرونو نه د مرغاب تر غاړو پوری ټول قبایل راپورته شوی دی او په لارو کی یی د مغلو ټول پهره داران وژلی دی.

چنگیز خان د لومړی ځل لپاره په یوه محاذ د خپل ټول ځواك راټولولو ضرورت احساس کړ.

د ښی تیاری نه وروسته یی د بلخ او هرات ترمنځ د پراخی سیمی د بربادولو نه وروسته د مرغاب د سیند پر غاړه واړول، او د فرغانی نه تر آذربایجان پوری د تیت پرك پوځ د راغونډیدو انتظار یی وکړ، خو دا لومړی ځل ؤ چی چنگیز خان پر خپل بری باوری نه و او دا اندیښنه ورسره وه چی که ماته وخوری نو د ټولو فتحه شویو سیمو خلك چی تر اوسه پوری د مغلو د ظلمونو له ویری غلی دی ښایی د دوی پر خلاف راپورته شی او جلال الدین به یی د ځمکی تر وروستی گوټ پوری وزغلوی.

*****

(۵)

لکه چی تقدیر د جلال الدین د عزم او ارادی یو بل ازمویښت هم اخست، د راتلونکی پر افق د رڼا د لیدو نه وروسته یی یو ځل بیا تیاری ولیدی، یوی غمونکی پیښی د خوارزم شاندار بری په ماته بدل کړ، د «شیگی توتو» له ماتی وروسته چی کوم مال د غنیمت په توگه د سلطان لاس ته ورغی په هغو کی یو ښکلی اس هم ؤ، ددی اس پر سر د امین الدین الملك او سیف الدین اغراق ترمنځ خبره سره واوښته، د سیف الدین له خولی کومه ترخه خبره ووتله او امین الدین په غوسه شو هغه یی په څپړ وواهه، د سیف الدین ورور سمدستی توره وکښله او پر امین الملك یی حمله وکړه، خو د امین د پوځ یوه تن له شانه په توره سرتری قلم کړ.

د پوځ د دوو میرنیو سردارانو ترمنځ جگړه حتمی شوه، د سیف الدین اغراق څلویښت زره او د امین الدین پنځوس زره تنه پوځ یو د بل په مخکی صفونه وتړل.

سلطان په خپله خیمه کی دا خبر واورید په منډه ورغی او د دوی ترمنځ شو او د دواړو د پوهولو هڅه یی وکړه، د افغانستان عالمان او ملکان هم د دغو دوو پوځونو ترمنځ شول او کتار ودریدل، د سلطان په امر امین الدین ملك د بخښنی

غوښتلو ته چمتو شو خو سیف الدین ته د خپل ورور وژل کیدل هسی عادی خبره نه وه، د هغه لومړنی او وروستی غوښتنه دا وه چی امین الدین دی ده ته وسپارل شی.

سلطان پر دوو کی حیران ؤ له یوی خوا پوهیده چی که په امین الدین ملك زور راوړی د هغه پنځوس زره پوځ به یی ملګری پریږدی او تری ولاړ به شی، بل لوری ته د سیف الدین د خفه کیدو په صورت کی د هغه د څلویښت زره ترکانو د بدورګی کیدو او تلو خطر ؤ.

د سولی ټولی هڅی ناکامی شوی، د سیف الدین پردی د سلطان پر نیت شك ؤ چی امین الدین لور ورکړی وه، په دی نازك مهال نه د علماو زاریو څه ځای ونیو او نه د طاهر او عبدالملك وینا ګانو څه اغیزه وکړه.

سیف الدین په صفا الفاظو وویل چی موږ د مغلو د مقابلی لپاره د سلطان مرستی ته راغلی یو د سلطان د خسر له لاسه خپلی بی عزتی ته تیار نه یو. ځکه خو هغه د شپی له خپلو څلویښت زرو تنو سره کرمان ته کوچ وکړ او په دی توګه د سلطان یو مضبوط مټ مات شو.

چنګیز خان چی د جلال الدین په لښکر کی د درز لویدو نه خبر شو د باد او باران په څیر د غزنی په لور راوالوت سلطان له غزنی نه څو پړاوه مخی ته ور ووت او د چنګیز خان د لاری په هره غونډی، ګرنګ دره او د هر خوړ او ویالی په پله یی پهری ودرولی.

له چنګیز خان سره یو بی ساری ځواك ؤ، هغه د لاری په هرو ستونزو بری مووند، د مقاومت هر کمر یی راغورځاوه او ګام په ګام یی د خپلو پوځونو مړی پریښودل او پرمخ روان ؤ.

د جلال الدین چریکی ډلګی به ناڅاپه له یوی غونډی راښکاره شوی او د هغه د پوځ په یوه برخه به یی حمله وکړه غشی او ډبری به یی پری واوړول او بیرته به ورك شول.

جلال الدین په کوم یوه ډګر د پریکنده جګړی پریکړه ونه کړه، د چنګیز خان د منظمو پوځونو د ده د معمولی پوځ سره هیڅ مناسبت نه درلود، د څلویښت زره ترکی پوځ پر تلو یی د پوځ مورال نور هم راپریوت، یوازی د پنځلس، شل زره تنو په اړه د ده باور ؤ چی له ده سره تر وروستی سلګی جګړی ته تیار او د ماتی او بری نه بی پروا دی، د نور پوځ په باب د ده دا ګومان ؤ چی په یو ځل ماته به بیا

تر شا راونه گوري او په خپله مخه به ځي.
ده د پوځ زياته برخه امين الملك او تيمور ملك ته وسپارله او پخپله د خپلو سرښندويانو د توپاني ډلگيو سره پرمخ ولاړ او د چنگيز خان د پوځ د مخې پر ډلگيو يې حمله وکړه هغوی ته يې ماته ورکړه او پنځه زره تنه يې تر تيغ تير کړل.
کله چې چنگيز خان د مخې ډلگيو د سردارانو په ملامتولو او رټلو بوخت ؤ خبر ورغی چې د جلال الدين توپانی ډلگۍ د غرونو تر شا يوه اوږده لاره ووهله او د لښکر په وروستيو ډلگيو يې حمله کړې ده او د اکمالاتو زيات سامان يې نيولی دی.
له وړوکي ډلگۍ سره د جلال الدين دغو بريالیتوبونو يو ځل بيا د ده په پوځ کې نوی روح پوه کړه، خو چې کله جلال الدين د مغلو د ځواك سهي اندازه ولگوله پريکړه يې وکړه چې د سند تر دريا به بايد په شا ولاړ شي، او په دې موده کې به له يوی خوا هغه ته د زياتی تياري زمينه برابره شي او له بله پلوه به له شانه د چريکی گروپونو حملی او د مغلو پوځ ته زيات تاوان [ ] هغوی دی ته اړ باسی چې د غرونو په دې نه ختميدونکی لړی کی د نور وړاندی تلو پرځای بيرته شاته ستون شي او په نتيجه کی به د چنگيز خان د پوځ برخليك د شيگی توتو په څير شي.
خو د گوبي د بيابان تجربه کار ليوه په دې خطرونو پوهيده هغه ته معلومه وه چې د خوارزم زمری دی خپل خطرناك ښکار ځای ته وربولي، خو هغه د وړاندی تلو پر ځای شاته تلل ډير خطرناك گڼل او گام پر گام يې د سختو تاوانونو پروا ونه کړه او پرمختگ يې گړندی کړ.
جلال الدين امين الدين ملك او تيمور ملك ته امر وکړ چې سمدستي خپل ځای پريږدی او پوځ ختيځ لوری ته بوزی او پخپله يې له اتو زرو سرښندويانو سره د مغلو د لښکر درفتار کرارولو فکر کاوه.
يو سهار چې کله تاتاريان راختونکي لمر ته په سجده پراته وو جلال الدين د يوه غره له شانه راښکاره شو او د دوی د لښکر پر کينه خوايي حمله وکړه، او تر څو نور پوځ د کيڼ لوری د برغل د ځواب لپاره هلته ورسيدل جلال الدين دری زره تنه مغل له تيغه تير کړی وو او په غرونو کی چنگيز خان په جلال الدين پسې د پوځونو استولو پرځای د حملی ډلی ته د تيمور ملك او امين الملك په مشری شاته تلونکی پوځ د تعقيب او څارنی حکم وکړ او د نور پوځ رفتار يې هم چټك کړ،

جلال الدین ته یوه بله موقع هم په لاس ورغله او هغه ماسپښین مهال راښکاره شو د اکمالاتو په کاروان یی برید وکړ د شاتنی برخی پوځونه ودریدل او د حملی پرځای یی دفاعی جګړی ته دوام ورکړ او خپل مزله ته یی دوام ورکړ.

جلال الدین د اکمالاتو د کاروان کچری تیت پرك کړی او تر لری لری ځایونو یی مغل وزغلول غشی یی پری واورول بالاخره د شپی په دریمه برخه کی هغه پوځ ته ددریدو امر وکړ او یوه افسر ته یی وویل:

خدای «ج» دی خیر کوی، ماته داسی ښکاری چی امین الملك کوم حماقت کړی دی.

هغه چی د تاتاریانو د حملی ګروپونه لیدلی دی زما د امر پرخلاف یی جګړه ورسره پیل کړی، که داسی نه وی نو له شانه د حملی سره سره د مغلو دنه دریدو سبب څه دی؟

ترکی افسر ځواب ورکړ : امین الملك دومره ناپوه نه دی او که وی هم تیمور ملك غوندی تجربه کار او جهان دیده سپاهی ورسره دی.

سلطان وویل : مغلو ته یو کچر مال تر سلو سپاهیانو زیات ارځښت لری خو نن هغوی ترشا هم ونه کتل، له دی نه دوی خبری په ډاګه کیږی، یا امین الملك جګړه ورسره پیل کړی او یا هغه د دوی تر کلابندی لاندی راغلی دی. موږ یی باید سمدستی مرستی ته ور ورسیږو.

*****

(٦)

د جلال الدین اندیښنی سهی ثابتی شوی، د چنګیز خان د حملی ګروپونو له شل میله مزله وروسته امین الملك را لاندی کړ امین الملك ګومان وکړ چی د دوی شمیر لږ دی او له شانه به د جلال الدین دیر غلونو په سبب د چنګیز خان نور لښکر دیر کرار پر مخ را روان وی. هغه خپل پوځ ته د دریدو امر وکړ او د حملی تصمیم یی ونیو خو تیمور ملك د دی ارادی مخالفت وکړ او هغه یی وپوهاوه چی د حمله کوونکی دلی د دومره ګړندی لیږلونه د چنګیز خان هدف له دی پرته بل څه نه شی کیدای چی له موږ سره جنګ پیل کړی او د پاتی پوځونو تر راتګه مو مشغول وساتی، غوره دا ده چی زه د دوی د مخی نیولو لپاره له دوه زره تنو سره پاتی شم او ته شاتګ ته دوام ورکړی.

خو امین الملك دا مشوره ونه منله شاته ور وګرځید او په تاتاریانو یی حمله

وکړه، مغل د لږ تېنګار نه وروسته په شا وتښتېدل، امین الملك لښکر ته دوهم ځلی د روانیدو امر وکړ تیمور ملك ته یې وویل : ودې لیدل! زما باور ؤ چې دا د چنګیز خان د لښکر د حملې ګروپونه نه دي بلکې له کوم بل لوري دې خواته راسیدلی وو، که د چنګیز لښکر هر څومره ګړندی راشي هم نو له موږ نه به لس میله لرې وي.

تیمور ملك ځواب ورکړ : کیدای شي ستا ګومان سهي وي خو موږ باید بیره وکړو.

امین الملك لښکر ته د کوچ امر وکړ خو ناڅاپه یې د دری زرو تنو په شاوخوا کې تاتاري لښکر ولید چې له یوی غونډۍ نه راښکته کیدل، دا ځل تیمور ملك ډیر په کلکه د هغه د ایسارولو هڅه وکړه، خو څومره چې د تیمور ملك شکونه زیات شوي وو هومره د امین الملك یقین چې دغه لږ پوځ له کوم بل لوري نه راغلی دی او د چنګیز خان د منظم پوځ برخه نه ده چې د ده په ګومان تر اوسه په میلونو له دې ځایه لرې ؤ، امین الملك د تیمور ملك د اندیښنې پرواونه کړه او پر تاتاریانو یې یرغل وکړ او په څو شیبو کې یې هغوی تر پښو لاندې کړل، خو د هغوی شمیر د کمیدو پرځای ډیریده، له غرونو نه د هغوی نوری ډلې یو پر بلې پسې دری ته راکوزې شوې. له یوه څاښت جګړې وروسته امین الملك ولیدل چې د دښمن په لیکو کې لس دوولس زره تنه پوځیان راټول شویدي، هغه په اندیښنه له تیمور ملك نه وپوښتل: اوس موږ باید څه وکړو؟

تیمور ملك په غوسه خپلې شونډې وژوولې ویې ویل : موږ اوس څه کولی شو؟ د چنګیز خان د پوځ د مخکینۍ ډلې ټول لښکر د درې په شاوخوا کې راټول شویدي، د شاوخوا غرونو او غونډیو نه د دوی د شړلو نه پرته موږ نور پرمخ نشو تلای. کاشکې تا زما مشوره منلې وای، مګر اوس پر اشتباهاتو د خفګان وخت نه دی د جبرانولو وخت دی.

: نو ته مو لارښوونه کړه ما یو سپاهي وبوله.

تیمور ملك امین الملك ته دیرش زره تنه پوځیان ورکړل او ورته ویې ویل چې د شاوخوا غرونو او غونډیو سرونه ونیسې پخپله یې د پاتې لښکر سره درې ته دوز کوز شوی لښکر سره مقابله پیل کړه، مازدیګر ته نژدې شاوخوا غرونه او غونډۍ د مغلو د لښکر نه تشیدلی خو په دې مهال د چنګیز خان منظم پوځ ور ورسید، امین الملك له خپل دیرش زره لښکر سره له غونډیو نه راښکته شو او په یوه بله

دره کې يې د چنګيز خان د لښکر په ښۍ اړخ حمله وکړه، د هغه دغه حمله د بري له هيلې نه زياته د خپلې غلطۍ د جبران لپاره وه.

په بله دره کې چې تيمور ملك جنګيده چنګيز خان له خپل پوځ «مقدمة الجيش» سره وررورسيد، تيمور ملك په ميړانه مقابله کوله خو په دې څند کې د چنګيز خان د کيڼ اړخ لښکرې هم درې ته ورننوتلې، تيمور ملك د ماښام له تيارونه د ګټې پورته کولو په تمه جګړه کوله.

په بله دره کې د امين الملك پښې ښوييدلې وې خو د جلال الدين د ناڅاپي ور رسيدو سره پاتې پوځيانو د تيښتې اراده پريښوده، او په سرښندويانه حملو يې لاس پورې کړ، جلال الدين په څو حملو کې ميدان صفا کړ امين الملك ته ور نژدې شو ترې ويې پوښتل : ماته ستا د حماقت سزا راکول کيږي که تقدير زما د بدمرغيو د زياتولو لپاره د تيمور ملك غوندې تجربه کار زمري په دماغ کې هم د جنون اغيزې پيدا کړې؟

امين الملك په پښيمانۍ سر ښکته واچاوه ځواب يې ورکړ:

دا زما غلطي ده تيمور ملك زه ايسار کړم .ما د هغه خبره ونه منله، زما باور ؤ چې مغل به ډير لرې وي.

: خدای «ج» دې هر انسان ستا غوندې ساده لوستی نه وژغوري. اوس زه يو کار درسپارم ته زر تر زره غزني ته روان شه، او زما د ښځې او ماشومانو سره کوم خوندي ځای ته ولاړ شه، د ښار خلکو ته هم دا مشوره ورکړه چې د هندوستان د سرحد په لورې ځانونه وباسي.

جلال الدين په دې دره کې پاتې پوځ منظم کړ او د څو غونډيو نه له تيريدو وروسته يې له تيمور ملك سره پر جګړه مشغول پوځ حمله وکړه، د تيمور ملك پر شاوخوا راټول پوځيان يې کلك وځپل او له هغه سره يوځای شو.

کله چې د ماښام په تيارو کې د دوست او دښمن پيژندل ګران شول جلال الدين په يوه لورې زور وره حمله وکړه او له اته زره تنه پوځيانو سره له درې نه ووت، خو د چنګيز خان په امر د هغه پوځونه پسې ورغلل، د شپې د ده ډير پوځيان د زخمي اسونو په وجه ترې پاتې شول او ډير يې په يوه او بله سرګردانه ووتل، ځينو له ډيرې مايوسۍ نه د هغه ملګرې پريښوده، تر سهاره له ده سره يوازې شپږ زره تنه پاتې وو.

د طاهر له ملګرو نه هم زيات شمير شهيدان شوي وو، عبدالعزيز او موسی خو ده پخپله وليدل چې په ميدان کې ولويدل، تر څو ورځو پورې مغل د سيوري په څير په جلال الدين پسې وو تر دې چې دې په جګړه جګړه کې د سند درياب غاړې ته ورسيد.

# پردی وطن

یوه ورځ جلال الدین له لږ شمیر پوځ سره په یوه داسی کمره دریدلی ؤ چی له دری لوریو نه د مغلو تر کلابندی لاندی ؤ او څلورم لوری ته نژدی لس گزه لاندی د سند دریاب غرمبیده او څپاند ؤ.

چنگیز خان امر کړی ؤ چی جلال الدین په هر صورت ژوندی ونیسی د کمره په شاوخوا د جلال الدین سرښندونکی یاران د مقابلی لپاره ولاړ وو، د مغلو کلابندی ورو ورو کلکیده، د هغوی له پوځ نه یو سپور چی له څیری او جامو څخه مسلمان عالم ښکاریدو له سپین بیرغ سره راووت او وراندی راغی چی کمره ته نژدی شو په لوړ غږ یی وویل : لوی سلطانه! که تاسو وسلی وغورځولی نو لوی خان ستاسو د ژوند د بخښنی وعده کوی.

سلطان ځواب ورکړ : که دی په لاس کی سپین بیرغ نه وای نو د دی خبری ځواب به می په غشی درکړی ؤ، ورشه دی ډاکو ته ووایه چی زه د ذلت له ژوند نه د عزت مرگ غوره گنم.

طاهر د چنگیز خان استازی په یوه نظر وپیژاند هغه مهلب بن داؤد ؤ.

چنگیز خان څو ډلگیو ته امر وکړ، د جلال الدین د سپاهیانو د غشو او ډبرو په باران کی د کمره نه لاندی د مغلو لاشونه انبار شول. چنگیز خان چی دا ولیدل نور پوځیان یی ورواستول، د جلال الدین سرتیری هم یو یو وژل کیده او ورو ورو په شا تلل تر دی چی د کمره وروستی څنډی ته ورسیدل. سلطان تیمور ملك ته وویل : تیموره! تقدیر موږ په اور او اوبو کی د یوه په غوره کولو مجبور کړی یو. ستا رایه څه ده؟

تیمور ملك ځواب ورکړ : زما باور دی چی د اوبو څپی به د اور د لمبو په څیر ظالمی نه وی.

: ډیر ښه زه درته لاړښوونه کوم ته سپاهیانو ته د تیاري امر وکړه، سلطان درنه

زغره وایستله او ویې غورځوله اس یې مخکې کړ یو ځل یې ویروونکو څپو ته وکتل او بیا یې اس ته پونده ورکړه. تیمور ملك له څو تنو پرته نورو ته په دریاب کې د ورکېوزیدو امر وکړ او کله چې د ده وار راغی نو سترګې یې پر طاهر ولګیدې هغه څوګامه لرې سر د اس پرورمیږ ور ایښی ؤ، په زغره کې یې څو غشي نښتي وو او د هغه وفادار نوکر زید په نیزه له دوو تاتاریانو سره مقابله کوله.

تیمور ملك اس ور وړاندې کړ او د مغلو نه یې د یوه سر والوزاوه بل یې زید راغورځولی ؤ. په دې کې څو تنه نور هم وررسیدل تیمور ملك طاهر راکش کړ په خپل اس یې ورسره سپور کړ زید او نورو پوځیانو ته یې امر وکړ چې په اوبو کې اسونه ور وغورځوي، پخپله یې هم اس پر دریاب ور پونده کړ، عبدالملك د سیند په غاړه مذبذب ولاړ ؤ، خو چې طاهر یې د تیمور سره ولید هغه هم په اوبو کې ځان وروغورځاوه چنګیز خان د جلال الدین د ژوندي نیولو په خپلو لوړ سپاهیانو ته پر کمره دورختلو امر کړی ؤ، کله چې تاتاري سربازان د کمره پر سر ودریدل او د سیند په لور یې اشاري کړلی او چیغې یې وهلی نو دې په منډه ورغی په کمره وخوت.

د جلال الدین زیات ملګري د تاتاریانو د غشو او د سیند د څپو خوراك شول، خو جلال الدین د غشو له دم نه لرې شوی ؤ. هغه بلې غاړې ته ورسید په یوه لوړه تپله ور وخوت او ډاډه کښیناست.

چنګیز خان خپلو زامنو او سردارانو ته په خطاب کې وویل:

هغه پلار ډیر بختور دی چې جلال الدین غوندې زوی لري، او مبارکې دې هغه میندې چې داسې زامنو ته شیدې ورکوي.

د چنګیز خان ځینو سرتیرو غوښتل د جلال الدین د تعقیب لپاره په دریاب کې ځانونه وروغورځوي خو ده ورته وویل:

دا دریاب د ترکستان د وړوکو وړوکو سیندونو نه ډیر توپیر لري او د دښمن کڅوړې له غشو نه تشې نه دي.

تیمور ملك طاهر د دریاب په څنډه څملاوه زغره یې ترې وایستله په زخمونو یې پټې وروتړلې او ویې ویل : طاهره اوس څنګه یې؟ هغه جګ شو کښیناست ویې ویل : زه بلکل روغ یم له سهاره مې اوبه نه وې څښلې د تندې او لوږې په وجه بې سیکه وم، په سیند کې مې یخې او خوږې اوبه ښې ډیرې وڅښلې.

د اوه سوه تنو سپاهیانو په شاوخوا کی کسان له سیند نه پوری وتل او له جلال الدین سره یوځای شول، سلطان په شاوخوا کلیو قبضه وکړه خوراکی مواد او څو اسونه یی پیدا کړل او د «نمك غر» په شاوخوا کی یی په یوه وړوکی سیمه تسلط ټینگ کړ، په څو ورځو کی د ده د پوځ تیت او پرك نور سرتیری هم ورسره یوځای شول.

چنگیز خان څو میله ښکته ولاړ او څو کښتۍ یی وموندی، له یوه تجربه کار جنرال سره یی د پوځ غوره سپاره له سیند نه پوری غاړی ته واستول، جلال الدین د مایوسی په حالت کی د ډیلی په لور مخه کړه، تاتاریانو د هند په زغم نه وتلی گرمۍ کی هغوی تر ډیره تعقیب نه کړای شول په ملتان، لاهور او شاه پور سیمو کی له لوټمار وروسته بیرته راستانه شول.

په راستنیدو کی چنگیز خان د پیښور له ویجاړولو وروسته بیرته د سمرقند په لور مخه کړه، د تباه شوی افغانستان له سیمو نه چی بیرته تلل د دوی له لومړی تاړاك نه پاتی ټول انسانان یی ووژل او زیاتی ښځی یی ورسره بوتلی.

د سند له دریابه د خزر تر بحیری پوری پر ټوله اسلامی نړۍ د تاتاریانو واکمنی شوه، د افغانستان نه د کسات اخستلو نه وروسته چنگیز خان داده شو چی نور په اسلامی نړۍ کی د سر راپورته کولو څوك نشته، یوازی جلا الدین یو داسی غلیم ؤ چی ده له ټولی نړۍ نه خطرناك گانه خو هغه ته نه هیواد وړپاته شوی ؤ او نه پوځ، د اسلامی نړۍ د دفاع وروستی برج رالویدلی ؤ، پیښور ته نژدی د هغه میرمن او اولادونه هم چی امین الملك ورسره وو ووژل شول، د تکشی کورنی هغه وروستی د سترگو تور چی د پاچاهی حدود یی څوکاله وړاندی د البرز له غرونو نه د سند تر غاړو پوری رسیدل د یوه بی کوره مسافر او یوه نابلل شوی میلمه په څیر د ډیلی د واکمن سلطان شمس الدین التمش په هیواد کی پناه غوښته خو د هرکلی امید یی نه ؤ.

جلال الدین د ډیلی نه څو پړاوه لری واړول او د یوه تجربه کار مشاور عین الملك او طاهر بن یوسف په لاربښونه یی سلطان التمش ته یو هیأت واستاوه.

*****

(۲)

عین الملك او د هغه ملگری یی په شاهی میلمستون کی ځای پر ځای کړل، سلطان التمش له دری ځلی ملاقاتونو وروسته دوی ته په څو ورځو کی د ځواب

ورکولو وعده ورکړه.

له خپلو ټولو پوځي افسرانو او مشاورینو سره له مشورې وروسته یوه ورځ هغه طاهر بن یوسف ته د ځانګړې ملاقات بلنه ورکړه او له اوږده ملاقات وروسته یې وویل : موږ د جلال الدین له مرستې نه انکار نه شو کولی خو زموږ مجبوریتونه له تاسونه پټ نه دي. موږ ته دچنګیز خان پیغام را رسیدلی دی، هغه لیکلي چې که تاسو سلطان جلال الدین ته پناه ورکړه او یا مو له هغه سره د مغلو پرخلاف څه تړون وکړ نو موږ به پر هندوستان یرغل وکړو، موږ د داسې ګواښــونو پروا نه لــرو خو بیــا هم سلطــان جلال الدین باید دا خبره درک کړي چې په دې هیواد کې د مسلمانانو شمیر په اوړو کې د مالګې هومره دی، که مغل دلته راشي نو نور قومونه بیایي له موږ سره د ملاتړ پرځای له هغه سره یوځای شي، موږ ته څو هندي راجه ګانو دا وعده راکړې ده چې د مغلو د یرغل په صورت کې به د کور د دفاع په وخت هغوی زموږ ملاتړ وکړي، خو که چنګیز خان هغوی ته دا پیغام واستوي چې د هغه مقصد یوازې د جلال الدین نیول دي نو دوی به خامخا له موږ نه دا غوښتنه کوي چې موږ باید دې میلمه ته په پناه ورکولوسره د هندوستان د تباهي سبب نه شو.

که زموږ سره زیات پوځونه وای نو موږ به له نیمایي لښکر سره د جلا الدین تر بیرغ لاندې له هندوستان نه بهر د تاتاریانو مقابله کوله او نیمایي نور لښکر به مو د هندوستان د دفاع لپاره پریښود، خو اوس معامله سرچپه ده، څو ورځې وړاندې د تاتاریانو څو ډلګۍ تر لاهور او ملتان پورې راغلې له لوټمار او بربادۍ وروسته بیرته ستنې شوې، موږ د هغوی د پرمختګ د مخنیوي پرځای په دې ویره کې وو چې زموږ نامسلمان رعیت باغي او ورسره یوځای نه شي، عین الملك موږ ته پیغور راکوي چې له مغلو نه ویریږو، موږ د هغه ځواب د نورو په وړاندې نشو ورکولی خو تاته وایو چې زموږ د ویرې سبب دا نه دی چې بې زړه یو سبب یې دا دی چې پر خپل رعیت داډه نه یو.

طاهر وپوښتل : نو زه سلطان جلال الدین ته دا ځواب ور وړم چې دوی په هندوستان کې ستا پاتې کیدل نه غواړي؟

: نه! تاسو زموږ په باب غلط فکر وکړ، که زموږ لخوا د سلطان جلال الدین د لیك کوم ځواب وي نو یوازې دا دی چې موږ د خپل دغه مصیبت ځپلي ورور لپاره د وینو د وروستي څاڅکي تر تویولو پورې چمتو یو، خو په دې وخت کې له

ده سره د مرستی همدا یوه لاره ده چی موږ د دی پاچاهی نه لاس پر سر شو او خپل پوځ سلطان ته وسپارو، له تاتاریانو سره د هندوستان پرځای په یوه بل داسی هیواد کې پریکنده جګړه وکړو چی اولس یی زموږ ملګری وی، اوله شانه به زموږ اندیښنه نه وی چی څوك به مو په خنجر ووهی، په داسې صورت کی که د جګړی نتیجه زموږ په ګټه وه نو هندوستان به بیرته هم ترلاسه کړای شو او که موږ ماته وخوړه نو د نورو هیوادونو په څیر به هندوستان هم وبایلو.

طاهر وویل : موږ د هندوستان په ساره او اوږدو کی ستاسو د پوځی څواك اندازه لګولی وه، د سلطان جګړه د ځان لپاره نه ده د ټولی اسلامی نړی لپاره ده. هغه به هیڅکله هم دا خوښ نه کړی چی دغه هیواد چی د لکونو ایرانی، ترکستانی او افغانی کډوالو د پناه ځای دی د مسلمانانو له لاسه ووزی.

د سند دریاب پرغاړه له مغلو سره د ده جګړه د دی لپاره وه چی تاتاریان د هند په دروازه کی ایسار کړی. په خراسان او ایران کی د هغه جګړی د مصر،شام او عراق د دفاع لپاره وی، زموږ هدف یو دی او هغه د لاسه وتلیو اسلامی هیوادونو بیرته نیول او د پاتی هیوادونو د مغلو له قبضی نه ژغورل دی.

د دی هدف د ترلاسه کولو لاره هم یوه ده، او هغه دا چی موږ د جمنا د سیند له څنډو نه تر جبل الطارق پوری په یوه کتار کی ودریږو، زموږ هر هیواد په دی ټولنیزو هڅو کی خپله ونډه واخلی، د سلطان جلال الدین دا نظر ؤ چی هغه به هندوستان د خپلو فعالیتونو مرکز کړی او یو ځل بیا به ټولو اسلامی هیوادونو ته د شریك اقدام بلنه ورکوی، که اسلامی نړی د ده بلنی ته لبیك ووایه نو په لږه موده کی به دلته زیات پوځ راټول شی.

سلطان التمش وویل : موږ دلته هر سپاهی ته په راتلو هرکلی وایو، خو ایا دا به غوره نه وی چی سلطان پخپله دلته د تم کیدو پرځای په ټولی اسلامی نړی راوګرځی، او چی د هغه بلنی ته څوك لبیك وایی، د هغوی د راټولیدو ځای هندوستان وی.

څومره سپاهیان چی هغه راټول کړی او دلته یی راواستوی موږ به د هغو ټولو د اړتیاو پوره کولو ذمه واری اخلو، د دی غوره اغیزه به دا وی چی هند به د تاتاریانو له پامه وتلی وی، او موږ به د تیاری فرصت ترلاسه کړو.

د دی پرخلاف که سلطان پخپله په هند کی پاتی شی نو تاتاریان به هره شیبه له دی ځایه خبر اخلی، زموږ له خوا به د خطر احساس کوی او پر هندوستان به هم

یرغل وکړی. تاسو زما پر نیولو خبرو په سره سینه چورت ووهی، او سلطان هم وپوهوی، که ښیا هم پر دی نیولو خبرو برسیره سلطان دلته د اوسیدو پریکړه وکړی نو زه داد درکوم چی زما د محل یوه برخه به د ده لپاره تشه وی، که هغه دلته د یوه میلمه په حیث اوسیدل نه خوښوی نو موږ اجازه ورکوو چی ددی هیواد د هغو برخو نه چی تر اوسه زموږ په ولکه کی نه دی هره برخه یی چی زړه غواړی فتحه کړی، موږ به یی په پټه ملاتړ هم کوو او د مغلو د لری ساتلو په خاطر به داسی وایو چی سلطان زموږ له خوښی پرته زموږ هیواد ته راننوتلی دی.

طاهر وویل : زه نن سلطان ته ورځم او تر څو ورځو پوری به یی ځواب درته راوړم.

شمس الدین التمش وویل : غوره به دا وی چی ته دا ټولی خبری په لیك كی سلطان ته وليکه او له خپلو ملګرو نه کوم يو ور واستوه عين الملك سر له اوسه زموږ له امیرانو سره سازشونه پیل کړی دی، ته سلطان ته دا هم ولیکه چی د عین الملك موجودیت به دلته د دواړو په زیان تمام شی، غوره دا ده چی هغه ور وغواړی او پرځای یی تیمور ملك راواستوی.

هغه نیك نیتی هم دی او په معامله هم پوهیږی، زما باور دی چی دیر زر به کومې پریکړی ته ورسیږو، سلطان ته چی ته د خپلو ملګرو له ډلی نه هر څوك استوی هغه ته به د اسونو بندوبست موږ وکړو او هغه به تر دری ورځو پوری د سلطان له ځواب سره بیرته راستون شی.

له دی ملاقات نه وروسته د طاهر په زړه کی چی د سلطان التمش په اړه څومره بدګومانی وی هغه ټولی لری شوی، هغه چی میلمستون ته بیرته راغی ټولې خبرې یی عین الملك ته وکړی او سلطان جلال الدین ته د لیك لیکلو لپاره کیناست.

* * * * *

(۳)

سبا ته طاهر د ښار په يوه جومات کی د سهار لمونځ ادا کړ او بهر ته راووت چی په زینو کی چا له شانه د هغه لمن ونیوله.

طاهر شاته وکتل، پوښتنه یی وکړه : څوك یی؟

یو کم عمره هلك په موسکا په مخکی ورته ودرید او ویی ویل : مانه پیژنی!؟

: اسماعیله ته! طاهر ورتیټ شو په غیږ کی یی ونیو او د احساساتو په توپان کی یی پوښتنی ورته کتار کړی:

ته دلته څه وخت راغلی، بابا دی چیرته دی؟ انا دی څنګه ده او ثریا خور دی چیری ده؟

: راځه هغوی ټول په کور کې دی.

: چیرته؟

: په همدی ښار کی ډیر نژدی.

د طاهر زړه په درزا شو ویی ویل : زه دلته یوه هفته کیږی کاشکی راته معلومه وای چی تاسو دلته یاست، زه چی بلخ ته نژدی شوم، راته معلومه شوه چی تاسو غزنی ته تللی یی.

اسماعیل وویل : پرون شپه ماته په همدی جومات کی ولیدلی خو زه ډیر لری وم ښه می ونه پیژندی او چی درپسی شوم ته د خلکو په ګڼه ګونه کی راووتلی، ما چی خور ته وویل هغی راته وویل چی سر له نن سهاره پرجومات پهره وکړم.

راځه! طاهر له اسماعیل سره روان شو، د مینی د منزل په لور یی کله پل ګړندی او کله کرار پورته کیده.

هغه له اسماعیل سره یوه ښکلی محل ته ننوت.

ثریا د کور په انګړ کی د ام د ونو لاندی ولاړه وه طاهر چی هغه ولیدله ودرید بیا زړه نا زړه وړاندی ورغی او څوګامه لری ودرید، د دواړو سترګی له یوی شیبی سرګردانی وروسته یو پر بل میخ شوی، دواړه چوپ وو او د الفاظو ضرورت هم نه و، د دواړو زړونه او ذهن سترګو ته راغلی وو، دواړو یو د بل د څیری رنګونه لیدل چی بدلیدل، تر یوی شیبی پوری یی له ځانونو پرته پر نړۍ د نور چا د موجودیت احساس نه کاوه، د دوی د زړونو له درزا پرته د ګایناتو د ژوند ټولې هنګامې ویدې شوې وې.

اسماعیل وویل : خوری ودې نه پیژاند، دا طاهر ورور دی!

ثریا وموسکل او له یوی شیبی وروسته ور وړاندی شوه اسماعیل یی په غیږ کی ونیو ویی ویل : زما په ګومان تا هغه نه دی پیژندلی دا به بل څوک وی.

اسماعیل اندیښمن شو طاهر ته یی وکتل او ویی ویل : په خدای (ج) سوګند دا هماغه دی!

ثریا وخندل او طاهر ته یی وکتل په سترګو کی یی د خوښی اوښکی راتم کړی او د کور په لور یی منډه واخیسته، چی د برنډی زینو ته ورسیده نو نوره هم ګړندی شوه هغه بیا د یوی دروازی ترشا ودریده ویی ویل : انا! هغه راغی! بهر

اسماعیل حیران حیران طاهر ته کتل.

: ته لږ ډنگر شوی یې نور په څېره کې بلکل هماغه یې، عجیبه دا ده چې خور جانۍ می ونه پیژندې، ته راځه دننه راسره ولاړ شه انا به دی خامخا وپیژنی اسماعیل دا وویل او بیا یې طاهر تر لاس ونیو کور ته یې کش کړ.

طاهر په خندا وویل : که هغې هم ونه پیژندلم نو بیا ؟

اسماعیل یو ځل بیا په ځیر ځیر ده ته وکتل ویې ویل : زه رښتیا وایم ستا په څېره کې هیڅ بدلون نه دی راغلی، په تندی دی یوه د تپ نخښه ده، خو پر دی څه فرق نه دی راغلی انا به دی خامخا وپیژني.

په دی څنډ کی شیخ عبدالرحمن بهر ته راووت، څو تنه نوکران هم ورسره وو او هغه په لوړ آواز ویل : تاسو ډیر ناپوه یی میلمه بهر ولاړ دی او ماته خبر هم نه راکوی. او هغه اسماعیل ناپوه ته وگوره معلومه نه ده چې له کوم وخته هلته ولاړ دی.

طاهر ور وړاندی شو عبدالرحمن ته یې لاس ورکړ شیخ داسی سیلیده لکه یو میل منله یې چې وهلی وی.

هغه وویل : راځه دننه دلته بهر ولی ولاړ یې؟

اسماعیل وویل : بابا جانه تا وپیژاند چې دا څوك دی؟

: چوپ شه ساده!

شیخ طاهر تر مټ ونیو او د کور په لور روان شول، د برنډې په مخ کی د مرمر ډبرو په زینه کی د هغه پښه وښوییده خو طاهر زر راونیو، اسماعیل په خندا ولاړ د یوی ستنی تر شا پټ شو.

شیخ چې ځان را تینگ کړ ویې ویل : دا د مرمروزینی ډیری خطرناکی دی، دا څلورم ځل دی چې زه پکی ښوییږم. اسماعیل چیرته ولاړ، هغه ناپوه به خامخا چیرته غلی شوی وی او راپوری خاندی به، ای صابره! شوکته! نن معماران راوغواړی ورته ووایی چې همدا نن دغه مرمر لری کړی نوری زیږی ډبری دی ولگوی، خو ودریږی! نن نه بیا به بله ورځ گورو!

* * * * *

(٤)

شیخ، طاهر په یوه ښکلی کوته کی کښیناوه او ویې ویل : زه ستا په باب مایوسه شوی وم. زه ډیری پوښتنی درنه کوم، هو! لومړی دا ووایه چې ته ډیلی ته

څه ور راغلی؟ وعده دی کړې وه چې زر بلخ ته راستون شی بیا دومره ولی وځنډیدی؟

طاهر د دی پوښتنو په ځواب کی خپله ټوله کیسه لنډه لنډه واوروله، شیخ وویل

: اوس خو به بیرته د تیښتی اراده نه لری؟

: زه د جلال الدین ملګرتیا نشم پریښودلای، که هغه له دی ځایه وخوځیږی نو زه به هم ورسره ملګری کیږم.

خو اوس لږ تر لږه تر یوې هفتی پوری زه همدلته یم.

: ما په نژدی وخت کی د ډیلی د پریښودو اراده کړې وه.

: چیرته به ځی؟

: مدینی، بغداد او یا دمشق ته ، ثریا ټینګار کوی چی مدینی ته ولاړ شو خو ماتر اوسه پریکړه نه ده کړې ستا په ګومان کوم ښار ډیر خوندی دی؟

: مدینه په هر دلیل ښه ده.

: ستا کور هم هلته دی که نه؟

: هوکی! مدینی ته ډیر نژدی، که ته زموږ په کور کی اوسیدل ومنی نو زه د خپل نوکر استولو ته درسره تیار یم.

: شکریه ! خو دوه کاله پخوا ما په مدینه کی یو کور او یو بڼ پیرلی دی، دوه تنه نوکران می بغداد او دمشق ته هم استولی دی هغوی به هم هلته کوروړنه راته اخستی وی، اوس د یوی خبری پریکړه پاتی ده. هغه دا چی ته دی خپله میرمن له ځانه سره بیایی که یی سمدستی له موږ سره استوی.

طاهر په اندیښنه وویل : زما میرمن!

: هوکی ستا میرمن! زما مطلب دا دی چی له واده وروسته!

شیخ خپله خبره پوره نکړای شوه د شاته کوټی دروازه خلاصه شوه او د شیخ بوډی میرمن دننه ورغله، طاهر جګ شو سلام یی وکړ، هغی په مینه او شفقت ورته وویل : کښینه بچیه!

شیخ وویل : هو ما ویل چی!

حنیفی په غوسه ورته وکتل او ویی ویل : ښایی تا دا ویل چی نور باید بیله ځنډه د طاهر او ثریا واده وشی.

: نه! ما دا ویل چی دی غواړی ثریا له موږ سره واوسی که یی له ځان سره بیایی؟

: تو دا هم څه د پوهتنې خبره ده، تر څو دی له جگړې نه بیغمه شوی نه وی ثریا به له مور پرته چیرته ارسیدای شی؟

: زه همدغه وایم. زما مطلب دا ؤ چی د واده نه وروسته یی که د ثریا له ځانه سره بیوالو اراده وی چی زه یی پری بدله کړم.

: مگر تا خو تر دی وخته دا پریکړه نه ده کړی چی واده باید څه وخت وی؟

: ما پریکړه کړی ده.

حنیفه پریشانه شوه ویی ویل : څه وخت؟

: د شپی چی کله اسماعیل وویل چی هغه په جومات کی طاهر لیدلی دی، ما په خپل زړه کی دا پریکړه کړی وه بلکی قسم می خوړلی چی که دی پیدا کړم نو ژر تر ژره به یی واده کوم، اوس که د ده څه اعتراض نه وی نو نن به قاضی راوغواړم.

طاهر له حیانه سترگی ښکته واچولی ځواب یی ورکړ: زما به په دی څه اعتراض وی.

حنیفی وویل : خو په تیاری او په میلمستیا لږ تر لږه دوی ورځی لگیږی.

شیخ وویل : دوی ورځی؟ ته له همغی ورځی په تیاری بوخته یی په کومه ورځ چی طاهر له بلخه روان شو، د میلمستیا لپاره ته راته ووایه د ماښام نه دمخه به ټول ښار دلته درته راولم.

: مگر لږ تر لږه دوی ورځی دمخه باید خلك خبر شی، د ښار د امیرانو ډیری ښځونی د ثریا ملگری «سهیلیانی» شوی دی.

هغوی هم لږ تر لږه یوه ورځ باید وړاندی راوغوښتل شی.

شیخ له یوه اوږده بحث وروسته ماته ومنله ویی ویل : ډیر ښه سبا نه بله ورځ سهی ده، بله ورځ سهار به نکاح تړل کیږی.

* * * * *

(۵)

د ډوډی د خوراك نه وروسته شیخ تینگار کاوه چی طاهر ورکره پاتی شی خو هغه وویل : اوس ماته اجازه راکړه، په شاهی میلمستون کی به زما ملگری زما په انتظار وی. ماښام به بیا راشم.

د شیخ له اجازی وروسته طاهر چی له کوټی راووت په برنډه کی اسماعیل ورته په انتظار کی و هغه وویل : ته ځی!

که لږ نور دی ځنډ کړی وای زه به هم درسره تللی وای، استاذ راته ویلی چی د سبق له ویلو نه وړاندی به رخصت نه درکوم.

شیخ چی د اسماعیل غږ واورید بهر ته راووت او ویی ویل : ورځه بچیه! خپل سبق دی ووایه دی ماښام بیرته راځی.

اسماعیل وویل : دی ښایی په لاره بلد نه وی.

شیخ وویل : ودی لیدل، دی هر څوك تر ځان کم عقله گڼی.

طاهر په موسکا وویل : اسماعیله! ته ولاړ شه سبق دی ووایه، زه چی ماښام راغلم بیا به دواړه چکر ته ولاړ شو.

اسماعیل په نه زړه خپلی کوټی ته ولاړ، او طاهر له کوره راووت او لاندی باغ ته ووت، پر اسمان وریځی را خپری شوی، په لاره کی یوی خواته د ام ونی ولاړی وی او په دی گڼو ونو کی دننه په یوه ووکی حوض کی فواره وه، د ښتو یوی جوړی په اوبو کی لامبو وهله او ثریا د مرمر په ډبرو ناسته وه.

طاهر چی د هغی له څنگه تیریده ودرید، او هغی چی دی ولید جگه شوه.

: ته ځی! ثریا په شرمناکه لهجه وپوښتل، هغی اوس طاهر ته د نیغ کتلو پرځای سترگی ښکته اچولی وی، طاهر خپله لاره پریښوده دی ته نژدی ورغی ویی ویل:

زه په شاهی میلمستون کی خپلو ملگرو ته ورځم. ترماښام پوری به بیرته راشم.

: اسماعیل درسره واستوم!

: نه هغه سبق وایی، ماتاته یوه ضروری خبره کوله.

: ووایه!

: خبره داسی ده چی ... طاهر په فکرونو کی ډوب شو

: ثریا ټکان وخوړ هغه ته یی وکتل او ویی ویل :

ووایه ولی چوپ شوی؟

: زه پر دی فکر کوم چی دغه خبره څه ډول پیل کړم؟

ایا دا غوره نه ده چی ته نن ماښام یا سبا سهار څه وخت راکړی، دی خبری ته د فرصت او یوازی توب ضرورت دی.

: که خبره دومره مهمه وی نو بیا خو یی زه همدا اوس اوریدو ته تیاره یم، تر ماښامه ښایی زما څو سهیلیانی راشی او بیا به ماته د یوازی کیدو فرصت نه

وی.

: لومړی ماته دا وعده راکړه چی ته به له خفه کیدو نه دمخه په سړه سینه زما پر خبرو غور کوی.

: که څه داسی خبره وی، چی په هغی ته له مانه د خفه کیدو اندیښنه احساسوی نو بیله څه تذبذبه راته ووایه زه وعده کوم چی خفه به نشم.

طاهر وویل : خبره دا ده چی له بلخ نه بغداد ته تر رسیدو وروسته ځینی داسی پیښی رامخی ته شوی چی له تا سره دواده نه دمخه پری خبری خپل اخلاقی فرض بولم.

ثریا حیرانه شوه طاهر ته یی وکتل او ویی ویل :

ووایه له بلخه چی بغداد ته ولاړی څه درپیښ شول؟

: ماته معلومه وه چی...!

: ته مه ویریږه، زه وپوهیدم، زه ستا له خوښی پرته تا په تیرو پریکړو پابندی ته نه مجبوروم.

: وګوره ته سر له اوسه بدګومانه شوی، ما یوازی د دی لپاره تاته څه ویل غوښتل چی سبا ته بیا دا شکایت ونه کړی چی په بی خبری کی دی پر غلطه پریکړه مجبوره کړم.

ثریا وویل : په نړی کی یوازی ته یی چی زه تری هیڅ شکایت نه لرم، خو ستا له دی حالت نه زه ناکراره ضرور یم.

زما له دی سره هیڅ کار نشته چی بغدا ته ورسیدی له څه ور پیښنو سره مخ شوی، زما دا تسلی ده چی له هر څه سره مخ شوی یی ښه شوی، که ته ماته دا هم ووایی چی زه هلته له بل چا سره په واده مجبور شوم نو خدای (ج) ګواه دی چی زه به له تانه څه ګیله ونه کړم، زه یوازی دومره پوهیږم چی ته به زما وی.

که هغه داسی څوك وی چی ستا په مینه کی د بل چا ور شریکیدل یی خوښ نه وی نو زه تا په واده نه مجبوروم، که ته د دی لپاره په خبرو کی دوه زړی یی چی زه په خپله مینه کی د بل چا را شریکیدل خوښ نه کړم نو بیا خو پردی خبره افسوس کوم، ځکه چی دا به په ما ستا بدګومانی وی.

: مګر تا ولی دا فکر وکړ چی ما واده کړی دی؟

: د تاسو پرځای چی ثریا تا واوریدل له خوښی یی څیره وغوړیده ویی ویل : نو له دی پرته تا بل څه ویل؟

: ښه فرض کړه چې ما همداسې ویل غوښتل نو؟
: نو څه؟
: نو تا به څه ځواب راکاوه؟
: ما به له ځوابه وړاندې څو پوښتنې درڅخه کولې؟
: څه دول پوښتنې؟
: ما پوښتل چې هغه څوك ده، څه وړ ده؟ له تا سره یې کله ولیدل،څه ډول یې درسره ولیدل، هغې څه درته وویل ، تا څه ځواب ورکړ، تا چې زما یادونه وکړه نو هغې څه وویل هغه زړه سواندی ده که جګړه ماره او ثریا وخندل.
: ثریا واوره! طاهر جدې شو هغه چوپه د حوض په غاړه کیناسته په غاښونو کې یې ګوتې وهلې په سترګو کې یې یوه شوخه موسکا وه.
طاهر له هغه سره د صفیې د لومړنې پاملرنې نه نیولې تر وروستې لیدو کتو پورې ټولې پیښې ورته بیان کړې، په پای کې د ثریا په سترګو کې اوښکې ډنډ شوې ویې ویل : راوړه هغه ګوته چیرته ده؟
طاهر له جیبه ګوته راوویستله ثریا ته یې په لاس کې ورکړه، ثریا له خپلې ګوتې ګوته را وایستله او د صفیې یې په ګوته کړه ویې ویل:
ما وبخښه، ته مې پریشانه کړې، واخله دا زما ګوته له ځان سره وساته او کله چې له هغې سره ګورې نو زما له خوا یې ورکړه، زما له طرفه دا هم ورته ووایه چې زه به د هغې د نوکرې په حیث ژوند هم د ځان ویاړ وبولم.

*****

(٦)

د طاهر د واده نه وروسته سبا ته تیمور ملك ډیلي ته ور ورسید خلکو د هغه د سربښندنې داستانونه اوریدلي وو، او چې کله د ښار دروازې ته ورغی نو د ښار د امیرانو نه پرته ډیر خلك د ده هر کلي ته دریدلي وو، کله چې هغه د شاهي میلمستون په لورې روان شو د خلکو یوه لویه ډله د هغه تر شا روانه و.
طاهر له سلطان التمش سره د خپلو تیرو لیدو کتو بشپړه کیسه ورته وکړه او ویې ویل: زه افسوس کوم چې ته یوه ورځ وروسته راورسیدې، که نه نو دواده په میلمستیا کې به شریك شوی وای.
: د چا دواده په میلمستیا کې؟
: زما، زما واده وشو.

: چیرته، څه ور واده وشو؟

: پرون، ستا به په یاد وی چی د بلخ په لاره می درسره ملاقات وشو، یوه نجلی زما سره ملګری وه، او تا چی د هغی خبری واوریدلی ماته دی یو نصیحت وکړ ما ستا په نصیحت عمل وکړ.

: نو هغه له بلخه دلته را رسیدلی؟ ته ډیر نیکمرغه یی.

: زما ګومان ژ چی له تا سره به عبدالملک هم راشی او دواړه به زما په واده کی ګډون وکړی.

: عبدالملک بغداد ته روان شوی دی.

: څه وخت؟

: ستا د ایبک له راره بیلدو وروسته سلطان شوری راوغوښتله او زموږ د تولو پریکړه دا شوه چی تولو اسلامی هیوادونو ته استازی واستوو او تول د تاتاریانو «مغلو» پرخلاف یوه واحد سنګر ته راوبولو، د سلطان رایه دا وه چی بغداد ته تا واستوی خو ما دا رایه ورکړه چی ده ته په ډیلی کی هم اړتیا ده.

طاهر وویل : خو زما په خیر د عبدالملک په باب هم د خلیفه نظر ښه نه دی، زه ویریږم چی هغه هلته بندی نه کړی.

تیمور ملک ځواب ورکړ: نه هغه د سلطان د استازی په حیث هلته تللی دی. خلیفه به دومره رذالت نه کوی، سلطان جلال الدین نورو اسلامی هیوادونو ته هم استازی واستول.

یو افسر دننه ورغی خبر یی ورکړ : سلطان تاسو د ملاقات لپاره وریاندی یاست.

تیمور ملک جګ شو ویی ویل : انشا الله چی زه بیرته راغلم تا ته به دواده په خاطر یو سوغات درکړم.

ماسپښین تیمور ملک د سلطان له لیدو وروسته بیرته راستون شو نو طاهر یی خپلی کوټی ته ور وغوښت او ویی ویل : ما تاته د یوه سوغات درکولو وعده کړی وه زه خپله وعده ترسره کوم، هغه سوغات دا دی چی ته به تر بل امر پوری په ډیلی کی وی، او تر څو سلطان جلال الدین په هندوستان کی وی تاته به دوهم امر نه کیږی، زه سبا ته روانیږم، ته به په ډیلی کی د سلطان د سفیر په حیث اوسیږی.

ددی ویره ده چی ځینی ترکی سرداران به سلطان التمش زموږ د پاچا پرخلاف

راوپاروی، خو تا چی په څو ملاقاتونو کی پر سلطان څومره اغیزه کړی ده د هغی په پام کی نیولو سره زما باور دی چی ستا په موجودیت کی به څوك د هغه اراده وانه ړولای شی، ته خپل کار ته دوام ورکړه او د مغلو پر خلاف د پاچا، امیرانو او اولس د یوه واحد سنگر ته تیارولو لپاره خپلی هڅی کوه، سلطان التمش پری خوښ شو چی دایی واوریدل چی ته به د ده په دربار کی د سلطان جلال الدین سفیر یې، هغه ستا د خلوص او نیك نیتی نه ډیر اغیزمن دی.

ماښام مهال شیخ عبدالرحمن د تیمور ملك په ویاړ دېښار عزتمن رامیلمانه کړل، د ډوډی له خوړلو وروسته تیمور ملك وویل : طاهره! ما ستا د میرمنی لپاره هم یوه ډالی راوړی.

حاضرینو په پوره پاملرنه تیمور ملك ته کتل، تیمور ملك له خپلی غاړی نه حمایل راوپوست طاهر ته یی ور وراندی کړ ویی ویل : زه ستا میرمنی ته تر دی غوره ډالی نشم وړاندی کولی، دا قرآن کریم زما د پلار په گوتو لیکل شوی دی.

په ډیلی کی د څو نورو ورځو تیرولو نه وروسته طاهر ته د سلطان التمش د اندیښنو سببونه معلوم شول، التمش د ډیلی تخت د خپل بادار قطب الدین ایبك د مرگ نه وروسته د هغه له ناپوه زوی نه په زور ونیو، ترکی سرداران په خاص ډول ایبك پردی خوښ نه وو، هر یوه داسی گنڼله چی د ډیلی پر تخت تر التمش د دوی زیات حق دی، سرکش امیران د التمش پولادی پنجو ایل کړی وو، خو د شمال لویدیځ له لوری هغه ته له مغلو نه خطر ؤ او په جنوب کی راجپوت تنظیم کیدل، په داسی حالاتو کی د التمش دا اندیښنه بی ځایه نه وه چی که د تاتاریانو او یا راجپوتانو سره د جگړی وخت راشی نو د ده د پوځ ځینی ترکی سرداران چی تر اوسه داده نه دی ښایی له غلیم سره یوځای شی.

کله چی عین الملك ډیلی ته ورسید او د سلطان له باغی سرادارانو سره یی جوړ جاړی پیل کړل، نو سلطان یو نوی خطر احساس کړ، تیمور ملك له سلطان سره تر لیدو وروسته له عین الملك سره سخت چلند وکړ، له رخصتی نه وړاندی هغه د څو وتلیو سردارانو سره ولیدل، هغوی یی د راتلونکی خطر نه وویرول او دوی ته یی د اتحاد او یووالی لارښوونه وکړه.

د تیمور ملك له تلو وروسته طاهر د امیرانو د یو والی او متحد کولو هڅو ته دوام ورکړ، په څو ورځو کی د سلطان د مخالفو امیرانو له دلی نه څو تنو چی د طاهر ویناوی واوریدی دا لوړه یی وکړه چی د خطری په مهال به د سلطان سره بی

وفايي نه کوي، له هغه وروسته طاهر اولس ته پام واړاوه، د ډيلي په جوماتونو کي د هغه د څو ويناګانو نه وروسته څو اميرانو هم دا احساس کړه چي که موږ ځانګړي او يوازي پاتي شوو نو د اولس ذهنيت به يي پرخلاف شي او سلطان به يي په آساني وځپي، ځکه خو هغوی هم له سلطان سره د وفاداري اعلان ته مجبور شول، د طاهر د دي برياليتوبونو يو ستر سبب د ثريا هڅي وي، له طاهر سره دواده نه دمخه د ډيلي د اميرانو ميرمنو او لوڼو هغه يوازي د يوه شتمن سوداګر ښکلي لور بلله خو د دي په واده کي د پاچا او ملکي ګډون دا د ټولو لويو کورنيو د پام وړ وګرځوله، اوس دوی ته د ثريا د ژوند ډير نور روښانه اړخونه معلوم شول، ددي په باب به په هر مجلس کي خبري کيدلي او چي چيرته به څلور ښځي راټولي شوي د دي په باب به يي څه ويل.

يوي به ويل : ما اوريدلي دي چي ددي بابا يوازي يو ساده سوداګر دي چي د روپيو ګټل يي زده دي.

بلي به ويل : مګر د هغه انا ډيره هوښياره ده، د ډيرو اميرانو ښځي آن د صدر-اعظم ښځه يي مشره مور بولي، څوك چي د هغي په خبرو تر تأثير لاندي رانشي هغه ته ګران بيه سوغاتونه ورکوي او تابع کوي يي.

ما اوريدلي دي چي ملکي ته هم هغي يو هار ورکړي دي ځکه خو ملکي هم د ثريا په واده کي د زيوراتو يوه ډکه صندوقچه هغي ته ورکړه.

: ما اوريدلي دي چي د ثريا پلار د کوم ښار حاکم ؤ، چي له مغلو سره په جګړه کي شهيد شو.

: هغه ډيره نيکمرغه ده له بابا سره يي ډيره زياته شتمني او دولت دی.

پلار يي يو زړور او سربښندوی سرتيری ؤ . او خاوند يي د سلطان جلال الدين سفير او زموږ د پاچا ډير نژدي دوست ډی. وايي چي له ځيري نه بلکل پرښته ښکاري او په غږ کي يي جادو دي.

د ډيلي د بانفوذه اميرانو په سره يو کولو کي چي ثريا د طاهر سره مرسته وکړه او کوم برياليتوبونه يي وګټل د هغي په سبب هغه د طاهر د ميرمني او د شيخ عبدالرحمن د لمسۍ پرځای د قوم د يوی درني لور په حيث وپيژندل شوه.

هغي يوه ورځ د ښار د عزتمندو کورونيو ښځو ته ميلمستيا وکړه هغوی ته يي د مغلو د ظلمونو له بيانولو وروسته وويل چي خپل ميړونه او ورونه د غفلت له خوبه راپاڅوي که نه نو د وحشت او بربريت دغه توپان د ګاونډيو هيوادونو د تباه کولو

نه وروسته اوس د هندوستان دروازې تکوي، د ټولنیز خطر د دفاع لپاره ټولنیز جهاد ته اړتیا ده.

ثریا هغوی وپوهولې چې که د قوم لوڼې خپله ذمه واري وپېژني نو په نارینه ؤ کې یو هم د خیانت او غداري جرئت نشي کولی.

ښځې خپلې مېړونه، خوېندې خپل ورونه او مېندې خپل زامن د اولس په ملاتړ مجبورولی شي، یوازې د نارینه ؤ اتحاد او یو والي کولی شي د اولس د لوڼو او مېندو ساتنه تضمین کړي.

ثریا د هندوستان پر حالت د تبصرې په ترڅ کې دوی ته وویل که د پاچا او امیرانو اختلافونه لرې نه شول نو د مغلو په اشاره به د دې هېواد په لکونو نا مسلمان خلك زموږ پرخلاف راپورته شي.

د ثریا خبرې دومره اغیزمنې وې چې ټولو ښځو د خپلو خپلو نارینه ؤ د پوهولو ژمنې وکړې، دا پېیل ډېر امید وارکونکی ؤ، له دې وروسته د هرې محلې ښځو ثریا ته د تبلیغ بلنه ورکوله، نژدې هر ماښام به په کوم کور کې د ښځو غونډه وه او ثریا به هغوی ته وینا کوله.

شیخ عبدالرحمن د طاهر په موجودیت کې د ډیلي پرېښودلو اراده وځنډوله.

سلطان جلال الدین خوارزم شاه د سند په ساګر سیمه کې واړول او د بهرنیو پیغامونو د ځواب په انتظار شو.

طاهر او ثریا په څو اونیو کې د ډیلي په مسلمانانو کې نوي ساه پوه کړه، له هغه وروسته دوی د سلطان التمش په غوښتنه نورو ښارونو ته مخه کړه، په هر ښار کې د دوی ډېر تود هرکلی وشو. ثریا به ښځو ته تبلیغ کاوه او طاهر به په نارینه ؤ کې د ایمان جذبه راژوندې کوله.

هغه به په جوماتونو کې وینا کوله، د پوځیانو چونیو ته به تلو او د سرتېرو مشقونه به یې لیدل، له هغوی سره به یې د توري وهلو، نیزه بازي او غشي ویشتلو په تمرین کې ګډون کاوه.

د خبرو او عمل دغه غازي څو میاشتې وروسته بیرته ډیلي ته راورسید، سلطان التمش یې مننه وکړه ورته وې ویل :

اوس زما باور دی چې د سند له دریابه تر بندیاچل پورې ټول بغاوتونه چوپولی شم، اوس که مغلو هند ته د راتلو جرئت وکړ نو انشاء الله له هغوی نه به یو هم ژوندی ولاړ نه شي.

څو ورځی وروسته د سلطان جلال الدین استازي ډیلی ته ورسید دا خبر یی راوړ چی د خلیفه له لوری د خپلی غوښتنی په ځواب کی د حوصله ناك ځواب له اوریدو وروسته سلطان د هندوستان پرځای بغداد د خپلو فعالیتونو مرکز گرځوی.
د دی خبر نه وروسته طاهر ته استازی د تیمور ملك لیك وسپاره چی داسی ؤ:
د خلیفه له خوا د امید وارورنکی ځواب له راتلو وروسته سلطان بغداد ته د تلو پریکړه کړی ده، موږ به په څو ورځو کی ملتان ته ورسیږو، د سلطان امر دی چی ته هم هلته راشه، سلطان د سند او مکران له لاری بغداد ته درومی، سلطان التمش ته دا پیغام ورسوه چی کله بغداد ته ورسیږو موږ به د مصر، شام او عربی هیوادونو د ملاتړ ترلاسه کولو نه وروسته تاسو له خپلو ارادو او راتلونکی عزم نه خبروو، تر هغه وخته مو لیندی جوړی او توری تیری کړی.
طاهر د تیمور ملك له لیك سره د ثریا کوټی ته ورننوت، ثریا چی ولید پوښتنه یی وکړه: استازی پیغام راوړی؟
طاهر لیك د هغی په لاس کی ورکیښود ویی ویل : واخله پخپله یی ولوله.
ثریا د لیك له لوستلو وروسته هغه ته وکتل او تری ویی پوښتل :
تا څه وخت د تلو پریکړه کړی ده؟
: سبا یا بله ورځ.
: مگر ته لږ اندیښمن یی، زما په باب چورت مه وهه.
: ثریا! په دی کی شك نشته چی له تانه بیلتون ماته اسانه نه دی، خو اوس زما د اندیښنی سبب بل څه دی.
: خبره داسی ده چی زه له خلیفه نه ډاډه نه یم، زه ویریږم چی بغداد ته د سلطان تگ د ده د زحمت سبب نه شی.
کیدای شی چی د خلیفه په باب زما رایه غلطه وی خو د نورو امیرانو په منځ کی ځینی داسی دی چی په هر وخت کی خلیفه په غلطه لاره بیولی شی، زما دا اټکل دی چی تر اوسه به مغلو د بغداد زیاتره وتلی امیران پیرلی وی.
ثریا وویل : مگر د عبدالملك په باب خو ستا رایه دا وه چی هغه ډیر هوښیار سړی دی، که څه د خطر خبره وای نو خامخا به یی سلطان ته د بغداد د تلو مشوره نه ورکوله.
طاهر وویل : خدای دی وکړی چی د هغه د نیك نیتی په باب د طاهر خبره دروغ شی.

ماښام چی کله شیخ ته د طاهر تیاری معلومه شوه نو هغه وویل زه یوازی ستا په خاطر په ډیلی کی پاتی وم اوس زه مدینی ته روانیږم، هلته به د حج نه وروسته دمشق او یا کوم بل لوری ته د تگ پریکړه وکړم.

حنیفی طاهر ته تسلی ورکړه وبی ویل : زویه! ترڅو ته بیرته نه یی راغلی موږ به په مدینه کی اوسیږو، موږ به ستا کور هم وینو.

طاهر وویل : زه زید له تاسو سره پریږدم چی ولاړ شی، هغه به تاسو زموږ کور ته بوځی او زما باور دی چي تاسو به لږ تر لږه، یوه موده د ده میلمستیاومنی.

حنیفی وویل : که د ثریا خوښه وه موږ به یی هملته پریږدو.

شیخ وویل : ثریا ماته ویلی چی سلطان جلال الدین د پوځ لپاره پیسو ته اړتیا لری، په بلخ، بخارا او سمرقند کی زما زیات تاوان وشو، بیا هم زه یو لك دیناره ورکوم، ته دا سلطان ته ور وړه.

سلطان التمش هم ماته د هغه د مرستی وویل.

د رخصتی په ورځ سلطان التمش د جلال الدین د مرستی لپاره د اشرفیو صندوق ورکړ او تر ملتان پوری یی د طاهر د رسولو او د اشرفیو د صندوق د ساتنی لپاره یوه ډنگی سرتیری ورسره واستول.

# خيانت

په لاره کې د کرمان، اصفهان او نورو ځايونو اميرانو د مغلو په مسون د خپلواکۍ اعلان کړی ؤ، سلطان جلال الدين په راتلونکي کې له دوی نه د وفادارۍ ژمنې واخستلې او تير اشتباهات يې ور وبخښل او جګړې ته يې د تياريدو امر ورته وکړ پخپله بغداد ته روان شو.

عبدالملك چې له بغداده بيرته راستون شو سلطان ته يې داډ ورکړ چې سلطان د مغلو خطر نژدې احساس کړی خپله رايه يې بدله کړې ده، او هغه د خوارزم شاه د مرستې لپاره لښکر تياروي، د خليفه ليك هم ډير اميدواروونکی ؤ، خو طاهر، تيمور ملك او د سلطان څو نور ملګري پوره داډه نه وو.

تيمور ملك پاچا ته مشوره ورکړه چې دی دې له بغداده بهر څو ورځې پاتې شي څو تنه به بغداد ته واستوو نوې وضعه به معلومه کړو امکان لري چې خليفه ستا د لرې اوسيدو په صورت کې مرستې ته چمتو وي خو بغداد ته ورتګ دې خوښ نه کړي.

ددې ټولو اعتراضونو په ځواب کې پاچا وويل:

خليفه د دښمن پرخلاف د يو کيدو بلنې ته لبيك ويلی دی، هغه زموږ د ليك په ځواب کې ويلي دي چې هغه له موږ سره نور پاچاهان مرستندوی وليدل نو خپل لښکر به زموږ مرستې ته راواستوي او نورو پاچاهانو موږ ته دا شرط ښودلی دی چې هغو ته د خليفه د مرستې ډاډ ورکړي. په دې وضعيت کې موږ همدا يوه لار لرو چې بغداد ته ولاړ شو او د خليفه له لورې د شام، مصر او مراکش، پاچاهانو ته دا پيغام واستوو چې په جهاد کې زموږ ملاتړ وکړي.

که د خليفه نيت پاك نه وي هم زموږ باور دی چې هغه به په بغداد کې پر موږ لاس نه پورته کوي، که د عام ذهنيت له ويرې هغه د طاهر او د هغوی د ملګرو له کړو وړو نه په سترګې پټولو مجبور شوی ؤ نو زموږ پرخلاف به هم يوازې دومره فکر وکړای شي چې موږ هلته تنګ کړي تر څو د بغداد پريښودو ته مجبور شو،

زموږ سره د دی پروا نشته.
خو زموږ باور دی چی له خلیفه سره په لومړی کتنه کی به د هغه ټولی اندیښنی لری کړو، موږ به هغه ته ووایو چی که تاسو زما د پلار اشتباه نه شی بخښلی نو ماته یی سزا راکړی مګر مسلمانان د مغلو له غلامۍ‌نه وژغوری، موږ د خوارزم د پاچا پرځای داسی څوك وبولی چی د اسلام د ناموس د ساتنی لپاره ستا تر جنډۍ لاندی د یوه سپاهی په حیث جنګیدل ځان ته ویاړ بولی.
طاهر وویل : له دی ټولو خبرو سره که بده نه منې نو زما رایه دا ده چې تاسو ما او عبدالملك بغداد ته واستوی، موږ به په څو ورځو کی د وضعی له سهی حالت نه ځانونه خبر کړو او ستاسو په خدمت کی به حاضر شو، خلیفه او د هغه نور حکام چی له موږ سره کوم سلوك وکړی له هغه نه به د دوی نیت څرګند شی، که موږ بیرته راستانه نه شوو نو معنی به یی دا وی چی موږ یی ستا د پلوی په ګناه نیولی یو، او ستا سو په اړه هم د دوی ارادی سهی نه دی او که موږ بیرته راغلو نو تاته به د بغدا د ټول حالات ووایو.
سلطان جلال الدین له دی رایی سره اتفاق وښود او طاهر، عبدالملك او مبارك ته یی بغداد ته د تلو اجازه ورکړه، له طاهر سره راغلیو دیرش تنو ځوانانو ته هم د څو ورځو لپاره بغداد ته د تلو اجازه ورکړای شوه.

* * * * *

(۲)

ماښام مهال د بغداد صدر اعظم صفیه خپلی کوټی ته ور وغوښته او د هغی په لاس کی یی یو لیك ورکړ ویی ویل:
لوری! پوره لس کاله ما د خلیفه په خدمت کی تیر کړل خو پر چا می اعتماد ونکړای شو او نه زما دا؛ ټمه ده چی څوك دی پر ما اعتماد وکړی، زما تر ټولو لویه ګناه ښایی دا وه چی په ځینو معاملو کی د خدای «ج» د رضا پرخلاف د خلیفه د خوښی تابع وم او د هغه په اشارو می کار کاوه، خو پر اسلامی نړۍ د هیبتناکی تباهی په راوستلو کی د خلیفه ملاتړ نشم کولی.
واوره لورې! جلال الدین خوارزم شاه له خلیفه نه د مرستی په ټمه بغداد ته را روان دی، زما په ټینګار هغه سلطان ته یو امیدواروونکی لیك استولی دی او زما دا تسلی وه چی دغه کار به می د تیرو ټولو غلطیو کفاره شی، خو داسی ښکاری چی تقدیر ته زما ښیګڼه منظوره نه ده، نن هغه لوی منافق او غدار مهلب

بن داؤد د مغلو د ځانګړی استازی په حیث بغداد ته راغلی، له هغه سره ځو تنه مغل سرداران هم دی، خلیفه پخوا هم د مغلو تر رعب او هیبت لاندی ؤ، مهلب د هغه پاتی حوصله او غیرت هم تری واخست، هغه خلیفه پوهولی دی چی که ته جلال الدین ونیسی او مغلو ته یی وسپاری نو بغداد به د تباهی له اوره وژغورل شی او د چنګیز خان پرځای ناست کسان به تاته تل په عزت او احترام ګوری.د خلیفه د داړ لپاره د مغلو د انعام په تمه ځو مفتیانو دا فتوی ورکړی ده چی مغلو ته خدای «ج» د ځمکی په پراخه ساحه حکومت وربخښلی دی، له دوی سره مخالفت د خدای «ج» له رضا نه د بغاوت په معنی دی او د جلال الدین مذهبی عقیده سهی نه ده، ځکه خو د بغداد پر خلکو د هغه اطاعت فرض نه دی، داسی ښکاری چې مهلب له ځو ورځو را په دیخوا دلته مصروف ؤ خو زه یی له راتلو نه هغه مهال خبر شوم چی دی له ځو مغلی سردرانو سره د خلیفه پر دسترخوان ناست ؤ.

ما د خلیفه د پوهولو هڅه کړی ده، خو هغه د مهلب د خبرو تر اغیزی لاندی دی او له مغلو نه تر خدای «ج» زیات ویرېږه نن شپه بیا خلیفه ما او د پوځ ځو تنو سردارانو ته د خبرو اترو وخت او بلنه راکړی ده ، او زما امید دی چی نن به د خلیفه په محل کی د مسلمانانو د برخلیك پریکړه وشی، د خلافت له لویو سردارانو څخه یو هم په دی نظر نه دی چی د خوارزم شاه په ملاتړ د مغلو د دښمنی خطر قبول کړی، خو زه به خپل وروستی فرض ترسره کرم. نن د قاسم اړتیا احساسوم، خو هغه ډېر لری دی زه تاته یو ډیر لوی مسؤولیت سپارم، تاته معلومه ده چی د خلیفه په خفه کولو سره ډیر لږ خلك د هغه له ماڼی نه ژوندی راوتلی شی، ښایی زما پای هم همدغسی وی، که زه تر نیمی شپی پوری کورته را ستون نه شوم نو ته سعید راوغواړه دا لیك وروسپاره او دا لارښوونه ورته وکړه چی هر څومره ژر کیدای شی جلال الدین ته یی دی ور وړی ځکه چی که خلیفه د جلال-الدین د نیولو پریکړه وکړی نو زما باور دی چی نن شپه به لښکر وریسی واستوی، او دی به دراز دنه افشا کیدو په سبب کورته راپری نږدی، ما سعید پوهولی دی، هغه به د ظاهر د پخوانیو ملګرو نه ځو ځوانان را ټول کړی او طبیلی ته نږدی به زما د حکم انتظار کوی، تر اوسه ما هغه ته نه دی ویلی چی په کوم کار پسی به یی استوم او له ضرورت نه پرته داسی مهم لیك هم هغه ته ورسپارل لازم نه بولم، امکان لري خلیفه زما خبره ومنی او جلال الدین ته ددی لیك د

استولو اړتیا نه شی، په هر صورت که زه تر نیمی شپی پوری رانه غلم نو د بغداد د صدر اعظم ورروستی فرض به د هغه وریره پوره کوی، سعید او د طاهر نور ملگری تر ما پر تا زیات اعتماد کوی.

صفیی وویل : ته داده اوسه زما لخوا به لتی ونه شی. صدر اعظم وموسکل وبی ویل : زما پر تا اعتماد دی،که قاسم هم دلته وای بنایی د دی کار لپاره زما نظر پر تا وای.

صدر اعظم شاهی مانۍ ته راستون شو.

* * * * *

(۳)

د ماسختن لمانځه نه لږ وروسته د صدر اعظم په مانۍ کی فریادونه اوچت وو، د مانۍ ټول نوکران پر هغه راغونډ شوی وو، د هغه د ټټر او پوښتیو له ټپونو نه وینی روانی وی، صدر اعظم سترگی وغړولی او په هوښ راغی، په تیټ غږ یی پوښتنه وکړه : زه دلته څنگه راغلم؟

یوه نوکر وویل : ته چی دروازی ته راورسیدلی وغورځیدلی، موږ راواخستی او دلته مو راوړی.

: او هغه نوکران چی له ما سره ؤ څه شول؟

یو نوکر ور وړاندی شو وبی ویل : زه معمولی ټپی یم!

حامد ووژل شو.

: تا هغوی وپیژندل؟

: هو! ما مهلب وپیژاند، کله چی ته د خلیفه له درباره راووتی هغه له تا سره یوځای ؤ، موږ دواړو له زینی نه څو گامه لری ستا د راتگ انتظار کاوه، کله چی ته لاندی راکوزیدی نو څلور تنو چی نقابونه یی پرمخ راکش کړی وو د ونو له سیورو نه راووتل پر تایی حمله وکړه.

تا مخ واړاوه او د دروازی په لوری دی منډه واخستله خو مهلب دی لاره ونیوه او په خنجریی دوه دری واره درباندی وکړل او د مرستی لپاره یی چیغی کړی. حامد زمانه وړاندی ؤ هغه پر مهلب حمله وکړه خو هغه ځان یوی خواته کړ او بچ شو او حامد د یوه مول وهلی د توری په گوزار ټپی شو او وغورځید زه ور وړاندی شوم یو مول وهلی می وواژه، نورو دریو حمله رالباندی وکړه، ما یو بل هم وغورځاوه، په دی جګړه کی د خلیفه د مانۍ نه نور سرتیری راووتل، مهلب ژر

راغی او وېی ویل سپاهیان راغلل راځی او بیا هغوی وتښتیدل زما تا ته پام شو، ته له هغه ځایه مانی ته تللې زه په منډه درغلم او څوګامه درسره ولاړم او بیا په دې ګومان ودریدم چې هغوی به په تا پسې راشی کله چې پوه شوم چې ته مانۍ ته نژدې شوی زه هم راغلم.

صدر اعظم وویل : سعید چیرته دی؟

سعید نوکران په یوه او بله خوا لری کړل او د هغه د بستری ترڅنګ ودرید، صدر اعظم د خپلی میرمن، لور، صفیی او سعید نه پرته نور نوکران له کوټی و ایستل.

کله چې کوټه تشه شوه سعید ته یې وویل : ستا په ذمه چې کوم کار دی صفیه به یې درته ووایی ملګری دی تیار دی؟

: هو صیب!

صدر اعظم خپلی میرمنی ته وکتل: زمانه وروسته به ستا لپاره دا غوره وی چې مصر ته ولاړه شی، زه د لږ څنډ میلمه یم.

صفیی وویل : کاکا! ما تر اوسه تاته یوه خبره نه ده کړی طاهر ژوندی دی، او که ستا بدل بل چا وانه خست نو هغه به یې خامخا اخلی.

: لوری رښتیا وایه! زما په زړه یو دروند بار ؤ.

: هو دا رښتیا ده پر هغه یې د مړه ګومان کړی ؤ او سیند ته یې غورځولی ؤ، دا سعید ته هم معلومه ده.

صدر اعظم په سوالیه نظر سعید ته وکتل هغه وویل : هو صیب هغه ژوندی دی.

صدر اعظم صفیی ته وکتل وېی ویل : صفیی لوری! زما د ورتګ نه وروستی خلیفه د سلطان جلال الدین د نیولو لپاره د برش زړه ته سرتیری استولی وو، اوس دی ته خپل فرض پوره کړه.

تن شپه به هغوی دیر زیات مزل کړی وی...

سکینی ما له تا سره د خبرو فرصت ونه موند... تن له ما سره کښینه.

د سکینی اوښکی بهیدلی او د هغه ترڅنګ کښیناسته، صدر اعظم څو شیبی دی ته وکتل او بیا یې سترګی پټی کړی له درده یې زګیروی وکړ، لږ څنډ وروسته یې سترګی خلاصی کړی او په اشاره یې اوبه وغوښتی، سعید هغه ته تکیه شو او راپورته یې کړ، صفیی یې د اوبو پیاله پرشونډو ورکیښوده.

د یو غورپ اوبو نه وروسته یی بیا سترگی پتی کړی او څملاست، سکینی وویل : بیهوښه شو.
سعید زر د هغه خوله وازه کړه صفیی ته یی وویل چی اوبه وروڅښی.
صفیی یی په خوله کی اوبه ورواچولی، خو د هغه له ستونی د تیریدو پرځای تر دوارو واښکو بیرته تویی شوی، صدر اعظم سترگی وغړولی او څو ځلی د بندی بندی ساه کښلو وروسته په ابدی خوب ویده شو.
صفیی، سکینه او کاکا ناوی په ژړا پریښودی اوښکی یی تویولی او بهر راووتله، سعید وریسی ؤ.
: زه ستا د امر انتظار کوم، هغه وویل.
صفیی ځواب ورکړ : ودریږه! زه اوس راځم، لږ ځنډ وروسته صفیه له خپلی کوټی راووتله، هغی د سپارلی جامی اغوستی وی او په ملا یی توره ځوړنده وه.
هغی د یوی خدمتدگاری په لاس کی یوه پانه ورکړه ویی ویل : سبا ته دا رقعه سکینی ته ورکړه.
سعید په حیرانی هغی ته کتل. دی ورته وویل : سعیده راځه.
: مگر ته له موږ سره ځی؟
: هو! زه به له تاسو سره ځم کاکا راته ویلی وو چی دا د ده د ژوند وروستی او ډیره مهمه ذمه واری ده او زه یی پوره کول غواړم.
: مگر ته باید پر ما اعتماد وکړی.
: زما پر تا اعتماد دی، خو زه ویریږم چی هغه به ستا له لاسه کوم پیغام ته ارځښت ورنکړی، له د ینه پرته مهلب ما ډیره ښه پیژنی، زه دلته په پاتی کیدو ددی کور بدمرغی نوره زیاتول نه غواړم.

*****

(٤)

د لمر له راختلو نه لږ وروسته طاهر او د هغه ملگری د یوی غرنی سیمی نه تیریدل، په یوه پراخه سیمه کی ورننوتل چی مخامخ یی په غونډیو کی اته، لس تنه سپاره ولیدل چی اسونه یی چارگام زغلوی. په هغوی پسی د پنځوسو تنو سپرو په شاو خوا کی بله ډله وه، طاهر په ځیر د لیدونه وروسته عبدالملك ته وویل:
.
داسی ښکاری چی هغه وروستنی په مخکنیو پسی راغلی دی او موږ یی باید

مرستی ته وروورسیږو.

عبدالملك وویل : هغوی له شانه غشی ورپسی را اوروی، وگوره یو تن یی زخمی شو لویږی، تعقیبوونکی په دوو ډلوویشل شول او هغوی غواړی را ایسار کړی او تښتیدونکی یوازی ځانونه ژغوری، جگره کول نه غواړی، موږ باید د هغوی مرسته وکړو.

طاهر خپلو ملگرو ته مخ واړاوه او په لوړ غږ یی وویل : ژر کوئ چی هغوی یی په منگولو کی را ایساریدونکی دی.

د سترگو په رپ کی د طاهر ملگری له غونډیو نه دری ته ورکوز شول، طاهر په لوړ اواز وویل : وگوره د تولو دمخه لکه چی یوه ښځه ده، ته د کیڼ لوری سپاهیانو مخه ونیسه، زه ښی خواته ورځم، هغوی له دواړو خواونه د غشو تر دم لاندی راغلی دی، هغوی ته خوږ آزاد پریږده که هغوی په موږ هم د غلیم د ملگریو گومان وکړ او په یوه او بله خوا د مخ اړولو هڅه یی وکړه نو ویه وژل شی.

د طاهر ملگری په دوو برخو وویشل شول او د شاډلی مخه یی ونیوه، تښتیدونکو دوی خپل مرستندویان وگڼل تر لږ وړاندی تیریدو وروسته ودریدل.

طاهر وړاندی ورغی په لوړ غږ یی وپوښتل : تاسو په هغوی پسی ولی راغلی یاست؟

د ده په ځواب کی یو تن چی خول یی پر سر ؤ او د ډلی مشر معلومیدو را وړاندی شو ویی ویل : دا د خوارزم شاه جاسوسان دی، تاسو زموږ لاره مه نیسی.

: تاسو د خلیفه سپاهیان معلومیږی، ښایی تاسو ته معلومه نه وی چی د خلیفه او خوارزم شاه ترمنځ د دوستی تړون شوی دی.

: پردی خبرو موږ ډیر ښه پوهیږو. ته زموږ له مخی لری شه، که نه نو په لری کیدو به دی مجبور کړو.

: نه تر څو موږ ته دا معلومه نه شی چی هغوی څه گناه کړی موږ به یی ساتنه کوو.

: موږ شکمن یو چی دوی خوارزم شاه ته ورځی.

: تاسو یوازی په شك د خلکو د وژلو اجازه نه لری او بیا خوارزم شاه ته ورتلل خو گناه نه ده.

: نو د مقابلی لپاره چمتو شه!

طاهر ځواب ورکړ : د مسلمان وینه ډیر ارځښت لری، غوره دا ده چی بیرته

ستانه شي، تاسو تر پنځلس شلو تنو زيات ياست، خو زما سره داسي سرتيري دي چي په ډيرو ډګرونو کي يي د خپلو متو زور ازمويلی دی.

موږ تاته ډاډ درکوو چي د خليفه دښمنان نه يو، تاسو دلته ودريږئ، زه يو سړی هغه ته وراستوم که هغه موږ ته ډاډ رانکړای شو نو پخپله به يي ونيسو او بغداد ته به يي بوځو.

طاهر عبدالملك په اشاره نژدي وروغوښت او ورته ويې ويل: ته ورشه وګوره څوك دي؟

پوځي افسر وويل ته څوك يي؟

طاهر ځواب ورکړ : ويريږي مه موږ مغل نه يو مسلمانان يو.

: که تاسو مغل وای نو زموږ لاره به مو نه وه نيولی.

: د ويري او که د دوستي په سبب؟

افسر لږ له دوه زړي وروسته د خبرو موضوع بدله کړه ويې ويل : ستا لهجه او غږ داسي سړي ته ورته دي چي ما پيژاند، هغه هم ستا په څير په هر کار کي ښه کلکه ايښودله.

ښايي زما څيره هم هغه ته ورته وي، او ښايي چي زه هماغه سړی وم.

: هغه مړ شوی دی!

: کله کله مړي هم ژوندي کيږي.

: ته کټ مټ د طاهر بن يوسف په څير غږيږي.

: طاهر بن يوسف مړ شوی دی، او نن د هغه يو دوست د هغه په تعقيب د مرګ په درشل پښه ايښي ده، ستا غږ او لهجه يوه داسي چاته ورته ده چي منصب په تمه يي د خپلو دوستانو د نيولو وعده کړي وه.

: ته څوك يي؟

: که ته د دوستانو په هيرولو عادت نه وي نو ښايي ومي پيژني! طاهر دا وويل او خول يي له سره لري کړ.

: طاهره... ته !!

: هو! افضله! ايا ته خپله څيره نه راښکاروی؟

: که تر اوسه شکمن يي لږ وړاندي راشه.

: مګر ته خويې ...!

: هو ماته يي زهر راکړل. خو هر زهر وژونکی نه وي!

: طاهره! خدای «ج» شاهد دی چی زه په هغه سازش کی شریك نه وم او ستا د نیولو لپاره می څه دسیسه نه وه جوړه کړی.

طاهر خول پرسر کیښود ویی ویل :زه افسوس کوم چی تاته د دی موقع په لاس درنه غله چی ما ونیسی، اوس پوښتنه کولی شم چی په کوم نیت دلته راغلی یی؟ او دا خلك څوك دی چی ورپسی راغلی؟

: زه تاته څه نشم ویلی، یوازی دومره ویلی شم چی تا زما لاره ونیوله د لښکرو د مشر د امر مخالفت دی وکړ.

: د لښکرو مشر! هغه چیرته دی؟

: زه دا نشم ویلی.

: نو ستا خیر په دی کی دی چی ببرته وگرځه!

: ته پوهیږی چی زه بی زړه نه یم.

: ترڅو ته غدار نه وی زما همدا رایه وه، خو غداری او زړورتوب په یوه وجود کی نه راټولیږی.

: ماته یوازی د هغو خلکو د تعقیبولو امر شوی، که د لاری په نورو خلکو د توری اوچتولو حکم وای نو ماته به دی د بی غیرتی پیغور نه ؤ راکړی.

: کله چی ته پوهیږی چی زموږ له مړیونه تر تیریدو دمخه په هغوی پسی نشی ورتلای، نو بیرته ولی نه ستنیږی؟

افسر څه ځواب ورنکړ او په زړه نا زړه حالت کی یی خپلو ملگرو ته وکتل، په دی څنډ کی عبدالملك اس وزغلاوه او طاهر ته نږدی ورغی او د افضل پر خلاف یی نیزه برابره کړه.

طاهر وویل : عبدالملکه! د جگړی اړتیا نشته، دا زموږ دوست افضل دی او په غالب گومان یی د بیرته ستنیدو پریکړه کړی ده.

عبدالملك وویل : دی اوس د ځان په باب هیڅ پریکړه نشی کولی، افضله تیار شه!

طاهر چیغی کړی : نه، نه عبدالملکه ودیږه! خو عبدالملك ده ته د پام کولو نه پرته اس پونده کړ او پر افضل یی حمله وکړه، افضل د ځان ژغورلو هڅه وکړه خو د عبدالملك نیزه د هغه تر تېر بوټه وختله.

دواړه لوری د یوی شیبی لپاره چوپ شول، عبدالملك اس راوگرځاوه او د دوی په منځ کی ودرید د افضل ملگري یی مخاطب کړل په لوړ آواز یی وویل:

په تاسو کې نور څوك شته چې د خليفه نمك حلالوي؟
دغه وچه ځمکه د منافقينو، غدارانو او خاينانو وينې ته تږې ده، ماته وګوری زه عبدالملك يم، بنايي په تاسو کې ډير ما وپيژني، عبدالملك يوه شيبه خول له سره لرې کړ او بيا يې بيرته پر سر کيښود وېې ويل : کاشکې تاسو ژوند او مرگ پيژندلی، تاسو د کمزوری په مخ کې زمريان او د زورور په وړاندې گيدړان شی.
تاسو په سپڅو غشی اوروی، خو چې ميړونه وويني لړزه درباندې راشی ولاړ شی خپل سالار ته ووايې چې کوم ځنگل ته د ښکار لپاره راغلی هلته سوی نشته، پړانگان پکې اوسيږی. له خوارزم شاه سره لږ خلك دی خو د دوی هريو له زړگونو سره په جگړه پوهيږی، ورشی!
که زما سره دا احساس نه وای چې زموږ توری به ستاسو له وينو نه شرميږی نو بنايي ما د تيښتی فرصت نه وای درکړی.
د افضل ملگری يو پر بل پسې وتښتيدل او په لږه شيبه کې ډگر تش شو.
عبدالملك طاهر ته نژدی راغی د هغه له څيری نه وحشت څرگنديده وېې ويل : زر راځه صفيه دی انتظار کوی.
: صفيه!
: راځه هغه تپی ده!
: طاهر د بلی پوښتنی پرته اس پونده کړ.
کله چې د غونډۍ سرته اس خوت رفتار يې کرار شو نو هغه له عبدالملك نه پوښتنه وکړه : هغه چيرته ده؟
: ما هغوی د دی غونډۍ شاته د خوړ په غاړه پريښودل.
: تپ خويی خطرناك نه دی؟
: پر هغی دوه غشی لگيدلی دی، د يوه تپ معمولی دی خو دوهم يې ډير بد په پښتيو پوری نښتی ؤ، غشی می ايستلی دی خو...!
: خو څه؟
: خدای «ج» دی خير کوی.

* * * * *

(٥)

صفيې يوی ډبری ته تکيه کړی وه او ناسته وه، سعيد اوبه ورځښلی، طاهر يې چې وليد جگه شوه ودريده، هغه له اس نه پلی شو صفيه څوگامه ور وړاندې شوه

خو بیایې سترګې توري شوې، هغې تینډکونه وخوړل او نژدې وه چې وغورځیږي چې طاهر ورمنډه کړه هغه یې په خپلو متو کې تکیه کړه او ورو یې په ځمکه څملوله.

صفیې ! ته دلته ولې راغلې؟ طاهر په دردناکه لهجه وپوښتل.

د صفیې پر شونډو غمجنه موسکا وغوړیده ویې ویل : اوس د دې خبرو وخت نشته، وګوره دغه خوږ څومره وروکی دی خو اوبه یې څومره رڼې دي، د دجلې سیند ډیر لوی دی خو د هغه له خړوپړو اوبونه ډیره ستومانه شوې وم، ستا د کلي د خرما په باغونو کې کټ مټ دغسې اوبه بهیږي.

د یخو، خوږواو رڼو اوبو خوړونه اوچیني! زه د هغوی په لټه کې دلته راغلم، د طاهر څو ملګري نژدې ورغلل خو عبدالملك هغوی یوه لوري ته ورسره بوتلل.

صفیې وویل : ته ولې خفه یې، ماته وګوره، زه خوښه یم، هو! ما ددې خوږ په باب درته خبره کوله، که زه مړه شوم ددې خوږ پر غاړه مې ښخه کړه.

:نه، نه، صفیې ته به روغه شې، ستا زخم معمولي دی، زه به تا هغو د خرما باغونو ته راسره بوزم چې د یخو، خوږو او رڼو اوبو ویالې پکې بهیږي، اوس به د پیښو د توپان هیڅ څپه هم موږ یو له بله بیل نکړای شي.

صفیې وویل : لو موږ به هر سهار پر اسونو سپاره د صحرا سیل ته به ځو.

: هوکې صفیې زه وعده کوم.

: او زه به له تاسره د ... لوبه کوم او بیا به د خرما په باغونو کې ګلونه لټوو، او کله چې ته د جګړې لپاره روانیږې نو زه به د ریګونو پر غونډۍ ځیژم او ستا لاره به څارم.

: هوکې صفیې!

د صفیې ترسترګو اوښکې روانې شوې سلګې یې وکړې ویې ویل :

نور زما سره د مرګ غم نشته، ته زمایې، زمایې!!

او بیا یې سترګې پټې کړې.

د طاهر سترګې راډکې شوې چیغې یې کړې صفیې، صفیې!

صفیې سترګې وغړولې خو څه یې ونه ویل طاهر عبدالملك ته غږ وکړ هغه په منډه راغی طاهر ورته وویل : دې ضعف کړې دی اوبه راوړه د اوبو له څو غوړپه وروسته د صفیې څیره لږ راتازه شوه په کمزوري غږ یې وویل : لکه چې ویده شوې وم، د خرما په هغه بڼ کې، د رڼو اوبو چینه بهیده... زه هلته ولاړه وم... ته

په اس سپور وی چیرته تلی... چیرته ... دیر... لری. هغی بیا سترگی پتی کړی.
په مخ یی نیلی رنگ زور واخست ورو ورو یی ویل :
تاسو څنګه مه کوی پوځ له دی ځایه... یو پړاو لری... عبدالملک یی پر لاس لاس ورکیښود بیایی طاهر ته وکتل او انا لله و انا الیه راجعون. یی وویل سر یی ځوړند شو، طاهر له دنیا او مافیها ته ناخبره د وفا او مینی دغی مجسمی ته کتل، عبدالملک د هغی پر مخ خپل دسمال وغوړاوه، او طاهر یی ترمټ ونیو ویی ویل : جګ شه! د همت نه کار واخله.
طاهر جګ شو ودرید، عبدالمك ته یی کتل د هغه له سترګو وحشت وریده، د عبدالملك په سترگو کی اوښکی ډنډ شوی او لاسونه یی وغوړول او، طاهر بی اختیاره په غیږ کی ځان ور وغورځاوه او په سلګو شو.
عبدالملك وویل : طاهره! ښایی په دنیا کی داسی انسان نه ؤ چی دا باید ورته ژوندی وای.
لږ څنګه وروسته د همغه خوړ په غاړه د طاهر ملګرو صفیه په خاورو کی ښخه کړه، طاهر د ځنګلی ګلانو څو ګیډی راټول کړل او د هغی په قبر یی وشیندل.
عبدالملك وویل : راځه طاهره چی ناوخته کیږی.
طاهر په اس سپور شو له سعید نه یی وپوښتل د لښکرو سالار له څومره پوځ سره را روان دی؟
: له شل زره لښکر سره.
طاهر عبدالملك ته وویل : د صدر اعظم لیك ماته راکړه!
بیا یی پر لیك سرسری نظر تیر کړ او ویی پوښتل: نو مهلب هلته رسیدلی دی نور نو دی بغداد خدای ساتی.
عبدالملك وویل : زه ویریږم چی سلطان زموږ له مشوری پرته بغداد ته مخه نه کړی، موږ باید زر تر زره ځانونه ور ورسوو.
طاهر اس ته پونده ورکړه ویی ویل : راځه.
په لاره کی طاهر له سعید نه پوښتنی کولی او دا ورته معلومه شوه چی دوی د سر لښکر له پوځ نه لاره کړه کړی وه خو په نیمه لاره کی د پوځ د مخی ډلګیو لیدلی وو او پر دوی پسی راغلی وو.

*****

(٦)

د سلطان جلال الدين خوارزم شاه سره دوه نيم زره تنه سرښندويان وو، له بغداده د قشمور تر مشرى لاندى د شل زره سرتيرو د راتگ خبر يى چى واوريد دوه زره تنه يى په مورچلو كى ځاى پر ځاى كړل او پخپله له پنځه سوه تنو سره وړاندى ولاړ، د يوى غونډۍ پر سر د خليفه د لښكر د راتگ په انتظار شو، په همدى وخت كى يى خبر ترلاسه كړ چى د خليفه نور لس زره تنه لښكر د يوه بل سالار مظفر الدين په مشرى د شمال ختيځ له لارى را روان دى او غواړى سلطان كلابند كړى.

د صدر اعظم د ليك له لوستلو او د عبدالملك، طاهر او سعيد نه د څو پوښتنو نه وروسته سلطان ته معلومه شوه چى د خليفه پوځيان به خامخا د ده د نيولو هڅه كوى او كه دى دلته خوندى پاتى شو هم د دوى پوځ به يى تعقيبوى، او تر هغو به يى پرى نږدى تر څو يى د مغلو په لاس ورنكړى.

كله چى د قشمور پوځ راښكاره شو نو سلطان طاهر ته د سولى بيرغ وركړ او د سولى لپاره يى خبرو اترو ته واستاوه.

طاهر قشمور ته دا پيغام ورساوه چى يا خو بغداد ته زموږ لاره مه تړى، سلطان پر دى باورى دى چى كله د خليفه په حضور كى ودرېږى د هغه بدگومانى به لرى كړى، كه نه وى نو موږ ته ددى موقع راكړى چى له دى ځايه خليفه ته پيغامونه واستوو، كه دا دواړه وړانديزونه ستاسو لپاره منظور نه وى نو سلطان د بيرته ستنيدو لپاره چمتو دى خو پر دى شرط چى تاسو به يى له شا نه نه راځى.

قشمور چى له جلال الدين سره يوازى پنځه سوه تنه وليدل د خپل ځواك د ازموينى شوق پرى غالب شو په بى پروايى يى ځواب وركړ : زموږ ړومبى او وروستى پريكړه دا ده چى سلطان موږ ته وسپارى كه نه نو مقابلى ته تيار شى.

طاهر هڅه وكړه چى قشمور قانع كړى خو هغه هيڅ وانه وريدل، هغه نورو جنرالانو ته هم وويل خو په يوه يى اغيزه ونه كړه.

طاهر مايوس شو ويى ويل : تاسو ته د دوستى او مينى له گلانو سره راغلى وم، خو تاسو د دښمنى د ازغيو لپاره لمن غوړولى، زه د سولى استازى راغلى وم خو تاسو جگړى غواړى، زه وعده كوم چى ستاسو هيله به ترسره شى. ډير د خفگان ځاى دى چى مسلمان د هر څه په له لاسه وركولو برسيره پردى وياړ كاوه چى د دوى په ځير ميلمه پال بل څوك نه وو خو نن دغه نيكمرغى هم د بغداد له اولس څخه واخستل شوه.

جلال الدین له جګړې څخه نه ویرېږې خو نن هغه توره چې په وار وار د مغلو په وینو کې دوبه او رنګ شوه د مسلمانانو له تورو سره په ټکر کېدو بڼایی وشرمېږي، خدای «ج» پوهیږي چې ددې جګړې نتیجه به څه وي خو تاسو ګواه یاست چې موږ ورته تیار نه وو او راباندې وتپل شوه.

قشمور وویل : ورځه موږ ته ددې جګړې نتیجه معلومه ده او د یوه ساعت دننه به تاسو ته هم معلومه شي.

طاهر د اس جلب کلك کړ ويې ويل : ماته یوازې یوه خبره معلومه ده او هغه دا چې د خوارزم په څير د بغداد د عظمت ورځ هم ګرځیدلی ده او په موږ کې د هر یوه برې د دواړو ماته ده.

طاهر اس ته پونده ورکړه او د سترګو په رپ کې سلطان ته ورغی.

د قشمور د پوځ عربي سربښندویو ته د طاهر د میلمه پالنې پیغور له زغم نه وتلی ؤ، په هغوی کې زیاترو پریکړه وکړه چې په جګړه کې به برخه نه اخلی، په ایرانی او ترکي سرادرانو کې هم ځینې زړه نا زړه وو، ځکه خو قشمور چې د وخت نزاکت احساس کړ سمدستي یې د حملې امر وکړ.

جلال الدین شاته خپل په مورچلو کې پوځ ته هدایات واستول او د قشمور مقابله یې وکړه، د بغداد پر پوځ له څو حملو وروسته یې شاته تګ پیل کړ. قشمور دا ګڼله چې سلطان ماته وخوړه او میدان پرېږدې په هغه پسې ورغی، سلطان به لږ مخامخ جګړه کوله او بیا به په شا تلل او د قشمور پوځ یې د هغو تونډو غونډیو منځ ته ورساوه چې تر شا یې د ده غشي ویشتونکي غلي وو، قشمور چې ناڅاپه له څلور واړو لوریو د ډبرو او غشو باران ولید دا یې احساس کړه چې د سلطان د پوځ په شمیر کې یې غلطي کړې ده، په تنګو درو کې یې د خپل لښکر نیمایي کسان مړه او ټپیان پرېښودل او په شاتګ یې پیل کړ، په بیرته ستنیدو کې یې تر درې میلو پورې له هرې ډبرې او کونج نه د غشو او ډبرو استقبال کاوه او بیا چې نه میدان نه وتښتیدل شاته یې د بیا راکتلو جرئت ونه کړ.

سلطان تر څو میله په هغوی پسې ورغی او بیا بیرته راوګرځید، په لاره کې د مظفر الدین له لس زره تنو سره هغوی مخ شول، د مظفر الدین پوځ د قشمور د پوځ په ماته بې زړه شوی ؤ له لږ مقابلې وروسته یې وسلې وغورځولې.

د دې بریالیتوبونو نه وروسته رضا کاران ډلې ډلې د سلطان په پوځ کې شامل

شول، په څو مياشتو کی د هغه د پوځ شمير شل زره تنو ته ورسيد، د تبريز والی د مغلو حليف ؤ، سلطان هغه ته د غداری د سزا ورکولو لپاره تبريز ته مخه کړه. والی د مغلو د مرستی له انتظار پرته وتښتيد او سلطان دغه ښار ونيو، د تبريز له نيولو وروسته جلال الدين شاوخوا څو نوری سيمی هم ونيولی، په دی وخت کی يی د بغداد د خليفه ناصر الدين ... د وفات او د هغه د زوی ظاهر د خليفه کيدو خبر واوريد.

# یوه بله هڅه

د ناصر له وفات نه چی خبر شو سلطان طاهر او عبدالملك ور وغوښتل د نوی خلیفه ظاهر د اخلاقو او عادتونو په اړه یی تری پوښتنی وکړی، طاهر د سلطان د پوښتنی په ځواب کی وویل:

ما له ظاهر سره یوازی یو ځل لیدلی دی، زما په گومان هغه یو کمزوری سړی دی خو بد ذاته نه دی، هغه د پلار په څیر مغل خپل دوستان نه بولی.

عبدالملك وویل : زه هغه له ډیری مودی راهیسی پیژنم، زما باور دی چی هغه د پلار پر ضد دی، خو د هغو کسانو له ډلی څخه نه دی چی خپلو ارادو ته عملی جامه ورواغوندی، بیا هم که په بغداد کی یو سهی لارښوونکی وی نو له هغه نه زیات کار اخستل کیدای شی.

سلطان وویل : زما په گومان تاسو دواړه هغه ته ښه مشاورین کیدای شی، که زه تاسو د خپلو استازو په نامه هلته واستوم خامخا به مو خبروته پاملرنه وکړی. په بغداد کی د بی طرفی په حالت کی د مصر او شام اولسونه له موږ سره ملاتړ ته نه چمتو کیږی، تاسو بغداد ته ولاړ شی، خلیفه ظاهر د ټولی اسلامی نړی لارښوونی ته چمتو کړی او ده ته دا یقین ورکړی چی تر څو زه ژوندی یم د مغلو ټول پام به خپل لوری ته راواړوم، که دی وغواړی د ټولی اسلامی نړی‌پوځونه په بغداد کی راټولولی شی، هغه ته دا هم ووایی چی په کومه ورځ موږ د بغداد، مصر او شام د پوځونو سره پر مغلو حمله وکړو په همغه ورځ به په هند کی سلطان التمش چی زموږ پلوی دی د مغلو پرخلاف د جگړی اعلان کوی. او د ایران ترکستان او خراسان اولسونه به چی تر اوسه پوری چوپ او غلی دی ناڅاپه راپورته شی.

ما دا اوس احساس کړی ده چی چاته د مرستی لپاره تر ورتگ راته دا غوره ده چی همدلته خپل مسؤولیت ادا کړم، که زه په دی گلهوډی او پردیسی کی څوکاله

له مغلو سره وجنګیدلی شم نو باور می دی چی مسلمانان به می مرستی ته را ورسیږی، په څو ورځو کی به له آذربایجان نه لس پنځلس زره تنه نور راسره ملګری شی او زه به په دی هغوی تر دوو کالو پوری نور هم پریشانه کړم، په دی موده کی تاسو تولو اسلامی نړۍ راوپښولی شی.

طاهر او عبدالملك په یوه غږ وویل : موږ تیار یو.

سلطان وویل : مبارك له ما سره پریږدی، هغه یو ښه سرتیری دی او زما ورته ضرورت دی.

څو ورځی وروسته طاهر او عبدالملك بغداد ته رسیدلی وو خلیفه ظاهر چی د دوی په ورتګ خبر شو لیدو ته یی وروغوښتل، د لومړی لیدو نه وروسته طاهر چی د جلال الدین په نامه لیك واستاوه مضمون یی داسی ؤ:

د خدای «ج» شکر دی چی موږ تر خپلی هیلی او اټکل هم زیات بریالی شوو.

مهلب چی د صدارت عظمی امیدوار ؤ له خلیفه سره زموږ د ملاقات نه وروسته چیرته غلی شوی دی، خلیفه د پوځ د سنبالولو چاری عبدالملك ته وسپارلی او زما په اړه یی دا پریکړه کړی چی زه د ده د استازی په حیث شام، مصر، عربو، مراکش او اندلس ته ولاړ شم، او زه به سبا ته روانیږم.

څرنګه چی د حج وخت نژدی ؤ، څکه عبدالملك طاهر ته مشوره ورکړه چی ته تر تولو دمخه مکی ته ولاړ شه، هلته به د هر هیواد مسلمانان راغونډ وی او ستا له پاره به د جهاد د تبلیغ تر تولو غوره موقع وی، پر دی سربیره به په لاره کی خپل کورته هم ورشی.

* * * * *

(۲)

یوه ورځ ماښام ته نژدی مهال زید یو ښکلی ماشوم په غیږ کی د خرما په باغونو کی چکر واهه چی ناڅاپه یی یو سپور ولید چی اس ګړندی زغلوی، زید څو ګامه ورغی او د سپاره د لاری پر سر ودرید، سپور چی ورنژدی شو اس یی ودراوه او له سره یی اوسپنیز خول لری کړ زید چیغه کړه:

طاهره! طاهره!! بیا یی ورمنده کړه د اس جلب یی ونیو، ماشوم ددی شور ماشور او غیر عادی حالت څخه وویریده شونډی یی بوڅی بوڅی کړی او بیا پرینګ په ژړا شو.

زید زر بیرته د اس جلب خوشی کړ ماشوم یی وتپاوه او ویی ویل : واه واه! چی

خپل پلار دی ولید زما په شکایت دی خوله پرانستله، بیا یی طاهر ته وکتل ویی ویل : ته څه ته گوری ولی له اسه نه پلی کیږی او ماشوم نه کراروی!

طاهر له اس نه پلی شو ماشوم یی واخست هغه ناڅاپه غلی شو او په څیر څیر یی طاهر ته کتل بیا یی د هغه په ځلیدونکی زغره لاسونه وهل.

: زه کور خبروم، زید دا وویل او اس یی تر جلب ونیو د خرما په بڼ کی یوه لوری ته چټك روان شو، طاهر ورو ورو څوگامه د خرما په بڼ کی واخستل او بیا ودریده ماشوم ته یی وکتل، ماشوم اوس زغره پریښوده او دواړه لاسونه یی خول ته وروغځول.

طاهر سر ټیټ کړ د ماشوم وړوکی پستی خپړی ده په مخ ولگیدی ده په زړه کی نرم او لطیف ټکانونه اوچت شول، هغه بیا د ماشوم دواړه لاسونه ښکل کړل او بیا یی د لږ ځنډ لپاره تول پام او مینه د ماشوم ښکلی څیری ته ور واوښته او بی اختیاره یی د هغه باڼرخوگان، شوندی، سترگی اوتندی ښکل کړل. زما بچیه! زما ژونده! زما روحه، او طاهر ورو ورو گامونه اخستل او د کور دروازی ته ورنژدی شو.

که دی څو ورځی دومره مینه ورسره وکړه نو دا به بدورگه کړی! طاهر ټکان وخوړ مخامخ یی وکتل ثریا څوگامه لری د دروازی نه بهر ولاړه وه او موسکل یی.

: ثریا زما...؟

ثریا زر لاس پر شونډو کیښود او دروازی ته یی اشاره وکړه طاهر اندیښمن دروازی ته وکتل څو گامه لری احمد بن حسن، شیخ عبدالرحمن، سعیده، او حنیفه په انگړ کی د دروازی په لوری را روان وو، طاهر په بیړه را وړاندی شو او ماشوم یی ثریا ته ورکړ او د کور انگړ ته ورننوت، د کور د خلکو او طاهر ترمنځ لا اته، لس گزه فاصله وه چی اسماعیل او امین د خرما له بڼ نه راووتل او له طاهر سره غاړه غړی شول.

اسماعیل ساه نیولی وویل : موږ غشی ویشتل زده کول چی زید ستا د راتلو خبر را وړ.

کله چی د کور ټول غړی پر طاهر راټول شول د اسماعیل پر شونډو شوخه موسکا وغوړیده شیخ عبدالرحمن ته یی وکتل ویی ویل : بابا تا لکه چی ونه پیژاند! دا طاهر ورور دی.

شیخ په غوسه شو امسا یی اوچته کړه ویی ویل : ودریږه! ساده! اسماعیل وتښتید لرې ولاړ او له خندا نه لټ په لټ اوښت، حنیفه هم تر شونډو لاندې موسکۍ شوه خو حنیفه او سعیده نه د شیخ د غوسې په سبب پوهیدل او نه د اسماعیل د کړسندی خندا په راز.

* * * * *

(۳)

د ماسختن له لمانځه نه وروسته چې ثریا د طاهر له ارادې نه خبره شوه د حج او له هغه وروسته په اسلامي هیوادونو کې د جهاد د تبلیغ لپاره یې له طاهر سره د ملګرې هیله څرګنده کړه.

سعیدې د هغې خبرې ورسره تائید کړې ویې ویل : ما چې د ثریا په اړه څه اوریدلي دي نو زما ګومان دی چې دا به ستا ډیره مرسته وکړي.

شیخ وویل : زما پر دې څه اعتراض نشته مګر ماشوم؟

سعیدې وویل : ماشوم به له ماسره وي، اوس هم هغه له ما نه پرته بل چاته نه ورځي.

د سعیدې پر ټینګار له هغې سره حنیفه د خپل لمسي په پریښودو راضي شوه.

اسماعیل چې په یوه کونج کې ولاړ ؤ وویل : زه له حج نه وروسته له دوی سره ځم.

شیخ وویل : چرپ شه دا ستا د زده کړې وخت دی.

احمد بن حسن وویل : ته ډیر مصروف سړی یې، غوره به دا وي چې د اسماعیل ښوونه او روزنه ماته وسپارې، له امینې سره به یې سات تیروي.

شیخ وویل : ما له څو ورځو راسې دا فکر کاوه خو زه حیران یم چې د دې ناپوه نه پرته به زما ګوزاره څه وړ وي؟ زه اوس د ده له شوخي او شیطانت سره روږدی شوی یم.

زه چې څومره د ده د کړس کړس خندا څخه په غوسه کیږم همدومره ورته ناکراره هم وم. دا زما د بوډاتوب د ژوند یو ضرورت شوی دی.

په ورکتوب کې به یې زما پایزار غلی کړ، اوس بیا د کجورو بندونه پکې اچوي، زه پرې په غوسه شم او بیا فکر کوم چې که ده داسې شوخي نه کولې زما ژوند به څومره بې مزې ؤ، خو د تعلیم لپاره باید زه دې له تاسره پریږدم، اسماعیله دلته راشه!

اسماعیل پښیمانه او سرخوړند وراندې ورغی شیخ په مینه تر خپل څنګ کښیناوه ورته ویې ویل : بچو! زه به له حج وروسته تا همدلته پرېږدم، خو په دې شرط چې په هفته کې به دوه ځله ماته ښارته خامخا راځې.

: ته اونیا ولې همدلته نه پاتې کیږې؟

: بچیه ! زما کار او بار ډېر پراخ دی چې راټولول یې ډېر وخت غواړي.

: نو زه به هره ورځ تاته درځم، ماښام به زه او امین د ښارا پرځای پر اسونو سپرېږو او هلته به درځو.

: ډېر ښه زه به هره ورځ ستا لخوا د یوې نوې شوخۍ انتظار کوم.

: بابا جانه! د اسماعیل سترګې ډنډ شوې ویې ویل :

ما وبخښه ! زه به بیا هیڅ شوخی نه کوم.

د شپې مهال شیخ عبدالرحمن چې خوبوړی غوندې په خپله بستره غځېدلی ؤ په کوټه کې د چا د پښو غږ واورېد ویې ویل: څوك یې؟

اسماعیل په وېرېدلې لهجه ورته وویل : بابا جانه زه یم.

: په دې ناوخته دلته څه کوې؟

: باباجانه ... زه!

: هو ووایه!

: بابا جانه! وبخښه ستا سره د شوخۍ نه کولو له وعدې نه مخکې ما یوه شوخي بله هم کړې وه.

: زما په بوټونو کې به دې بیا د خرما زړي غورځولې وي!

ښه ورځه زه به یې سهار ترې لرې کړم.

: نه بابا جانه زه یې پخپله ترې لرې کوم.

د شیخ تر چپرکټ لاندې د لړ لاس تپولونه وروسته اسماعیل وویل : بابا جانه که اجازه وي شمه راوړم، ما تول بوټونه ونه موندل.

شیخ وویل : داسې ښکاري چې ته خپل اطاعت ثابتوې، ورشه ډیوه راوړه!

اسماعیل بلې کوټې ته ولاړ او چې لږ ځنډ وروسته بېرته هلته ورغی امین هم ورسره ؤ، اسماعیل شمه امین ته ورکړه او ده ټول بوټونه راغونډ کړل او له ځانه سره یې واخستل. شیخ په اندیښنه ترې وپوښتل : اوس دا ټول پایزار بهر ته د څه لپاره وړې؟

اسماعیل په اندیښنه ځواب ورکړ : بابا جانه د مینځلو لپاره!

: د مینځلو لپاره!؟
: هوکی بابا جانه خبره داسی ده چی نن ما د زړو پرځای لمدی خرماوی پکی اچولی وی.
: ودریږه ناپوهه او شیخ پر خپل ځای کیناست.
اسماعیل او امین په بیړه له کوټی ووتل.

* * * * *

(٤)

له ویده کیدو نه وراندی ثریا طاهر ته وویل :
تر اوسه دی د زوی د نوم پوښتنه نه ده کړی؟
طاهر ځواب ورکړ : ما له ډیلی نه د رخصتیدو په وخت کی یو نوم درته یاد کړی ؤ، تا خو به د عبدالعزیز نه پرته بل نوم نه وی ورباندی ایښی؟
: نه ما همدغه نوم پری ایښی.
طاهر سوړ اسویلی وکیښ ویی ویل : هغه زما ډیر ښه دوست ؤ.
: تا یوه وعده پوره نه کړه.
طاهر وپوښتل : کومه؟
ثریا د خپل لاس ګوته ورو‌ښودله ویی ویل :
تا وعده کړی وه چی که بغداد ته ولاړی ... نو؟
: ثریا ! دا کیسه مه راسپړه.
: زه له مابنام راسی تا ډیر پریشانه ګورم ، ستا په څیره کی هغه پخوانی تازګی نشته، ووایه څه شوی دی؟
: ثریا دا به غوره وه چی نن دی دا کیسه نه وای سپړلی.
: ما وبښه، که هغه زما په سبب ستا نه خفه شوی وی، نو زه به پخپله بغداد ته ورشم او پخلا به یی کړم.
طاهر په دردناکه لهجه وویل : د هغی پخلا کول اوس د چا په وس کی نه دی، هغه له مانه ډیره لری تللی.
: څه، د هغی له بل چا سره واده...!
: نه، نه ثریا، هغه په دی دنیا کی نشته.
: اف، ومی بخښه!
طاهر جګ شو ویی ویل : زه لږ بهر چکر وهم. او بیا بهر ته ووت د سپوږمۍ

رڼا د کجورو د ونو له پاڼونه تیریدله او ځمکې ته رسیدله طاهر د یوی نسکوری ونی په تنه کښیناست، د سپوږمۍ په رڼا او د ستوریو په سیوری کی د صفیی سره د تیرو لیدو کتو په چورتونو کی ډوب شو. د سپوږمۍ د موسکا او د ستوریو د ستر گکونو او خنداگانو سره سره چاپیریال ورته غمجن ښکاریده، هغه تر ډیره وخته ناست ؤ تر دی چی د چا د پښو غږ یی واورید شاته یی وکتل او له ځایه جگ شو ویی ویل : ثریا!

ثریا په شرمناکه لهجه وویل : زه افسوس کوم چی ته می خفه کړی، ثریا ور وړاندی شوه، بی اختیاره یی لاس وغزول او هغه په غیږ کی ځان وروغورځاوه او په سلگیو شو.

: ماته ووایه په هغی څه وشول؟ کاشکی ما د خپل ژوند په بیه هغه بیرته راوستلای شوای. زه هر څه زغملی شم خو ستا په څیره یوه ذره د خفگان اغیزه نشم زغملی، طاهر د ثریا سره بیرته د هغی خرما پر تنه کښیناست او ویی ویل:

په تا کی هغه تولی ښیگڼی شته چی یو انسان یی هیله کولی شی، داسی ونه گڼی چی د ژوند کومی پیښی به زه له تانه بی پروا کړی یم، خو د صفیی مرگ داسی پیښه نه ده چی زه یی زر هیره کړای شم، زما باور دی چی ستا موسکا زما د هر تپ د تکور لپاره د ملهم کار ورکوی، خو د صفیی له مرگه وروسته زیاتره زماپه زړه کی دا راگرځی چی ښایی زماپه دی دنیا په خوشحالی کی هیڅ حق نشته د یوی داسی موسکا یاد ونه به چی د اوښکو او آهونو په زرگونو توپانونه پکی غلی وو ما د تل لپاره ناکراره کړی.

ثریا وویل : زه د هغی د کیسی اوریدو هیله لرم.

ښایی ستا د زړه بوج پری سپك شی، زه د خوښی په موسکاگانو کی نه دغم په اوښکو کی درسره شریکه یم.

نو واوره!

طاهر د صفیی د ژوند د کیسی وروستی پاڼی اړولی او د ثریا له سترگو اوښکی روانی وی.

کله چی طاهر کیسه پای ته رسوّله ثریا وویل: کله چی ته له دی دندی نه راستون شوی او بغداد ته تللی زه هم درسره ځم، د هغی نیمگړی پاتی کار به زه سرته رسوم.

*****

(۵)

له بغداد او نورو اسلامی هیوادونو څخه د امیدواری پیغامونو په سلطان جلال الدین او د هغه په سپاهیانو کی نوی روح پوه کړه، سلطان پر آذربایجان حمله وکړه او زیاتی سیمی یی له هغو سردارانو نه ونیولی چی د سلطان سره د غداری په انعام کی مغلو ورکړی وی، بیا یی گرجستان او تفلیس ته مخه کړه، په تفلیس کی یی فتحی ډیری حیرانوونکی وی خو ناڅاپه یی په کرمان کی د براق حاجب د بغاوت خبر واورید، سلطان له ځان سره دری زره تنه لښکر ملگری کړ او په ۱۷ ورځو کی له تفلیس نه کرمان ته ورسید، براق حاجب بخښنه وغوښته او پخپلو وعدو یی د وفا ژمنه وکړه. سلطان په بیرته راستنیدو کی څو ورځی په اصفهان کی پاتی شو، دلته یی د خلیفه ظاهر د وفات او د خلیفه مستنصر د خلافت خبر واورید، او له دی سره جوخت یی دا واوریدل چی په تفلیس کی پر مغلو ځان پلورو سردارانو بغاوت کړی دی، او د عیسویانو په مرسته پر آذربایجان حمله کول غواړی سلطان چی دا واوریدل په بیړه یی ځان آذربایجان ته ورساوه، او په څو اونیو کی د باغیانو له ځپلو وروسته بیرته تبریز ته راستون شو.

تبریز ته چی راورسید وایی وریدل چی د مغلو یو لوی لښکر ډوری په لور پرمخ راروان دی. له سلطان سره لښکر زیات نه ؤ خو هره ورځ یی دا اوریدل چی د طاهر د هڅو په نتیجه کی د رضا کارانو نوی دلی بغداد ته راځی او هلته راټولیږی. ځینی رضا کاران نیغ تبریز ته راتلل.

ری ته د مغلو له رارسیدلو وروسته سلطان ته جاسوسانو دا خبر راوړ چی هغوی د موصل په لوری پرمختگ کول غواړی، او د بغداد او نورو اسلامی هیوادونو سره د ده د لاری غوڅولو هڅه کوی. سلطان دا خطر هم احساس کړ چی که مغل همدان ته ورسیږی نو دا امکان هم شته چی هغوی د کردستان او موصل ترمنځ د اوږدی دفاعی لیکی جوړولو پرځای نیغ پر بغداد حمله وکړی او د اسلامی نړی دغه ورروستی مورچل هم ویجاړ شی.

څکه خو سلطان د مغلو ټول پام ځانته دور اړولو لپاره اصفهان ته مخه کړه، او د څو ورځو تیاری نه وروسته یی د ری په لوری کوچ وکړ.

له ری سره نژدی یی له مغلو سره ټکر راغی، او د سرښندونکو یرغلونو په نیتجه کی یی مغل شاتگ ته مجبور کړل، خو د سلطان ورور غیاث الدین چی د

پوځ د کيڼ لوري د دستي قوماندان ژ د ډيري بدی غداري په نتيجه کی له ميدان نه وتښتيد، مغلو چی د جلال الدين يو اړخ تش وليد د لښکر په زړه يی يرغل وکړ او د هغه د پوځ پښتی یی وربړدولی، سلطان شاته ولاړ او بيا يی د لښکر د تنظيم نه وروسته حمله وکړه، خو د مغلو د لښکر د شمير زياتوالی او د غياث الدين د خيانت په وجه د سلطان لښکر مورال بايلود، هغوی د بري نه مايوس شول يوازی د پاچا د امر د عملی کولو په خاطر جنګيدل، د مغلو يو لښکر له شانه راوګرځيد او غوښتل يی چی دوی کلابند کړي، سلطان چی له څلورو خواونه مايوس شو پوځ ته يی د شاته تلو امر وکړ او په يوه خوايی حمله وکړه او له ميدان نه ووت.

تاتاريان تر اصفهان پوري په سلطان پسی ورغلل خو د ګوبی په دښته کی د چنګيز خان مرګ ټول شهزادګان او سرداران په بيرته راستنيدو مجبور کړل.

سلطان چی تبريز ته راستون شو د عبدالملك په منځګړيتوب يی خليفه مستنصر ته ليك وليکه چی اوس د پريکنده جګړي وخت رارسيدلی دی. تاسو تيار شی د البرز له غرونو تر ارمنيا پوري د تاتاريانو تر بيرته راتلو پوري د دوی د عيسوی حليفانو د غوڅ تاوولو لپاره زما د ګوتو په شمير لښکر بس دی، له دی عملياتو وروسته که ماته بغداد ته د راتلو اجازه راکړي نو زه به تر آمو د مغلو د بيا راپوري وتلو تر وخته يو مزبوت او روزل شوی پوځ جلا کړم، او موږ به له مغلو سره يو پريکنده جنګ کوو، که د مسلمانانو خليفه ته په څه سبب زما تګ بغداد ته منظور نه وی نو زه به د بغداد له حدودو نه بهر په کوم ښار کی هستوګنه غوره کړم او د بغداد د پوځ د راتلو انتظار به کوم.

د طاهر بن يوسف له لوري سلطان ته دا احوال ورغلي ژ چي هغه د مصر او مراکش له پاچاهانو نه د مرستی وعدی اخستی او بيرته حلب ته راستون شوی دی، د شام له اولس او اميرانو څخه هم د مرستی هيله لری.

سلطان هغه ته دا پيغام واستاوه چی ته له شام نه سمدستی هندوستان ته روان شه، سلطان التمش ته يی وعدی ور په ياد کړه.

کوم وخت چی موږ له سنباليدو وروسته له مغلو سره د پريکنده جګړي پريکړه وکړو سلطان ته به احوال ورکړو. په دی حال کی که سلطان التمش د افغانستان له لاري پر مغلو بريد وکړي نو د هغوی پام به د دوو محاذونو ته واوړي او دا به زموږ لپاره ستر ملاتړ وی. غوره به دا وی چی تر څو داسی وخت نه وی را رسيدلی ته په هندوستان کی پاتی شه.

د څو جګړو نه وروسته سلطان جلال الدين د آذربايجان په شمال او لويديځ کې پراخې سيمې ونيولې، د هغه سپاهيان د دغه نه شليدونکو جګړو نه ستومانه شول، خو سلطان به په وار وار د مصر، شام، عربو، او هندوستان د پوځونو د رارسيدلو او د مغلو پرخلاف د پريکنده جګړې وعدې تکرارولې او د دوی حوصلې يې اوچتولې پر دې سربيره له ځينو ځايونو د رضا کارانو ډلګی هم ور رسيدلې.

د بغداد په اړه د عبدالملك خبرونه ډير اميدواروونکي وو خو له انديښنو خالي هم نه وو، خليفه مستنصر د پوځ د سنبالولو او تنظيم په باره کې د طاهر لارښوونې عملي کولې د ترکي رضاکارانو نه پرته هغه بغداد ته د راتلونکو رضاکارو لپاره هم خپلې دروازې پرانستې وې، د دجلې د سيند پر غاړه يې يو ډير لوی د پوځې زده کړې مرکز جوړ کړی ؤ چې عبدالملك يې د دې مرکز ناظم ټاکلی ؤ، دا ټولې خبرې اميدواروونکي وې. خو عبدالملك د سلطان په نامه په ځينو ليکونو کې څه انديښنې هم ښکاره کړې وې، د هغه تر ټولو ستر شکايت دا ؤ چې خليفه په پرده کې ټولو ته ډاډ ورکوی خو د بغداد د اولس په مخ کې د سلطان له ملاتړ نه ويريږي، د مغلو سفير چې د ده د پلار د واکمنی په وخت کې له بغداد نه شړل شوی ؤ اوس بيرته راغلی دی او له خليفه سره يې اوږده اوږده ملاقاتونه کيږي. خو بيا هم چې خليفه ته د هغه په باب شکايت وشی نو هغه ځواب ورکوی چې موږ د تياری لپاره فرصت ته ضرورت لرو او د دې هدف لپاره مغل بايد په بدګومانۍ کې پاتې شي.

عبدالملك سلطان جلال الدين ته دا هم وليکل چې د مغلو سفير د لوټ شوی مال يوه زياته برخه بغداد ته راوړی ده او په هغې د پاچاهی د لويو اميرانو علماو او د رايې د خاوندانو د ضميرونو اخستلو هڅې کوی ځينې خلك برالا د مغلو پرخلاف د جهاد د اعلان مخالفت کوی.

خو بيا هم جلال الدين د هغو کسانو له جملې څخه نه ؤ چې مايوس شي، هغه چې د شمال لويديځ له عملياتو وزګار شو تبريز ته ورسيد. په تبريز کې له څو شپو پاتې کيدو وروسته خبر ورغی چې د چنګيز د زوی تولای خان په مشری د مغلو پوځ له آمو راواوښت او د اسلامی نړی د غوره شويو غداراتو هيأت يې د بغداد خليفه ته ور استولی دی.

سلطان د عبدالملك په نامه يو اوږد ليك واستاوه او پخپله د همدان په لور وخوځيد.

# وروستی ماته

عبدالملك له خلیفه نه د ملاقات غوښتنه وکړه چی هغه وروغوښت، خلیفه د عبدالملك د غوښتنی سره سم له هغه سره دوه په دوه یوازی کیناست.

خلیفه مستنصر چی د جلال الدین لیك ولوست له لږ فکر کولو وروسته یی وویل:

تولای خان له پنځه لکه تنه لښکر سره له سیحون دریابه پوری وتلی دی، که اړتیا ولری نو پنځه لکه تنه نور هم ور بللی شی ستا په گومان به اوس له جلال الدین سره څومره سرتیری وی؟

عبدالملك ځواب ورکړ : دا سهی ده چی له سلطان جلال الدین سره اوس ډیر لږ پوځ دی خو ته پوهیږی چی هغه په افغانستان کی له شپیته زره پوځ سره د «شیگی توتو» دوه لکه تنه پوځ ته یوه عبرتناکه ماته ورکړه، او همدا اوس یی له ډیر لږ پوځ سره د کرمان، اذربائیجان، قبچاق، تفلیس او آرمنیا پراخه سیمی نیولی دی.

خلیفه وویل : اوس زموږ ټول پوځ دری لکه تنه دی، فرض کړه که دا د بغداد نه بهر چیرته ماته وخوری نو د بغداد برخلیك به څه ور وی؟

عبدالملك وویل : که تاسو نن د جهاد اعلان وکړی، نو زه پوره ډاډ درکوم چی له همدغه ښار نه دری لکه تنه رضا کار سرتیری په یوه اونی کی درته تیاروم او تاسو به بیا وگوری چی له مراکش نه نیولی تر عراقه به ډیر زیات شمیر رضا کاران ستاسو تر بیرغ لاندی راټول شی. هغوی ستا له لوری د جهاد د اعلان انتظار کوی، مغلو تر اوسه پوری پر موږ بری نه دی موندلی بلکي زموږ له گډوډی نه یی گټه پورته کړی، زما باور دی په کومه ورځ چی د بغداد پوځونه همدان ته ورسیږی، په همغه ورځ به د هندوستان نه د سلطان التمش لښکر تر بلخه پوری رسیدلی وی. او د ترکستان، خراسان او ایران په مرو ایرو کی به د کسات سکروتی راوځلیږی، او زما پردی هم باور دی چی مغل دغه حالت ووینی

نو د آمو له دریا به د راپوری وتلو جرئت به ونه کړی.

خلیفه وویل : عبدالملکه ! زه ویریږم که ماته وخورو د بغداد انجام به څه وی؟

: ماته او بری د خدای «ج» په لاس دی، خو تاریخ گواه دی چی له ویری تر اوسه پوری چا گټه نه ده اخیستی، تاسو فکر وکړی چی جلال الدین اوس د اسلام د دفاع وروستی مورچل راتینگ کړی دی، که دغه مورچل مات شو نو د بغداد په لور به د مغلو د سیلاب مخه څوك ونه نیولی شی، زه تاته د دی پوښتنی لپاره راغلی یم چی له بغداده به زموږ پوځونه څه وخت روانیږی؟

وخت ډیر تنگ دی او دا ضروری ده چی له جگړې نه دمخه زموږ پوځونه سلطان ته ور ورسیږی چی هغه یی وروزلای شی.

: مگر موږ په دی هم ویریږو چی که نورو اسلامی هیوادونو زموږ مرسته ونه کړه نو مغل به پر موږ یرغل راوړی.

: تاسو خپله ذمه واری پوره کړی او باور وکړی چی نورو ته به د وروسته پاتی کیدو فرصت نه وی.

: تا ته معلومه ده چی د بغداد زیاتره علماء د مغلو پرخلاف د جهاد له اعلان سره مخالف دی؟

: ږزیاتره نه یوازی څو تنه او زه هغوی علما نه گڼم، هغوی د اولس غداران دی، چی د خپل ضمیر قیمت یی د مغلو له سفارت نه ترلاسه کړی دی.

: مگر د خلکو یوه لویه ډله د دوی تر اغیزې لاندی ده.

: ستا د جهاد د اعلان نه وروسته به د هغوی اغیزه لری شی.

: تاته معلومه ده چی له ترکستان نه هم د څو علماؤ او سردارانو پلاوی ماته راغلی دی؟

: ماته معلومه ده چی دا یوازی هغه خلك دی چی د قوم د ځوانانو د وینو او د لونو د آبرو قیمت یی ترلاسه کړی، هغه اولس چی د چا په توری نه تسلیمیدلو، هغه دې غدارانو مات کړی.

مگر امیر المؤمنینه! دا د بحث وخت نه دی، ایا موږ ددې لپاره دایمی ذلت ومنو چی څو تنه غداران مو په منځ کی پیدا شوی دی؟

او ستا څه گومان دی چی کومو خلکو له سلطان جلال الدین سره غداری کړی ده هغه به د وخت په راتلو ستاسی سره داسی ونه کړی؟ هغو خلکو تاته د مغلو د دوستی پیغام راوړی دی، که تاسو داسې گومان کوی چی مغل د مسلمانانو

دوستان دي نو دوی هم د ځان خواخوږي وګڼي او که تاسو داسې ګڼي چې اوس تر مغلو زموږ بل ستر غليم نشته نو بيا خو دا هم بايد ومنې چې دوی زموږ بدترين خاينان دي.

: عبدالملکه ! ته تل موږ له ځانه سره په همنظره کولو مجبوروې، خو دا مسئله ډيره نازکه ده، له مغلو سره د جګړې د ذمه وارۍ له اخستلو نه وړاندې بايد موږ ډير فکر وکړو.

عبدالملك وارخطا شو خليفه ته يې وکتل ويې ويل:

: نو ايا ستا اراده بدله شوې ده؟ زموږ دغه تياري هسې د تظاهر لپاره ؤ؟

تاته معلومه ده چې سلطان د بغداد په تمه هندوستان پرېښود، ستا د محترم پلار د اميدوارونکو پيغامونو په سبب هغه دمايوسيو په تيارو کې د اميد ډيوې بلې کړې، او له هغه وروسته يې تر ننه يوازې په همدې اميد همت ونه غورځاوه چې د مغلو سره په جګړه کې به تاسو دې يو وفادار سرتيرې ګڼې او مرسته به يې کوی. اوس هغه همدان ته نژدې اړولي او د بغداد د پوځ په انتظار دی تر اوسه پورې لږ شمير پوځ په دې تمه ملاتړ ورسره کوی چې ستا په مرسته به دوی له مغلو نه کسات واخستلای شي، په ياد ولره چې که له بغداد نه مرسته ور ونه رسيږي هم هغوی به خپل مسئوليت سرته رسوی او له تانه د مايوسيدو نه وروسته هم د دې امکان شته چې د هغه ځينې ملګرې ترې ولاړ شي، خو د مغلو د برې نه وروسته به يو ديانتدار مؤرخ هم ددې ليکلو جرئت ونه کړي چې سلطان جلال الدين خوارزم شاه ته مغلو ماته ورکړه، بلکې دوی به دا ليکي چې کله هغه د وروستی ځل لپاره له مغلو سره جنګيده نو د هغه ورور توره ترې اخستې وه، اوس ته پخپله پام وکړه چې د نړيوالو به ستا په باب نظر او رايه څه وړ وی؟

خليفه وويل : ستا مطلب دا دی چې نړۍ‌به موږ د اسلام دښمنان ګڼي؟

: نه، نه زما باور نه راځي چې تا به د بې طرفه پاتې کيدو پريکړه کړې وی، د خدای «ج» په خاطر ووايه چې زه ستا په باب د بدګومانئ مجرم يم، ماته سزا راکړی!

خليفه جګ شو ويې ويل راځه!

: چيرته د پوځ قرارګاه ته!

: نه بلې کوټې ته، هلته ډير خلك راټول دي، ښايي هغوی تاته زموږ د مجبورې سبب دروښيي، خليفه دا وويل او لاسونه يې وپړقول، يو غلام کوټې ته ورننوت

خلیفه ورته وویل :
عبدالملك زموږ دربار ته ورسوی.

*****

(۲)

عبدالملك دربار ته ننوت، هلته د خلافت وتلی مشران او سرداران راټول وو پر هغوی سربیره د ښار هغه علماء هم وو چی د خوارزم شاه پرخلاف د مغلو په ملاتړ یی فتوی ورکړی وه او د زیات شهرت خاوندان شوی وو.
د خلیفه د تخت نه لاندی شهزاده معتصم ناست ۋ، او له هغه سره د سردارانو او علماؤ هغه ډله ناسته وه چی له ترکستان نه یی د مغلو د دوستی پیغام خلیفه ته راوړی ۋ، او د دوی په منځ کی چی عبدالملك یوه اشنا څیره ولیده وینی یی په رګونو کی وچی شوی دا مهلب بن داود ۋ.
عبدالملك تردی وړاندی بغداد ته د هغه په راتګ خبر نه ۋ هغه په یوه تشه کرسی کښیناست.
نقیب د تخت له شانه د خلیفه د راتګ اعلان وکړ او ناست کسان ټول پاڅیدل.
خلیفه چی پر تخت کښیناست عبدالملك ته یی وکتل او ویی فرمایل :
عبدالملکه موږ ستا خبری اوریدلی، ته دا وایی چی د مغلو پرخلاف د جهاد اعلان زموږ فریضه ده، خو دا عزتمندان چی د ترکستان د علماوو پلاوی هم پکی ناست دی، ستا ددی رایی مخالف دی، زه د دی ټولو د وړاندی تاته د خپلی رایی د ښکارولو اجازه درکوم، که تا دوی ته قناعت ورکړای شو زه سبا ته پوځ ته د روانیدو امر ورکوم که نه نو زما هیله ده چی ته د دوی دلایل په سړه سینه واوری.
عبدالملك پردی باوری شوی ۋ چی دا هر څه د ده د خولی بندولو لپاره کیږی. خو بیا هم دی اوچت شو او یوه اوږده او له جوشه ډکه وینا یی وکړه او کښیناست.
د بغداد علماؤ ته معلومه وه چی عبدالملك او د هغه ملګری د عوامو په پارولو پوهیږی، ځکه له دوی نه یوه هم د دی جرئت ونه کړ چی جګ شی او ځواب یی ووایی، خلیفه د هیأت غړو ته وکتل خو هغوی هم د عبدالملك د خبرونه وروسته پریشانه ښکاریدل.
مهلب له خلیفه نه اجازه وغوښته او جګ شو، هغه له مچ نه د کوچ جوړولو په چل پوهیده، د ماته خوړلی ذهنیت درلودونکو خلکو د مایوسی تر وروستی بریده

رسولو کار ورته آسانه ؤ، ځکه خو هغه مغل په سلګونو میله لرې نه بلکې د بغداد په کوڅو او بازارونو کې لیدل، د مهلب له خبرو وروسته د ترکستان او بغداد څو تنو ملایانو خبرې وکړې او د هغه خبرې یې تائید کړې. په پای کې د خلافت امیرانو او سردارانو خپله خپله رایه وړاندې کړه، لږ او ډیر د ټولو نظر دا و چې د تاتاریانو پرخلاف جګړه ځان وژنه ده.

د ویناګانو بل پړاو د جلال الدین پر شخصیت او د هغه د عقایدو پر اعتراضاتو پیل شو، په پای کې خلیفه له عبدالملك نه وپوښتل : څنګه عبدالملکه ستا تسلی وشوه که نه؟ چې د ټام د مشرانو دا رایه ده نو موږ د هغه مخالفت کله کولی شو؟

عبدالملك ودرید، له غوسې نه ریږدیده، د هغه د خبرو هر لفظ د اوریدونکو پر زړونو نښتر ؤ، هغه ته دا هم معلومه وه چې چیرته ولاړ دی، خلیفه حیران ؤ چې ما ده نه د خبرو اجازه ولې ورکړه، عبدالملك وویل :

زما داد حاصل شوی دی، ماته هغه کمزورنه ښکاري چې د اولس بیړۍ به ورسره ټکر او ټوټه ټوټه شي، خو تاسو یا په بدګومانۍ کې لویدلي یاست او یا ځان ته په دروغو تسلي ورکوی، دا خلك د اولس مشران او لارښوونکي نه دي، او د مغلو په ملاتړ چې دوی نن دلته غړونه اوچت کړل دا د دوی د زړونو څخه نه د خیټونه را اوچت غړونه دي.

د ترکستان دغه اته، لس تنه غداران د ټام عالمان او سرداران بلل د هغو زرګونو علماو او امیرانو سپکاوی دی چې د مغلو پر غلامۍ یې شهادت غوره وباله، او زموږ د ښار دغه مشران چې نن یې لویې لویې ګرانبیه چپنې اغوستې دي او دلته راغلي دي هغه کسان دي چې اولس ته له شرمه خپل مخ نشي ورښکارولی، له دوی نه‌پوښتنې ایا په دوی کې له کوم یوه سره دا جرئت شته چې د بغداد د کوم جومات په منبر اوچت شي؟ ماته اجازه راکړې چې په یوه ورځ د بغداد په زرګونو علماء دلته راټول کړم چې هر یو به یې د مغلو پرخلاف د جهاد ملاتړ وکړي، د کام لارښوونکي دوی نه هغوی دي، چې د اولس لپاره د ژوند او مرګ لاره پیژني.

د مسلمانانو خلیفه!

زه پوهیږم چې خبرې مې بې ګټې دي، ماته معلومه ده چې دې سوداګرو مسلمانان په مغلو پلورلي دي، دغه خلك چې نن تاته دا داد درکوي چې مغل به د

بغداد له خلکو سره خپل تړون نه ماتوي، زه دوي ته دا ډاډ ورکوم چي کله د مغلو توري له تیکو راووزي نو هغوي به بیا د سره او سپین د ویني توپیر ته ونه گوري. دوي په دي دفاعي جگړه کي له موږ سره ملاتړ ته چمتو نه دي خو په بربادي کي به دوي له موږ سره خامخا د ونډي خاوندان وي.

زه بیایي بغداد پریږدم، خو چي ترڅو دلته یم دغه تش په نامه علماو ته اخطار ورکوم چي زما پرخلاف فتوی ورنکړي او د خلافت د دي منصبدارانو نه هم غواړم چي زما لاري ته ازغي مه راشیندي، زه یي تر پښو لاندي کولای شم، په بغداد کي د دي مشرانو پر هڅو برسیره تر اوسه داسي خوانان شته چي په کوتك او لاتي یي ویرول ممکن نه دي، زه نه غواړم چي په بغداد کي داسي حالات رامخي ته شي چي مغل سلطان جلال الدین پریږدي او دلته راتلل لومړي ضروري وبولي. زه به د سرکاري پوځونو د راسره بیولو هڅه نه کوم، خو هغه رضا کاران چي له نورو ښارونو نه د سلطان د ملاتړ په نامه راغلي د هغوي په بیولو کي حق په جانب یم. امکان لري چي هغوي د بغداد د خلافت او مغلو ترمنځ د سولي د خبر په اوریدو مایوس شي او خپلو کورونو ته ستانه شي، په هر حال زه به هڅه وکړم چي هغوي د کوم هدف لپاره راغلي هغه پوره کړي.

زه نور درنه ځم، خو له تلو وړاندي یوي خبري ته د مسلمانانو د خلیفه پام را اړول غواړم هغه دا چي مهلب بن داود د وحید الدین او پخواني صدر اعظم قاتل دی، زما دا ویل بي گټي دي چي دي ونیسي، خو د خلیفه له محل نه چي څوك ووزي پر هغه د شانه پر خنجر برید یو بي شرمانه عمل دی که د خلیفه په اجازه وي او که نه، او زه تاسو ته ډاډ درکوم چي زه تر څه حده له پاملرني سره عادت یم، له محل نه بهر اوس لږ تر لږه لس زره تنه خلك دي چي تر ما ښامه زما د نه ورتگ په صورت کي به دوي په ماڼۍ کي زما د نیولو هڅه کوي... زه نور ځم.

چي عبدالملك له ماڼۍ راووت له سترگو یي اوښکي بهیدلي، هغه ویل : په دي ډېرو کي ژوند راپیدا کول زما د وس نه پورته ده، بربادي د بغداد برخه ده.

له دروازي نه بهر د خلکو گڼه گوڼه وه، هغوي د ده نه د یوه مهم اعلان اوریدو ته ناکرار وو، هغوي چي دي ولید د کرار ورتگ پرځای ور وزغلیدل او چي د ده په سترگو کي یي اوښکي ولیدي چایي په لاره کي د دریدو جرئت ونه کړ، تر ماښامه دا خبره په ښار کي مشهوره شوي وه چي د خلیفه او مغلو ترمنځ د دوستي تړون شوی دی، د رضاکارانو ډلگیو خپلو خپلو کورونو ته د تلو لاري چاري

سنجولی.

د شپی مهال عبدالملك د سلطان جلال الدین او طاهر بن یوسف په نوم اوږد لیك ولیکه او د کورنه بهر د بغداد ډیرو څلمیانو او د پرځی ښوونځی زده کوونکو پهره کوله.

*****

(۳)

سلطان جلال الدین په یوه دره کی اړولی وو او د بغداد د پوځونو د راتلو انتظار یی کاوه، څومره چی د مغلو لښکر ورنژدی کیده هومره د سلطان ناکراری زیاتیدله، یوه ورځ د لمر راختو نه لږ وروسته د پخوا په شان سلطان په یوه غونډی وخوت او د بغداد لوری ته یی هغی لاری ته کتل چی په خوړ کی تیره شوی وه، له ده سره څو تنه نور افسران هم ناست وو، هغه لری د یوه لوړ غره په لمن کی پنځلس، شل تنه سپاره ولیدل، له لږ غور نه وروسته سلطان له خوښیو نه جگ شو او په زوره یی وویل : هغوی راغلل، هغوی راغلل، هغه دی هغوی له بغداده د دری لکه تنه پوځ د راتلو خبر راوړی، وگوره تا ویل چی د عبدالملك د ځواب تر راتلو پوری څو نوری ورځی هم لگیږی، خو ما درته ویل چی که په نیمه شپه کی زما استازی بغداد ته ورسیږی نو عبدالملك به همغه مهال خلیفه له خوبه ویښوی او زما د لیك ځواب به تری اخلی،ته پر خلیفه بدگمانه وی، خو ما درته ویل چی د هغه په چوپتیا کی ډیر مصلحتونه دی، اوس به موږ تولای خان ته هغه درس ورکوو چی په افغانستان کی مو «شیگی توتو» ته ورکړی ؤ، د خلیفه استازی راغی، د لښکر تولو سپاهیانو ته حکم وکړی چی له خیمو راووزی او هر کلی یی وکړی.

لږ ځنډ وروسته د سلطان د پوځ لږ شمیر کتار لاس په نامه ودریدل، سپاره چی نژدی ورغلل له اسونو پلی شول، سلطان له خپلو څو سردارانو سره ور وړاندی شو ښه راغلاست یی ورته وویل او ویی ویل : تاسو ډیر ژر راورسیدی تول زما له طرفه د انعام حقدار یاست.

یو تن را وړاندی شو د عبدالملك لیك یی سلطان ته وړاندی کړ، سلطان وویل د دی لیك له لوستلو وړاندی غواړم وپوښتم چی د بغداد پوځونه به څه وخت له هغه ځایه را خوځیږی؟

هغوی پریشانه یو بل ته وکتل. سلطان لیك پرانست ویی ویل : ښایی تاسو

پردی خبر نه یاست، عبدالملك ډیر احتیاط کار سړی دی.

د لیك د لوستلو په وخت کی د سلطان رنګ تك زیړ شو، د هغه حالت داسی چاته ورته ؤ چی ناڅاپه یی برېښنا ونیسی، هغه خپلو ملګرو ته وکتل او لیك یی له ریږدیدونکو لاسونو ولوید.

ویی موسکل خو دغه موسکا یی تر اوښکو زیاته دردناکه وه.

په ژړه غونی غږ یی وویل:

ماته معلومه وه، خو زیاته مأیوسی انسان په ځان تیر ایستلو عادت کوی، ما له ریګونو مانۍ جوړولی.

مبارکه! د عبدالملك لیك په لوړ غږ تولو ته واوروه، او تر هغه وروسته چی څوك ځی زما له لوری ورته اجازه ده، زه د ځواك پرخلاف جنګیدلی شم، له تقدیر نه می ګیله نشته، پر موږ د پروردګار دا معمولی احسان نه ؤ، چی لږ شمیر انسانانو ته یی کلونه کلونه د مغلو د سیلاب د درولو او تم کولو همت راکړ، خو چی مسلمانان راویښ نه شول او تر تولنیز ژوند یی ځانګړی او انفرادی مرګ غوره وباله، نو له تقدیر نه څه ګیله؟ تقدیر د چا لپاره خپل قانون نه بدلوی.

سلطان استازو ته په خطاب کی وویل : تاسو ورځئ!

عبدالملك ماته لیکلی دی چی ترڅو ورځو پوری به له لږ شمیر سرتیرو سره موږ ته ځان راورسوی، هغه ته ووایی چی نور یی ماته راتګ بی ګتی دی.

سلطان خپلی خیمی ته ننوت، تر ماښامه د هغه څو سربښندویو ورسره د لیدو هڅه وکړه خو د خیمی په مخه کی ولاړ پهره دار به ځواب ورکړ چی هغه ویده دی. او امر یی کړی چی زه څوك راونه غواړم څوك راته رانشی.

څو ورځی وروسته سلطان اذربایجان ته مخه کړه.

*****

(٤)

سلطان جلال الدین خوارزم شاه د تبریز په شمال لویدیز کی په یوه غرنی کلا کی اوسیده، د مغلو لښکر دده په تعقیب تر تهران پوری رسیدلی ؤ، خو له ختیځ او جنوب لوری د زیاتو واورو اوریدو په سبب د مغلو د سملستی پرمختګ خطر نه ؤ، د سلطان ملګرو یوه یوه د هغه ملګری پریښوده او اوس نژدی یو نیم سل تنه هغه کسان ورسره پاتی وو چی په دنیا کی یی د هستوګنی ځای نه درلود او له ده سره یی په ژوند او مرګ د ملاتړ پریکړه کړی وه.

سلطان به زیاتره وخت یوازې تیراوه، د دنیا سره یې مینه او دلچسپي ختمه شوې وه، د تیمور ملك او نورو سربښندویانو د شهادت نه وروسته هغه ته د تسلي او حوصلې ورکولو هم څوك نه وو، هغه یوازې د ساه کاږلو لپاره ژوندی ؤ، له بغداد نه د مایوسوونکې خبر د اوریدو نه وروسته هغه د ژوند د حقایقو نه د ځان لرې ساتلو په خاطر شراب څښل پیل کړي وو، د هوش هره شیبه ورته له زغم نه وتلې وه ځکه یې هڅه کوله چې بې هوښه او نشه وي. او چې کله به د خومار په حالت کې هم د تورو د شرنګار تصور هغه ناکراره کړ نو د نڅا او سرود د مجلس تودولو امر به یې وکړ.

خو هغه به سکون او قرار نه درلود او ملګرو ته به یې ویل چې «شراب او رباب د بغداد امیران د ژوند له ترخو حقیقتونو بیګانه کوي خو ماته هیڅ آرام نه شي راکولی»

کله کله به هغه خپلو ملګرو ته ویل : زه ډیر لوږ ځلي یم، چې تاداوونه یې ښوریدلي دي، تاسو له دې ځایه ولاړشئ، زه ویریږم چې که راغورځیدم تاسو به لاندې شئ، کله به هغه د کلا دروازه خلاصه کړه او بهر ته به ووت او په واوروکې به تر ډیره پورې بهر ګرځیده.

کله کله به یې شراب چې شوندو ته نژدې کړل بیرته به یې جام لرې وغورځاوه صراحي به یې ماته کړه، کله به یې توره وکښله، کوم ملګرې به یې راوغوښت او ورته وبه یې ویل : وګوره دا زما خوله څیر وي، نه، ښایي دغه بې روحه او سپنه هم زما په څیر خفه وي، ښایي دې ته هم زما په څیر دا اړتیا وي چې ځان هیر کړي، ورشه دا د شرابو په مټ کې ډوبه کړه!

یوه ورځ واوره اوریده، د کلا دننه د سلطان په مخکې د رقص او سرود محفل تود ؤ.

ساقي د شرابو پیالې ګرځولې، چې ددروازې پهره دار راغی ورته ویې ویل : عبدالملك له بغداده ستا د لیدو لپاره راغلی او ستاسو په خدمت کې د حاضریدو اجازه غواړي.

سلطان په ترخه لهجه وویل : عبدالملك ! هغه دلته څه وړ راورسید؟ د هغه اوس له ما سره څه دي! نور څوك ورسره دي؟

: پنځه تنه نور ورسره دي!

: تا ولې ورته وویل چې موږ دلته یو؟

: ماورته وویل چی هغه دلته نشته، خو هغه له هغه وړاندی کلی نه یو لاربنود ورسره راوستی دی، هغه هم وایی چی په آذربایجان کی له زیاتی سرگردانی وروسته مور ستاسو پته موندلی ده.

یوه سړی وویل : معظم پاچا! امکان لری هغه له بغداد نه کوم ښه خبر راوړی وی.

سلطان په چیغو وویل : زما د وړاندی د بغداد نوم مه اخلی.

را ویی غواړه هغه!

عبدالملک چی کوټی ته ورننوت او د محفل وضعه یی ولیده هك پك شو.

سلطان د شرابو پیاله اوچته کړه او ویی ویل :

راځه عبدالملکه ! ولی دی پښه ونیوه، راځه زما ترڅنګ کښینه! او بیا یی پر پیاله شونډی کیښودلی.

عبدالملک وړاندی ورغی د سلطان ترڅنګ کښیناست راګ له سره پیل شو، سلطان له صراحی نه بیا جام ډك کړ، او د څو غوړپه څښلو نه وروسته یی په مخ کی کیښود ویی ویل : عبدالملکه! زما ګومان چی دغه ځای د ژوند د هنګامو نه ډیر لری دی، زما دا تمه وه چی تر دی ځایه به می هیڅوك هم پل راوانخلی، خو اوس باید دا ځای هم پریږدم، تا د بغداد پوځونه چیرته پریښودل؟

ته چی دلته راغلی هغه خبری دی بیا رایادی کړی چی ما یی د هیرولو هڅه کوله.

سلطان بیا جام پورته کړ خو عبدالملک یی له لاسه واخست لری یی وغورځاوه خپل خنجر یی راویوست سلطان ته یی ونیو ویی ویل :

معظم تولواکه ! لکه چی ګستاخی می وکړه، واخله ما پخپل لاس ووژنه، زه دا ننداری نشم لیدای، زما سترګی ویاسه.

راګ بند شوی ؤ او په محفل چوپتیا خوره وه، سلطان په غیر معمولی داد عبدالملک ته وکتل صراحی یی پورته کړه هغه ته یی ور وړاندی کړه ویی ویل :

واخله دا هم ماته کړه، ما پخپله دا څو ځلی مات کړی دی، دا شیان په ماتولو نه خلاصیږی، دا د خاوری کودی دی چی په یو ځل ماتیدو بیرته پتری کیدای هم شی، که پتری نه شول نوی هم جوړیدای شی، دا د انسان زړه نه دی چی یو ځل مات شو نو بیا د تل لپاره له کاره لویږی.

عبدالملک پریشانه او اندیښمن شو، سلطان صراحی په دیوال وویشتله.

د عبدالملك سترګې راډکې شوې وې ویل :
معظم پاچا! ما په خپل ژوند کې یوازې یو سړی لیدلی ؤ چې مایوسی یې نه پیژندله خو نن...!
جلال الدین وویل : هغه انسان چې تا د جلال الدین په نامه پیژانده مړ شوی دی، اوس ته د هغه له مړي سره خبرې کوې، هو ته دا روایه چې دلته څه ډول راورسیدلې؟
: ما له بغداده د رضاکارانو یوه ډله راسره راوستی وه، او ...!
سلطان یې خبره ورغوڅه کړه وې ویل : څومره رضا کاران!
: له ما سره پنځه زره کسان را روان شول.
: تا غلطي کړې ما احوال درکړی ؤ چې دا کار مه کوه.
: ستا پیغام داسې مهال راورسید چې موږ له بغداده یو منزل وړاندې راغلي وو، ستا حکم یې چې واورید دری زره تنه بیرته وګرځیدل او...!
سلطان یې بیا خبره ورغوڅه کړه وې ویل : او پاتې دوه زره تنه به خامخا چیرته د مغلو په منګلولو کې راګیر شوي وي؟
عبدالملك په غمجنه لهجه ځواب ورکړ : هوکې د تبریز او همدان ترمنځ موږ د هغوی د څو ډلو له خوا راګیر شوو.
: څومره سرتیری ژوندي پاتې شول؟
د دوو سو تنو په شاوخوا کې، چې تبریز ته راورسیدو ستا درك مو ونه موند، ځکه خو له دې پنځو تنو پرته نور مایوس بیرته ستانه شول او له هغو پنځو تنو سره زه له دوو میاشتو راسې ستا په لټون پسې په دې شاوخوا غرونو کې سرګردان وم او دا دی دلته راورسیدو.
جلال الدین وویل : تا دومره خلك بې ځایه ضایع کړل.
: زه خپله غلطي منم، زه باید په کردستان راتاو شوی وای، خو ایا ته دا نه منې چې پر ما ته ستا اعتراف به د هغو لکونو انسانانو وینې خوشې ولاړې شي چې د وروستی برې په امید یې ستا ملاتړ کاوه؟
سلطان ځواب ورکړ : نو ته دا غواړې چې زه تر څو ژوندی یم لړ لړ مسلمانان باید راټول کړم او د مرګ کومې ته یې ورټیل وهم! زه تر اوسه په دې امید جنګیدم چې اسلامي نړۍ به راویښه شي، ما هغوی ته د تیارۍ وخت ورکول غوښتل او ما خپل فرض پوره کړ، هغوی له مراکش نه تر هندوستان پورې ماته د

ډاډینې پیغامونه را واستول خو نتیجه یې څه شوه؟

زه چې اوس بیا راپورته شم په کوم امید!؟

د چا په امید وجنګیږم! ته له دې قوم نه څه هیله لرې چې امیران یې وطن پلوري دي؟! چې په علماؤ کې یې یوه داسې ډله پیدا شوې ده چې د منبر پر سر د مغلو د غلامۍ فتوی ورکوي، چې د سرتیرو د تورو او سپنه یې د دښمن د پیسو په حرارت ویلې شوې او چې خلیفه یې... ما د هغه یادول نه غوښتل.

: دا هر څه د خلیفه له لاسه وشول، خو د خلیفه د بې وفایۍ نه وروسته د خدای «ج» د رحمت دروازې ونه تړل شوې ته بیرته هندوستان ته ولاړ شه، که هندوستان نه وي د مصر او مراکش دروازې دي پرمخ خلاصې دي، موږ به له مغلو نه د شمال د اورنیو غرونو بدل د افریقا په تودو دښتو کې واخلو، ښایي تر اوسه د خدای «ج» د رحمت د نازلیدو مهال نه وي راغلی خو موږ به تر هغه وخته جنګیږو تر څو د خدای «ج» د رحمت سمندر په جوش رانه شي، فرض کړه چې له ترکستان نه د مغلو شړل ستا په برخه کې نشته، خو دا ستا په وس کې شته چې د سلطان او د لښکرو د مشر پر ځای د یوه سرتیري په حیث د یوه بل سلطان خدمت وکړې.

سلطان په ترخه لهجه وویل : ته ما ولې اندیښمن کوې؟ ما څو پاچاهانو ته پیغامونه استولي دي، د هغوی ځوابونه هم راغلي دي، هغوی حق په جانب دي. یوه ماتې خوړلي پاچا ته پناه ورکول اسانه نه دي او زما په لټه کې د مغلو پنځه لکه تنه شپه ورځ بوخت دي.

هغوی په خپل پوځ کې د یوه ماتې خوړلي سرتیري په مقلو سره پنځه لکه تنو مغلو ته ولې د یرغل بلنه ورکړي؟

زه یوازې یو سرتیری وم، او خپل فرض مې ترسره کړی دی، زما سره توره وه او ترڅو چې تیره وه جنګیدلم، خو ته د یوه سرتیري سره سره عالم هم یې او ستا ذمه واري تر اوسه پوري نه ده پوره شوې، ته ورځه نور زما او ستا لارې بیلې دي.

عبدالملك وویل : مګر یوه لاره شته چې دواړو ته خلاصه ده.

: هغه کومه ده؟

: د عزت مرګ! موږ له دې لارې نه هیڅوك هم نشي ایسارولای جلال الدین جګ شو ودرید، او بیله دې چې نور څه ووایي بلې کوټې ته ولاړ، او چې لږ څنډ وروسته بیرته راووت د سپرلي جامې یې اغوستې وې، د مجلس خلك ټول

ودریدل.

سلطان وویل : عبدالملکه! د عزت د مرگ لپاره ماته د ملگرو ضرورت نشته، ما غوښتل د دنیا ټول غمونه په شرابو کی ډوب کړم خو زه په کرار نه شوم ، ما هڅه وکړه چی د نغمو په تال کی ویده شم، خو د تورو شرنگهار می په غوږونو کی کرنگیده، زه ځم او تاسو ټولو ته امر کوم چی هیڅوك راپسی رانشی. زه د مسلمانانو د دفاع لپاره ستاسو تورو ته اړ وم، خو اوس د ځان په خاطر ستاسو ژوند په خطر کی غورځول نه خوښوم.

عبدالملکه! زما شراب خوړل به پر تا ښه نه وی لگیدلی، زما په زړه کی د تیمور ملك لپ وینو نه ورروسته ستا د اوښکو زیات درناوی او قیمت دی، زه وعده کوم چی بیابلاس ورنژدی نه کړم، ته بیرته ولاړ شه خپل کار ته دی دوام ورکړه. تاته به دا غوره وی چی هندوستان ته ولاړ شی، طاهر ښایی تر اوسه هلته وی، که دی ولید زما له لوری ورته ووایه چی د سلطان التمش سره پاتی شی، که یی نه منله ورته ووایه چی دا زما حکم دی. زما ورروستی حکم!

سلطان یوه تن ته د اس د زین کولو امر وکړ، یوه سردار وپوښتل : مگر ته په دی اوریښت کی چیرته ځی؟

سلطان ځواب ورکړ : ماتاته ددی پوښتنی کولو اجازه نه درکوله، که ته زما سره څه کولی شی نو دا دعا کوه چی خدای «ج» دی ما د عزت له مرگه نه محروموی، او ته زر تر زره له دی ځایه ولاړ شه. زه نه غواړم چی ستا په موجودیت د مغل وحشی لښکر دغه سیمه هم برباد کړی.

عبدالملکه ! په دی خلکو کی زیاتره داسی دی چی کور او کلی نه لری زه دوی تاته سپارم. ته د وی هندوستان ته بوزه، زما باور دی چی سلطان التمش به د دوی مرسته وکړی.

لږ ځنډ ورروسته دغه خلك د کلا په دروازه کی ولاړ وو او له سلطان سره یی خدای «ج» پامانی کوله. په دوی کی یو هم داسی نه ؤ چی په سترگو کی یی اوښکی نه وی. سلطان اس پونده کړ یو تن ورمنډه کړه رکاب یی ونیو او په ژړا یی وویل:

زه له وړوکتوبه له تاسره یوځای یم، د خدای «ج» په خاطر ماته اجازه راکړه چی درسره ولاړ شم.

: ډیر ښه، ته له ماسره تلای شی، خو که کوم بل چا له حکم نه سرغړونه وکړه

زه به ډیر خفه شم.
سلطان جلال الدین خوارزم شاه د واورو په توپان کی ورك شو .
تر دی وروسته بیا چاته دا معلومه نه شوه چی هغه څه شو او په څه حال دی.
تر ډیرو کلونو پوری د هغه په باب ډیر عجیب او حیرانوونکی داستانونه مشهور شول. کله به دا وا وریدل شوله چی هغه چا د یوه فقیر په جامه کی په فلانی کلی کی لیدلی، کله به دا خبره مشهوره شوه چی په کوم ځنګل کی یی د یوازی توب ژوند غوره کړی دی. او کله به دا خبر راغی چی هغه د خلکو له نظره غلی د مغلو سره د وروستی جګړی دپاره د سرتیرو یو ځواکمن لښکر راټولوی او ناڅاپه به یوه ورځ په فلانی ځای کی راښکاره شی.
مغلو پر هغه پسی ټول وطن لویشت په لویشت ولټاوه، په سلګونو تنه یی په دی ګومان چی جلال الدین دی ووژل او د ده د موندلو لپاره یی لوی لوی بخششونه اعلان کړل. خو هیڅ درك یی معلوم نه کړای شو.
ځینو خلکو ویل چی نوموړی د یوه عادی سرتیری په جامه کی د مغلو پر یوه چوڼی حمله وکړه وجنګیده او بیا شهید شو. ځینو نوروخلکو بیا دا ګومان کاوه چی هغه د قوم کوم خاین یا د مغلو کوم جاسوس وژلی دی.
په هر صورت د وخت په تیریدو ورو ورو خلك پر دی باوری شول چی د خوارزم زمری ژوندی نه دی.

* * * * *

(۵)

یو ماښام له بغداد نه څو پړاوه لری عبدالملك او د هغه ملګری د یوه کلی سرای ته ور ورسیدل له اسونو پلی شول د شپی مهال چی د سرای ټولی کوټی ډکی وی نو د سرای مالك د عبدالملك کوټی ته ورغی ویی ویل :
یو بل عزتمن سړی راغلی دی، په نورو کوټو کی د پښی ایښودو ځای نشته، ته به د هغه دپاره زحمت باسی.
عبدالملك وویل : زه د هغه له لیدو پرته په کوټه کی هغه ته اجازه نشم ورکولی.
د سرای خاوند وویل : هغه ډیر ستومانه دی، د مغلو جاسوس نه ښکاری.
عبدالملك وویل : د مغلو نه، د خلیفه جاسوس به وی.
: زما باور دی چی هغه جاسوس نه دی، د سرای له خلکو سره جاسوس دومره په آمرانه لهجه نشی مخ‌کیدای زما پر دی انکار چی تش ځای نشته هغه د خپلی

خپتی څیرولو گوابښ کړی دی.

یو سړی کوټی ته ورننوت او ویی ویل : له ده سره زه پریکړه کوم تاسو زر دودی راوړی!

عبدالملك منډه واخستله نوی راغلی سړی ته ورترغاړی وت چیغه یی کړه : طاهره! ته دلته څه ډول راورسیدلی؟!

: زه له بغداده راغلم او د سلطان په لټون پسی آذربائجان ته ځم.

عبدالملك وپوښتل : ته بغداد ته څه وخت راغلی؟

: څلور ورځی کیږی، نیمه شپه وه ورسیدم ستاسو کور ته ولاړم هلته می ټول احوال معلوم کړ او سهار وختی بیرته را روان شوم.

: نو تاته ټول حال معلوم شو؟

طاهر په مایوسی ځواب ورکړ : هو!

عبدالملك وویل : ته دلته ډیر ناوخته راغلی!

طاهر ځواب ورکړ : زه سلطان التمش بنګال ته د یوه مهم کار لپاره واستولم. ستا استازی هم ماته ناوخته راورسید.

: ستا میرمن چیرته ده؟

: هغه می په ډیلی کی پریښوده او زه دی لوری ته راغلم. دغه سفر ډیر ګران ؤ. په بغداد کی زه پردی هم خبر شوم چی مغلو پر تا حمله کړی ده ستا په باب زیات اندیښمن وم اوس چیرته روان یی؟

: زه د خپلو ماشومانو د راوستلو لپاره بغداد ته روان یم.

: وروسته بیا څه ارداه لری؟

: بیا هندوستان ته دتلو اراده لرم.

: سلطان جلال الدین د التمش په نامهکوم پیغام درکری دی؟

: نه!

د طاهر د څو پوښتنو په ځواب کی عبدالملك خپله کیسه سر تر پایه ورته تیره کړه. طاهر تر ډیره چوپ ناست ؤ، د سرای مالك ډوډی راوړه د دوی په مخکی یی کیښوده خو د دوی اشتها سوځیدلی وه.

عبدالملك وویل : زه ددی خلکو بغداد ته بیول مناسب نه بولم دوی به همدلته پریږدم او ماشومان به پخپله راولم او بیا به هندوستان ته مخه کړو. اوس چی ته راغلی ماته غوره مشوره راکولی شی.

طاهر وویل : که موږ سلطان پیدا کړو او هندوستان ته یې بوزو زما په گومان به التمش اوس د هغه په ورتگ څه اعتراض ونه لري، د جلال الدین د پیغام په وررسیدو هغه له مغلو سره د جهاد اعلان ته چمتو شوی ؤ.

: خو د خوارزم شاه پیدا کول اسانه نه دي، که یې بیا پیدا کړای شو هم هندوستان ته په تلو به راضي نه وي یو لویدلی دیوال بیرته دریدلی شي خو لویدلی غر بیرته نشي دریدای.

طاهر له لږ فکر وروسته وویل : ډیر ښه ته دي ملگري دلته پریږده خو زه به درسره خامخا ځم.

: ستا خوښه خو هلته په مرو ایرو کې له پوکلو نه هیڅ نه ترلاسه کیږي. اوس خو هلته داسې علما هم پیدا شوي دي چې مغلو ته د خدای سیوري او اولي الامر وایي.

: زه هلته خپل وروستی فرض پوره کوم.

: هغه څه؟

: زه اولس ته دا ویل غواړم چې د بغداد تباهي را روانه ده، که دوی د راتلونکې توپان د مقابلې لپاره چمتو نه وو نوزه به ورته ووایم چې ځانونو ته کوم د پناه ځای وگوري.

زه خلیفه ته دا وایم چې لږ تر لږه باید د خپل کور د ساتنې غم وکړي.

: خو دا تول بې گټې دي او ښایي تاته دا هم معلومه شوې وي چې له مغلو سره د ترون نه وروسته مهلب صدر اعظم ټاکل شویدی.

: زه د دې لپاره هم بغداد ته ځم، هو مبارک چیرته دي؟

: هغه په بغداد کې دي.

# وروستی پیغام

په بغداد کی د مناظرونه شلیدونکی لړی بیا پیل شوی وی، د سیند په غاړه د شیعه او سنی علماؤ تر منځ یوه زورروره مقابله «مناظره» روانه وه، د دواړو ډلو لویو علماو پکی برخه درلوده، او خلکو داسی احساسوله چی له لاسه وتلی مشغولتیاوی او سرگرمی یی له سره پیل شوی دی.

په همدان کی د مغلو د یوه لوی لښکر راټولیدل د بغداد خلکو ته یو تریخ حقیقت ؤ، د خلیفه او تولای خان ترمنځ پر یو بل د برید نه کولو پر تړون برسیره څوک په دی نه تیروتل چی د مناسب فرصت په ترلاسه کولو به مغل پر بغداد حمله ونه کړی،خو د بغداد د خلکو حالت هغه «شتر مرغ» ته ورته ؤ چی پر افق تالنده وويني او سر پر ریگونو کی ومنډی.

بحثونه او مناظری دوی ته د نشه راوړونکی دوا په څیر وی، د اسلام دښمنانو د ترکستان، خراسان او ایران په میدانونو پراوونه اچولی وو او پر اسلامی نړۍ یی د وروستی گوزار لپاره خپلی توری او نیزی تیرولی او په بغداد کی د اسلام نوم اخستونکی د دی لپاره ناکراره و چی وپوهیږی د کومې فرقې د علماوو د ژبی تیغ نه نورو نه زیات تیره او زیات زهرجن دی؟

طاهر بن یوسف او د هغه ملگرو په دوی کی یو څل د لږ وخت لپاره د ژوند ساه پو کړه، او د دوی په فعالیتونو د څه مودی لپاره د هغو علماو کار او بار د څه وخت لپاره سوړ شوی ؤ چی له تیرو څلورو پیړیو را په دیخوا یی د یو بل دروغجن او کافر ثابتول د دین تر ټولو ستر خدمت باله، د هغوی ځای د حق ربښتینو علماؤ نیولی ؤ چی له تباهی او بربادی نه د خدای «ج» او رسول صلی الله علیه وسلم د هر نوم اخستونکی ژغورل خپله دینی فریضه او ذمه واری بلله، خو د حقپالو، دغه ډله هم هغو خلکو ته د توری د اهمیت په وربښودلو کی پاتی راغله چی له پیړیو پیړیو راسی د هر درد د علاج لپاره په کتابونو روږدی شوی

وو.
هغوی د طاهر په بلند میدان ته راغلل او د هغوی د هڅو په نتیجه کی د اولس په اذهانو کی یو ناڅاپی بدلون راغی هغوی د خبرو پرځای د ژغورنی لاره په عمل کی ولیده هغوی خوارزم شاه وروستی حصار او مورچل وګانه او پری ورتول شول. خو د بدلو حالاتو په وړاندی د هغوی جوش او احساسات ساړه شول، له لری لری ځایونو راغلی رضاکاران بیرته مایوس ستانه شول.
خلیفه د دوی د ساتنی ضامن و او د خلیفه نوی وزیر په ډیری هوښیاری او تدبیر مغل د بغداد مدافعین او ساتونکی وبلل، د دوی په نظر پریووالی، تنظیم او جهاد د تښیګار کوونکو علماو اهمیت لږ شو او دوی یو ځل بیا خپلو هغو لاربښوونکو ته پاملرنه وکړه چی د یوه ښه مناظره کوونکی او بحث کوونکی جوړیدل بی د دنیا او آخرت نیکمرغی بلله، د سنیانو او شیعه ګانو دغه مناظری په بغداد کی د علم او عرفان د باران د نزول د دوهم پړاو پیلامه وه.

*****

(۲)

د مناظری دریمه شپه وه، یو بل ته مخامخ پر دوو ستیژونو خیمی دریدلی وی، په مناظره کی برخه اخستونکی علما پر کرسیو ناست وو، د هغوی په مخ کی په میزونو لوی لوی کتابونه کتار وو، د روښنایی لپاره د دواړو ډلو رضا کارانو مشالونه اوچت نیولی او دریدلی وو، پردی سربیره ځای ځای فانوسونه راځړیدلی وو، په منځ کی د دریمګړی ستیج ؤ او څلورو خواوته د خلکو بی شانه ګڼه ګونه وه.
په تیرو دوو ورځو کی د مناظری اصول او مقررات وټاکل شول، د دواړو لوریو علماو دا سوګند اوچت کړی ؤ چی دوی به له پاروونکی کار ځخه ډډه کوی د خلکو دا ګومان و چی د دوی دغه لوبه به لږ تر لږه تر شپږو میاشتو پوری دوام ولری او له بزګرانو پرته زیاتره خلك د مناظری تر پایه د موسم د بدلیدو هیله من نه وو، دوی په وار وار دا ازمویلی وو چی که د تالندی یا باران په سبب په مناظره یوه یا دوی ورځی ځنډیدله نو مناظره کوونکی به تازه دمه شول او له سره به یی بحث پیل کړ، نن مانښام ته نژدی پر لویدیځ افق تیاری راخوری شوی خو د خلکو دا ګومان و چی تالنده نشی راتلای پردی سربیره د دریمګړی په غوښتنه د مناظری له پیل نه مخکی خلکو دا دعا کړی وه چی نن یی مجلس په خیر خیرت

پای ته ورسیږي.

صفونه ترل شوي وو، او د دین په مورچلو کی د علم توپونو د ګولیو او رول پیل کول چی د توپان یوه تونده څپه راغله، مشالونه مړه شول او د کیږدیو تنابونه وشلیدل، د خیمو په منځ کي راځړیدلیو فانوسونو په سبب په دواړو ستیجونو اورونه ولګیدل علما بهر ته راووتل خو په ګڼودي کی هغه زیات قیمتی کتابونه په اورونو کی پاتی شول.

له څو زوروړو څپو وروسته شمال ودرید او آسمان شین شو، پر ستیږونو د لګیدلی اور لمبوله اسمان سره خبري کولی، دریمګړی ستیج له اور نه خوندی و د هغه چتر هم روغ پاتی ؤ، ښی او کیڼ لوری ته د اور د لمبو په زیاتیدونکی رڼا کی خلکو ولیدل چی د دریمګړی سره نژدی یو سړی د سرتیرو په جامه کی ولاړ دی او په دواړو لاسونو خلك چوپتیا ته رابولی، څوك چی ورنژدی وو هغوی وپیژاند او په لږ شبیه کی د خلکو په منځ کی له یوه سره تر بله د طاهر بن یوسف، طاهر بن یوسف غږونه اوچت شول، خلك له څلورو خواونه د دریمګړی د ستیج خواته ورتول شول، د اور د لمبو له لوړیدو سره د هغه چتري ته هم خطره شوه خو څو ځوانانو یی راندی غوځی کړی او چتري یی لری یوی خواته وغورځوله.

د دریمګړي چی طاهر خبرو ته چمتو ولیدل ویی ویل : زه له خپل ستیج څخه چاته د خبرو کولو اجازه نشم ورکولی، خو عبدالملك زر ور وړاندی شو د هغه په غوږ کی یی وویل : ته چوپ اوسه دا درته غوره ده که نه زما خنجر ډیر تیره دی، دا غونډه به ستا په صدارت وی ته غلی چوپ کینه!

د مناظره کوونکو سترګی په سو ځیدونکو کتابونو نښتی وی، ځکه هغوی له دی نه ناخبره وو چی د دریمګړي له ستیج سره نژدی څه پیښه ده، او کله چی دوی د طاهر بن یوسف نوم واورید تکان یی وخوړ، هغه خبری پیل کړی وی، د هغه د خبرو دا څو جملی د خلکو د پام وړ اړولو لپاره بس وی:

«پر ژوند پوری ملنډي وهونکو! دغه تالنده او توپان د خدای «ج» یو خبرداری وګڼی! تاسو به د بابل او نینوا د تباهی داستانونه اوریدلی وی، خو خدای «ج» دی هغه ورځ نه راولی چی په راتلونکی کی سیلانیان د دی ښار ماضی کنډوالی وګوری دا ووایی چی یو وخت دلته یو شاندار ښار آباد ؤ چی بغداد نومیده، شل لکه انسانان پکی اوسیدل، مانۍ یی د پنځو پیړیو د معماری نمونی او یادګارونه وو، خو د بابل او نینوا په څیر دوی هم د عبرتناکی بربادی سره

مخ شول.

او دوی ځکه له بربادی سره مخ شول چې دوی به د خپلو اشتباهاتو لپاره د خدای «ج» او رسول د احکامو تاویلونه کول، دوی د قرآن حکیم نه د ژوند درس زده کول پریښودل، قرآن دوی ته د یووالي او نظم حکم کاوه خو د دوی د ژوند لومړنی مقصد د مسلمانانو په منځ کی د نفاق او بدبختی پیدا کول وو.

خدای «ج» دوی ته له کفارو سره د جهاد حکم کاوه خو دوی کفار خپل ساتونکی او محافظین گڼل او پخپلو کی سره لاس او گریوان وو، د بربریت یو زوروور توپان یې دروازې ورټکولې، خو دوی د راتلونکې بربادی نه سترگې پټې کړې وې او یو پر بل یې د الفاظو غشی اورول کاوه بلل.

د بغداد خلکو!

د بغداد خلیفه او ستاسو امیرانو یوازی د خو کاله آرام او اسوده ژوند په خاطر ستاسو او ستاسو د راتلونکې نسل د خپلواکی او ناموس معامله له مغلو سره کړې ده، خو امیران چې دلته شته دی، په خلاصو غوږونو واوری چې د بغداد انجام به له خوارزم نه بیل نه وی، تاسو د اور لمبو ته بلنه ورکړه چې د بغداد درمندونه وسوځوی.

تاسو د اور لمبې خپلو کورونو ته وربللی دی چې یوازې په سوځولو پوهیږی، او په یاد ولری! کله چې هغه سوځول کوی نو د جونگړی، او ماڼی تمیز او توپیر نه کوی.

مسلمانانو! ستاسو تاریخ گواه دی چې تر اوسه پوری تاسو د چا توری مات کړی نه یاست، ستاسو توری د هر چا توری غوڅې کړې دی، ستاسو د گوتو په شمار پوځونو ډیرو لویو لویو لښکرو ته ماتې ورکړې دی، ستاسو د کومی ناکامی او ماتی سبب ستاسو کمزوری نه دی، بلکې که تاسو کله ماته خوړلی هغه ستاسو د خپلمنځی اختلاف او ځانځانی نتیجه ده، تاسو که کله له تباهی سره مخ شوی یاست نو هلته ستاسو د خاینانو لاس دی».

یو تن په لوړ آواز وویل : ایا د جلال الدین په ماتو کی هم د کوم غدار او خاین لاس ؤ؟

طاهر ځواب ورکړ : څوك وایی چې جلال الدین ته مغلو ماته ورکړه؟ هغه د یوه کمره په څیرد مغلو د سیلاب د ځپو مقابله کوله، لویو لویو توپانونو هغه ونه خوځولای شو، خو د دی کمره د ماتولو لپاره مغلو ته د اسلامی نړی معمارانو

خپلی تیشی ور وړاندی کړی، دجلال الدین په مایوسولو تاسو خپل یو مرستندوی له لاسه ورکړ، هغه د بغداد پر دروازو پهره کوله، خو پر هغه د شانه گوزار وشو هغه څو کاله د مغلو پام ور گرځولی ؤ چی تاسو د تیاری وخت ترلاسه کړی، د ترکستان، خراسان او ایران د ښارونو بربادی ستاسو د سترگو د غړیدو لپاره کافی وو، خو تاسو د تولنیز ژوند پرځای انفرادی مرگ غوره کړ، تاسو د هغه سړی پښی هم ووهلی چی ستاسو بار یی هم پخپلو اوږو اخستی ؤ.

د بغداد خلکو!

ستاسو په خوښه او یا ستاسو له خوښی پرته د بغداد خلیفه تاسو ته ازغی کرلی دی، تاسو له راتلونکی نه د گلونو تمه مه کوی، ایا تاسو دا فکرنه کوی چی بغداد...»

طاهر خپله خبره نه وه بشپړه کړی چی د سیند د بری غاړی نه د غشو باران جوړ شو او په یوه وخت کی دری غشی د طاهر په زغره کی ونښتل، د ستیج شاوخوا څو تنه تپیان شول اوځلورو خواوو ته گډوډی پیل شوه، طاهر له خپله ځایه ونه خوځید او په لوړ آواز یی وویل:

د بغداد خلکو زما پیغام واوری بیا ولاړ شی!

عبدالملك په بیړه طاهر له ستیژ نه راښکته کړ، د غشو یو بل باران راغی او د ستیج په شاوخوا کی څو نور کسان هم تپیان شول، په دی څنډ کی د طاهر څو سرښندوی مینه وال توری ایستلی د سیند د غاړی په لوری ولاړل او تش لاسی خلك هم په هغوی پسی ورغلل، خو د دوی د ور رسیدو نه دمخه غشی ویشتونکی په کومه خوا تللی و، او د سیند څو کښتی بلې غاړې ته روانې وې، عبدالملك څو تنه رضاکاران د سیند پر غاړه په پهره ودرول او پخپله بیرته طاهر ته ورغی، ویی ویل:

هغوی وتښتیدل، مگر ته تپی یی، راځه دلته پاتی کیدل خطرناك دی.

خو طاهر له خپلی زغرې نه دوه غشی کش کړل ویې ایستل او ویې ویل : دا زخمونه ډیر معمولی دی دا دریم غشی ته وباسه.

: مگر وینی!

: په څو څاڅکو څه لوی نقصان نه کیږی، زر کوه زه یو څو خبری ضروری بولم.

عبدالملك غشی و ایستلو او ونی ویل : ستاخوښه خو دا هغه مړی نه دی چی د

اسرافیل په شپیلۍ راپورته شي.

*****

(۳)

طاهر یو ځل بیا په ستیژ ودرید، خلك چوپ شول هغه وویل:

د بغداد خلکو! ایا دا فکر نه کوئ چې ستاسو د غدارانوله لاسه د خوارزم د لکونو شهیدانو وینې بې ځایه ولاړې شي؟ د یتیمانو آهونه او د کونډو اوښکې بې اغیزې شي؟

په یاد ولرئ! دبغدا د هغه خلك چې له خوارزمشاه سره یې غداري کړې ده د اولس هغه مجرمان دي چې خدای «ج» به یې هیڅکله هم ونه بخښي، د تقدیر پریکړې ثابتې او نه بدلیدونکي دي، ښایي زما دعاګانې هغه بدل نه کړي خو که تاسو یوازې ژوندي پاتې کیدل غواړئ هم نو زه دا مشوره درکوم چې بغداد پریږدئ او چیرته ولاړ شئ، هغه ښار چې دومره غداران او بد ذاته خلك پکې وي د تقدیر له کسات نه نشي ژغورل کیدای.

زما مشوره ښایي هغو خلکو ته د منلو وړ نه وي چې له مغلو څخه یې د وطن پلورنې قیمت اخستی دی، خو اولس ته زه دا وایم چې دلته پاتې نه شئ، ستاسو د علماو د فتنو پاللو، امیرانو د خیانت او د خلیفه د بې تدبیرۍ له امله له بغداد څخه د ځمکې د مخ یو ناسور جوړ شوی او تقدیر چې کله جراحي ته چمتو کیږي نو تیره او بې رحمه تیغ یې د چټلې وینې سره پاکه وینه هم بهوي.

دا مه ګڼئ چې ستاسو د خلیفه روحانیت به ستاسو د ساتنې ضمانت وکړي او مغل چې د خدای «ج» او رسول ﷺ نه منکر دي ځکه خو په تاسو تش په نامه مسلمانانو هم نشي برلاسی کیدای.

د خدای جل جلاله او رسول صلی الله علیه وسلم ملاتړ یوازې له هغه چا سره وي چې احکام یې مني.

مغل کافر دي خو هغوی د مسلمانۍ دعوه نه کوي، تاسو د مسلمانۍ دعوه کوئ خو په عملي ډول د خدای جل جلاله او رسول ﷺ له احکامو نه انکار کوئ.

مغل د باطل نظام د برلاسي لپاره سرښندنه کوي اسلام تاسو جهاد ته وربولي، اسلام را ښیي چې تاسو د ټولې نړۍ څخه د فتنو د ورکولو لپاره پیدا شوي یاست، خو د خدای «ج» ددې ښکاره احکامو سره سره تاسو ځان نه خوځوئ.

په یاد ولرئ! داسې بې همته او بې غیرته قوم د خدای «ج» د رحمت حقدار نه

شی کیدای، تاسو د خپلو پلرونو د امانت بار نشی اوچتولی، تاسو دا گومان مه کوی چی تاسو له منځه ولاړی نو اسلام به نابود شی، نه، خدای «ج» به د خپل دین د لوړولو لپاره بل اولس غوره کړی، د خدای «ج» دین تاسو ته اړ نه دی، تاسو ورته اړیاست.

تقدیر ته دا اسانه ده چی له تاسو نه وروسته له همدغو مغلو نه چی د اسلام ډیر بد غلیمان دی د دین د ساتنی او دفاع کار واخلی، اسلام داسی زړه ته ضرورت لری چی له خدایه پرته پکی د بل چا ویره نه وی، د داسی غاړی ضرورت دی چی له خدایه پرته بل چاته په ټیټیدو روږدی نه وی، د داسی توری ضرورت دی چی کړیدل یی نه وی زده، اسلام داسی سر تیری ته اړتیا لری چی د بری او ماتی نه بی پروا جنگیدلی شی، د اسلام نیک زړی، نیک خویه او نیک ذاته انسانانو ته ضرورت دی چی له خپلو سره غداری نه کوی، داسی علماؤ ته ضرورت نه لری چی د کافرو په ملاتړ فتوی ورکوی، د داسی علماؤ ضرورت دی چی د غشو په باران او د تورو په سیوری کی کلمه زمزمه کوی. د خدای «ج» دین د مرمر ډبرو په محلونو کی اوسیدونکو او د وریښمینو چپنو او جامو اغوستونکو امیرانو ته ضرورت نه لری، هغو صبرکوونکو او احسان منونکو سپاهیانو ته یی اړتیا ده چی په خیتو باندی ډبری تړی او جنگیدلی شی.

د بغداد خلکو! ستاسو لپاره دوی لاری دی، یوه دا چی په تیرو گناهونو توبه وباسی او د راتلونکی لپاره فکر وکړی، د راتلونکی مصیبت د مقابلی لپاره سره یو شی، خو دا کار تر هغو پوری نشی کولی تر څو د بغداد کوڅی او واټونه د خاینانو او نفاق اچوونکو څخه صفا نه کړی. ستاسو لپاره دوهمه لاره دا ده چی دغه ښار پریږدی او چیرته لری ولاړ شی، پردی ښار د خدای «ج» قهر نازلیدونکی دی، زه وینم چی د دجلی د سیند اوبه ستاسو په وینو سری کیدونکی دی او مغل ستاسو له کوپړیو نه د فتحی د څلیو جوړوونکی دی. دا ښار د وحشت او ستم د هغه دوران لیدونکی دی چی تر اوسه پوری چا نه دی لیدلی، ښایی د بغداد د ویرانی او تباهی په وراندی د بابل او نینوا د بربادی داستانونه هم پیکه شی.

ددی وینا له پای ته رسولو وروسته زه په بغداد کی خپل وروستی فرض هم ترسره کوم، له دی وروسته به تاسو ماونه وینی، او دا د دی لپاره نه چی زه له خطر نه تښتم، بلکی د دی په خاطر چی زه د ځان وژونکو له ملگری نه له هغه چا

سره ملگري غوره بولم چې ژوندي پاتې کېدل غواړي، زه ددې لپاره ځم چې تاسو مې ضرورت احساس نه کړ، خو که ماته دا معلومه شوه چې له تاسو سره د ژوندي پاتې کېدو هیله راپیدا کېږي او تاسو بغداد له غدارانو نه پاکولو ته چمتو یاست او د مغلو په ملاتړ تر ژوند نه مرگ غوره بولۍ نو د عزت په مرگ کې زه ستاسو ملاتړ کولی شم، د ذلت په ژوند کې ملگري کولو ته درسره تیار نه یم.

«د خدای «ج» پامان»

مناظره کوونکو دادمنه ساه واخسته او طاهر له ستیج نه راکوز شو له عبدالملك او نورو څو ځوانانو سره په تیارو کې ورك شو.

عبدالملك یوه ورځ د مخه خپل اولادونه له بغداد نه لیږلي وو، پنځلس ، شل تنه ځوانان له ښار نه بهر دوی ته انتظار وو، د غونډې له ځایه چې ووتل عبدالملك وویل : که تاته د ټپونو په سبب سفر گران وی نو تر اوسه ځینې داسې دغلې کیدو ځایونه شته چې حکومتي سرتیرو ته نه دي معلوم.

طاهر ځواب ورکړ : نه ! په زغره دي غشو چندان اغیزه نه ده کړې، معمولي زخمونه دي، زه پرې خبریږم هم نه، خو له تلو نه دمخه زه په بغداد کې یوه بله ذمه واري هم پوره کول غواړم، او ښایي د دې هدف لپاره زما د څو تنو ځوانانو ملاتړ ته ضرورت شي.

: د څه لپاره؟

: د مهلب بن داود سره څو خبرې!

: مگر اوس د صدر اعظم ماڼۍ ته ننوتل آسان نه دي.

: ماته یوه آسانه لاره معلومه ده.

: د څو تنو ضرورت دی؟

: تر لس تنو پورې.

: نو راځه! مگر چیرته چې ته د لسو تنو اړتیا احساسوې زه هلته پنځلس تنه ضروري بولم.

: ډیر ښه پنځلس سهي دي، مگر په دې کار کې تر زیاتو خلکو زیات پام ته ضرورت دی.

# پای

صدر اعظم مهلب بن داود د خپلې مانۍ په یوه پراخه کوټه که ناست ؤ چی د سیند د غاړی لوری ته وه، د ښار ناظم، د جیل څارن او د بغدا د د پوځونو سالار قشمور په مجلس کی ورسره شریك وو، د شرابو پیالی گرځیدلی او د بغداد په تازه حالاتو تبصری کیدلی.

مهلب وویل : زما په گومان خو هغه بیا وژغورل شو، په هغه ورځ چی هغه قوی زهرو هیڅ پری ونه کړل نو معمولی زخم به یی څه وکړی؟

د ښار ناظم ځواب ورکړ : نه ماته کوتوال په دی اړه تسلی راکړه او راغلی یم، په دومره فاصله کی لږ تر لږه څلور غشی چی لگیدلی وی نو ژوندی نشی پاتی کیدای او د هغی ورځی د زهرو په باب زما رایه دا ده چی له ده سره به د زهرو تریاق وو.

: مگر هغه دیر باتد بیره دی، کیدای شی زغره یی اغوستی وی او راغلی وی. کوتوال هغه د لویدو په حال کی لیدلی او تری راغلی.

: زما هدایت دا ؤ چی زر تر زره په کښتیو کې بلې غاړې ته ځانونه ورسوی او د نتیجې انتظار مه کوی.

مهلب وویل : هغه بیا له امن نه په ډك ښار کی اور بل کړی دی، زه به یو ځل بیا مغلو ته داډ ورکوم او زما په گومان به د دوی بیا غوښتنه دا وی چی څوك د دوی پر خلاف بلوا وی جوړوی دوی ته یی وسپاری.

د جیل څارن وویل : له دی پرته موږ ته بله لاره نشته، طاهر که فرصت ترلاسه کړ نو موږ ته به گوزار راکړی.

د ښار ناظم وویل : مگر زموږ لخوا د زرتر زره اقدام پرخلاف به اولس راوپاریږی او د اولس جوش او احساسات چی وگوری نو خلیفه به هم د سمدستی اقدام کولو اجازه را نه کړی، نن په وینا کی ده اعلان وکړ چی له بغداده درومی،

که هغه ربښتیا هم ولاړ نو خبره به پخپله سره شي. او که هغه دلته د پاتې کيدو هڅه وکړه نو د علماو يوه لويه ډله موږ د هغه پرخلاف تياره کړې ده چې د هغوی پيروان به دوی ته د فعاليت اجازه نه ورکوي.

نن د هغه خبرې له اټکل نه لرې وې، که نه موږ به په غونډه کې د ګډوډی جوړولو لپاره خلك ور استولي وو، د راتلونکی لپاره به زه دا بندوبست وکړم چې د هغه د رتلو لپاره په هره څلور لارې او جومات کې علما موجود وي.

تر سبا پورې به لږ تر لږه د يو نيم سل علماؤ لخوا دا فتوی صادره شي چې هغه غواړي خلك بغاوت وکړي.

ناڅاپه طاهر ايستلې توره دننه ورننوت او ويې ويل : تاته به د غلطی فتوی د صادرولو اړتيا پاتې نشي، د مهلب له لاسه د شرابو جام ولويد او ښکته پرې راغله، قشمور زر راپورته شو د تورې موټې ته يې لاس ور اوږد کړ خو طاهر د برښنا په څير د خپلې تورې څوکه د هغه په سينه ورکيښوده او ويې ويل : کښينه!

قشمور له غوسې نه شونډې وچيچلې او کښيناست.

مهلب راسنبال شو ويې ويل : ته دلته په څه نيت راغلی يې؟

طاهر ځواب ورکړ : ته له ډيرې مودې په ما پسې سرګردانه وې، او ما له بغداده د تلو نه مخکې له تا سره څو خبرې غوښتې.

: مګر تاته معلومه نه ده چې زما د غږ په اوريدو به دلته پنځوس تنه پهره داران راټول شي.

طاهر په داډ ځواب ورکړ : پنځوس نه پنځه څلويښت! پنځو تنو د سيند په غاړه ارګمې ايستل، هغوی زموږ په ولکه کې دي، که تا نورو ته غږ وکړ نو دا به ستا وروستی غږ وي.

له عبدالملك سره پنځه تنه نور ځوانان هم توره ايستلې کوټې ته ورننوتل.

طاهر وويل : دننه ډيرو خلکو ته ضرورت نشته، بهر ته پام کوی.

د عبدالملك په اشاره دوه تنه ځوانان بيرته بهر ته ووتل، او پاتې درې نور د ښار د ناظم، د جيل څارن او قشمور په سر ودريدل.

طاهر وويل : جګ شی!

: مهلب چې له ويرې لرزيده: ته څه غواړې؟

طاهر ځواب ورکړ : ما درته وويل چې څو خبرې درسره لرم.

: ستا هرې غوښتنې منلو ته چمتو يم، ووايه څه غواړې؟!

: یوازې دا چې تول له مونږ سره ولاړ شي.
: چیرته ؟
: چیرته مو چې بیایو.
: که له تلو انکار وکړو نو!
: بیا به له مجبوری نه له توری کار واخلم، ته یې په تیغ لاس ووهه!
طاهر دا وویل او د توری څوکه یې د هغه په سینه ورچوخ کړه.
: نه، نه د خدای «ج» په خاطر په ما رحم وکړه، زه وعده کوم چې بغداد به پریږدم او چیرته به ولاړ شم.
: زما ستا پر وعدو باور نشته، ځکه خو زه تا له ځانه سره بیایم.
: چیرته؟
: له بغداده لرې داسې ځای ته چې ته بیا بیرته دلته تری رانشی.
: ته دا وعده وکړه چې ما به نه وژنې!
طاهر وویل : که زه وعده وکړم نو ستا به باور شي؟
: زه پوهیږم چې ته په دروغو وعده نشي کولی.
عبدالملك وویل : د بغداد د مناظرو په ډیر اوریدو اوس په بحث روږدي شوي دي، زه د ده په چاره پوهیږم.
عبدالملك طاهر یوې خواته کړ، د مهلب په ورمیږ یې توره ورکیښوده او ویې ویل : جگیږه که...!
مهلب په بتده بنده لهجه وویل : د خدای «ج» په خاطر په ما رحم وکړه زه ځم.
: ورو غوړیږه! عبدالملك پتکه پری وکړه.
قشمور بیا توری ته د لاس ور اوږدولو هڅه وکړه خو طاهر گړندی ور وړاندې شو د هغه په گیډه یې توره کیښوده او ملگری یې له هغه نه توره واخسته.
قشمور وویل : توریالی داسې نه کوی چې یو څوك بې وسلې کړی او بیا پری حمله کوی.
طاهر وویل : ته داده اوسه تاته به د توری چلولو د کمال ښودلو فرصت هم برابر شي.
: که ته دا وعده کوی نو زه چمتو یم چې درسره ولاړ شم.
: زه وعده کوم او زه دا ژمنه هم کوم چې ستا د توری په مقابله کې به زموږ له لوری یوازې یوه توره وي.

قشمور وویل : درځی!

طاهر د ښار ناظم او د جیل څارونکی ته وکتل ویې ویل: جګ شی تاسو ته هم ضرورت دی.

* * * * *

(۲)

مهلب او د هغه ملګرو په خپلو پښتیو د تورو تیری څوکی احساس کړی او له کوټی نه راووتل، د طاهر نورو اته، لسو تنو هغوی راګیر کړل، د سیند پر غاړه دوی کښتی ولاړی وی، د طاهر ملګرو د مهلب د چکر د ټولو کښتیو پړی شلولی او په سیند کی یې لاهو کړی وی، هغه پنځه تنه پهره داران هم چی دوی په نیم خوبی حالت کی نیولی وو لاسونه او پښی یې په پړیو تړلی پراته وو.

طاهر مهلب ته په کښتی کی د سپریدو اشاره وکړه، او هغه دده تر اشاره زیات د عبدالملك د توری په څوکه مجبور شو چی په کښتی کی سپور شی.

قشمور، د جیل څارونکی او د ښار ناظم هم وریسی په کښتی کی سپاره شول.

د طاهر اته تنه ملګری په یوه ځانګړی کښتی کی او نور اوه تنه په پړیو تړل شویو کسانو سره یوځای په دوهمه کښتی کی سپاره شول.

لږ څنډ وروسته کښتی د سیند په منځ کی د څپو له بهیر سره وخوځیدی.

مهلب څو ځلی په ډیره عاجزی پوښتنه وکړه : تاسو موږ چیرته بیایی!

عبدالملك هر ځل دا ځواب ورکاوه : چورته مه وهه ستا منزل ډیر لنډ دی.

د آبادو غاړو نه نږدی اته میله لری طاهر په کښتی کی له پرتو ډبرونه یوه راپورته کړه مهلب او ملګرو ته یې وروښودله ویې ویل : تاسو پوهیږی چی دغه ډبری د څه لپاره په کاریږی؟

مهلب په ژړاشو ویې ویل : نه، نه دا ظلم دی د خدای «ج» په خاطر په ما ورحمیږی!

طاهر قشمور ته وکتل : څنګه جنابه ته ووایه! ایا دا پوښتنه ظلم دی چی د سیند پر غاړه پرتی ډبری د څه لپاره په کاریږی؟

: زه په دی مطلب ونه پوهیدم.

عبدالملكوویل : دی ساده سړی دی، دغسی پوښتنی مه تری کوه.

قشمور له غوسی نه ولړزیده ویې ویل : تا له ما سره د توریالیو په څیر د مقابلی وعده کړی وه؟

طاهر وويل : زما په زړه کی له غيرتيانو سره عزت شته زه خپل ملگری ته نصيحت کوم چی له تا سره گستاخی نه کوی، همدغسی له تانه هيله لرم چې د بی غيرتو مرسته به نه کوی، زه له تانه څو پوښتنی کوم، نه بلکی تا قاضی کوم او خپله دعوه درته وړاندی کوم.

قشمور وويل : مگر زه يوازی سرتيری يم.

: زما دعوه ډيره جنجالی نه ده، يو محل يوه سړی زما پر ملا ډبره تړلی وه او سيند ته يی غورځولی وم، که هغه سړی په لاس راشی زه څه سزا ورکړم؟

قشمور : که دی وموند نو همدغسی سلوك ورسره کولی شی!

طاهر : زماله يوه زړور سرتيری نه د همدغه ځواب تمه وه، د جيل د څارن تر ملا ډبره وتړی!

دطاهر دری ملگرو هغه په زور پرمخی څملاوه، هغه چی د څه مزاحمت هڅه وکړه عبدآلملك د توری څوکه پر ورميږ ورکيښوده ويی ويل : خبردار! که لږ وخوځيدی حلالوم دی.

کله چی د هغه تر ملا ډبره تړل کيدله نو مهلب جگ شو او په سيند کی يی د توپ وهلو هڅه وکړه خو طاهر په کيڼ لاس د هغه په ښی تندی د سوك وار وکړ او په کښتۍ کی يی راوغورځاوه، د ښار ناظم هم د جگيدو هڅه وکړه خو د طاهر يوه ملگری لـه شانـه د هغـه په غـاړه کی پړی ورواچاوه او پـه کـښتـۍ کـی يـی راوغورځاوه.

لږ ځنډ وروسته د ښار د ناظم او مهلب پر ملا هم ډبری وتړل شوی.

مهلب د عبدالملك د گواښونو پروانه کړه، په چيغو يی وويل : زما ډبره له دوی دواړونه درنه ده، دوی له مانه ښه لامبوزن دی، د خدای «ج» په خاطر ما پريږدی. زه تاسو ته يو لك اشرفی درکولو ته چمتو يم.

طاهر وويل : نه، نه، نژدی د نيمی اسلامی نړی د تباهی لپاره دا بدله ډيره لږ ده.

: زه دوه لکه درکوم پړی می پرې‌دی.

طاهر : مگر پردی خو د خوارزم يو ويجاړ شوی ښار هم بيرته نشو آبادولی.

: زه پنځه لکه اشرفی درکوم، تر دی زياتی له ماسره نشته.

: مگر ستا پلار ډير غريب سړی و، تا دا دومره دولت له کومه کړ؟ زما په گومان ته د ځان ژغورلو لپاره دروغ وايی!

: نه په خدای «ج» سوگند دروغ نه وایم، زما سره پنځه لکه اشرفی او د همدومره بیې جواهرات هم دی، ما پرېږدی زه د دی تولو ورکولو ته چمتو یم.
: د دی مطلب دا دی چی تا د بغداد له خلکو نه رشوت اخستی دی؟
: نه، په خدای «ج» سوگند ما رشوت نه دی اخستی.
: نو دا مال دی له کومه کړی؟
: ماله مغلو نه اخستی دی!
: تر کومه چی ماته معلومه ده مغلو بوازې یوه سړی ته زیات مال ورکړی ؤ، او هغه، هغه څوك ؤ چی چنگیز خان ته یی پر خوارزم د حملې په صورت کی د خلیفه د بی طرفی ضمانت ورکړی ؤ، چی وحید الدین یی بندی او بیا یی په زهرو وواژه، چی صدر اعظم یی وواژه او خلیفه مستنصر ته د مغلو د دوستی له پیغام سره راغلی ؤ.
مهلب وویل : زه خپلې تولی غلطی منم او اعتراف پرې کوم خو د خدای «ج» په خاطر ما وبخښی زما په مرگ تاسو ته هیڅ گټه نه رسیږي.
طاهر ځواب ورکړ : زه پوهیږم چی ستا پر مرگ سربیره چی پر بغداد کومه تباهی راتلونکی ده، هغه به راځی، په بغداد کی د منافقانو او خاینانو شمیر ستا د سر له ویښتو هم زیات دی، خو د بغداد د تباهی د سببونو له برابرولو وروسته به د مغلو نه د انعام اخستونکی ته نه بل څوك وی، تا مغلو ته د بغداد دروازی خلاصی کړی، خو د دوی د تورو په سیوری کی به پر مسلمانانو حکومت کوونکی غدار ستا له کورنی څخه نه له کومی بلی کورنی څخه وی.
د ښار ناظم وویل : تا ته د زهرو په درکولو او په سیند کی ډوبولو په دسیسه کی زما هیڅ لاس نشته.
طاهر وویل : نو تاته څنگه معلومه شوه چی له ماسره داسی پیښه شوی وه؟
: ماته د جیل څارن وویل!
د جیل څارن وویل : بی غیرته کیږه مه په دی دنیا به له ما پرته ستا زړه څه وږ ولگیږی؟
طاهر وویل : اوس ته دا پریکړه وکړه چی پخپله به په سیند کی ځان ورغورځول خوښوي یا موږ تاسو ترلاس او پښوونیسو او سیند ته مو وغورځوو؟
د جیل څارن وویل : که له موږ سره احسان کوی نو داسی به ښه وی چی موږ یو ځای سیند ته واچوی.

طاهر وویل : ماته منظوره ده، زه په وروستیو شیبو کی له تاسو سره څه زیاتی کول نه غوارم، او دا دبری له هغو دبرو نه په وزن کی زیاتی نه دی چی ما یی بوج واخست او له سینده پوری وتم.

د بنار ناظم وویل : مگر زموږ لامبو نه ده زده.

: نو په دی صورت کی به موږ په زور تاسو سیند ته ور غورځوو! عبدالملکه لومړی د مهلب نوبت دی.

د جیل څارن خپلو ملگرو ته وویل : که یو یو په اوبو کی وروغورځول شوو نو ستاسو دوبیدل حتمی دی.

که یوځای ور پریوتو نو زه ستاسو سره د ملاتړ ژمنه کوم، دا دبره دیره معمولی ده، زه تر دی له دروند بوج سره له سینده پوری وتلی شم.

طاهر او د هغه ملگری د جیل د څارن پردی ایثار حیران شول، ځکه چی په بدنی لحاظ هغه له خپلو ملگرونه کمزوری او دنگر ؤ.

بیا هم هغوی داده وو چی له دومره بوج سره هیڅوک هم څنډې ته نشوای رسیدلای.

د جیل څارن وویل : تاسو موږ ته د یو ځای کوزیدو اجازه راکوی؟

طاهر : زموږ پردی هیڅ غرض نشته.

د جیل څارن جگ شو د کښتی پر څنده ودرید او ویی ویل : زه ځم که ستاسو زما مرستی ته اړتیا وی راپسی راځی که نه نو زه به په تاسو پسی شاته راونه گورم.

ناظم او مهلب هم چټك پورته شول د هغه ترڅنګ ودریدل د جیل څارن لاسونه وغځول ویی ویل : خپل ورمیږونه زما بغل ته راکړی زه به تاسو له گردابه راوباسم وروسته بیا ستاسو د خپل قسمت خبره ده.

دوبیدونکی د یوی خځلی تکیه هم غنیمت گڼی مهلب او ناظم هم خپل تقدیر د جیل څارن ته وسپاره، عبدالملک د طاهر په غوږ کی وویل : د ده بلکل لامبو نه ده زده، زه دی له هغه وخته را په دی خوا پیژنم چی په پوځ کی ؤ.

طاهر وویل : ماته معلومه ده، یو لامبوزن دومره احمق نشی کیدای.

دری واړه تر لږ ځنده د کښتی پر څنده زړه نازړه ولاړ وو، بالاخره د طاهر ملگرو په تورو هغوی مجبور کړل چی په سیند کی ځانونه وروغورځوی.

: ناظم او مهلب دواړو په گډه چیغی کړی: موږ پریږده، غداره ستا لامبو نه ده

زده، مورِ هم درسره ډوبوي، خاينه، فريبكاره، دروغجنه، مكاره مورِ خوشې كړه!

خو د جيل څارن هغوی كلك نيولی وو او ويل يې : مورِ... په ژوند او مرگ... له يو بل سره... د ملگري... ژمنې كړي وي...

او بيا هغوي څو ځلې د ډوبيدو او راښكاريدو نه وروسته په اوبو كې ورك شول.

په دې موده كې د قشمور پر سر دوه توره ايستلي ځوانان ولاړ وو قشمور چې طاهر او عبدالملك وليدل چې ده ته يې پام ور واوښت ويې ويل :

تاسو ماته د يوه سرتيري په مرگ د مړينې وعده راكړې وه، اوس مو اراده څه ده؟

طاهر ځواب وركړ : مورِ به ستا هيله پوره كړو.

تا دا وعده هم كړې وه چې زما مقابله به يوازې له يوه سړي سره وي.

: مورِ پر خپله وعده ولاړ يو.

* * * * *

(۳)

د نيمې شپې سپوږمۍ راپورته شو، دواړه كښتۍ پر څنډو ولگيدې، طاهر خپلو دوو ملگرو ته په بله كښتۍ كې پر پنځو تنو اسيرانو د پهرې لپاره امر وكړ او د ده نور ملگري د ده د لارښوونې سره سم له كښتۍ نه ښكته شول، د اوبو او څنډې ترمنځ په يوه وړوكې تاپو ودريدله ، تر دې وروسته قشمور عبدالملك او طاهر د تورو په سيوري كې د كښتۍ نه راښكته كړ او چې كله د دوی ملگري تر قشمور راچاپير شول نو طاهر قشمور ته د توری وركولو حكم وكړ.

عبدالملك د طاهر په غوږ كې وويل : پر غشيو د ټپي كيدو نه وروسته ستا ډيره وينه وبهيده، څكه خو دې مقابلې ته ماته اجازه راكړه.

طاهر ځواب وركړ : د صفيې د شهادت نه وروسته ما يوه ژمنه كړې وه، زه هغه پوره كول غواړم، ته زما په باب چورت مه وهه زه بالكل روغ يم.

عبدالملك ډير ټينگار وكړ او چې كله د دوی بحث زور واخست او غږونه يې اوچت شول او په لوړ غږ يې د يو بل د قانع كولو هڅه كوله قشمور وويل:

زما د مقابلې لپاره بايد داسې سړی مخې ته راغلی وای چې زما سيال وای، له بده بخته په تاسو كې يو هم زما سره په مرتبه كې برابر نه ياست، بيا هم زه طاهر غوره بولم.

طاهر عبدالملك یوی خواته دیکه کړ توره یی له تیکی راوویستله او ویی ویل : تیاریږه!

قشمور توره وخوځوله او په داډ یی ځواب ورکړ:

زه تیار یم.

د شپی به تیاره کی د تورو شرنگهار پورته شو، له لږ ځنډ توندو حملو وروسته قشمور مات شو او شاته ولاړ.

طاهر وویل په اوبو کی د ورکوزیدو په اراده شاته د تلو هڅه مه کوه، ما تاته د توریالیو په څیر د مقابلی وعده درکړی وه د تښتیدو د فرصت وعده می نه وه کړی.

قشمور ویل : نو ستا په خیال زما لپاره له مرگه پرته بله سزا نشته!

طاهر وویل : اوس دی پر خپل مرگ باور راغی؟

: هوکی زه داسی احساسوم چی ستا د تېونو په اړه زما اټکل غلط ؤ، ما اشتباه وکړه چی د عبدالملك پرځای می ته مقابلی ته غوره کړی.

ته د دی غلطی جبران کولی شی.

: څه ډول؟

: وسله وغورځوه.

هغه چی طاهر لږ بی پروا او غافل ولید ناڅاپه یی توپ کړ او پر طاهر یی پرلپسی گوزارونه وکړل، یو ځل خو یی توره په یوه شڼ د طاهر د ککری سره نژدی تیره شوه، طاهر تېښ شو ځان یی وساته او بیا یی ناڅاپه پر هغه نیغ وار وکړ، قشمور تاو راتاو شو او په ځمکه راپرېوت، توره د هغه تر خیته بوته ختلی وه.

طاهر ورتېښ شو د هغه په لمن یی توره پاکه کړه عبدالملك ته یی وکتل او ویی ویل : که ده توبه کړی وای نو خامخا به می پریښی ؤ، خو ده غوښتل ما په خبرو راولی او فکر یی کاوه چی زه به بی پروا شوی یم.

عبدالملك وویل : راځه چی نوره ناوخته کیږی، زما په خیال خو دواړه کښتۍ باید سیند ته ورتیل وهو، بندیان به هم پکی پریږدو تر سهاره به دا کښتی ډیری لری تللی وی او تر څو څوك بندیان را وباسی او د دوی کیسه اوری موږ به ډیر لری تللی وو.

طاهر وپوښتل : زموږ آسونه له دی ځایه څومره لری دی؟

عبدالملك ځواب ورکړ : نژدی نیم میل لری به وی.

*****

(٤)

د عبدالملك د هدایاتو سره سم له بغداده د هغه څو دوستان یوه‌ورځ وړاندی دی سرای ته را رسیدلی وو چی ده پکی د خوارزم شاه یو نیم سل تنه سر تیری تم کړی وو، د عبدالملك میرمن او دوه بچیان چی یو اته کلن هلك او بله یی پنځه کلنه لور وه دی سرای ته را رسیدلی وو.

دریمه ورځ ماښام مهال عبدالملك او طاهر هم له شلو تنو سره ور ورسیدل او څلورمه ورځ سهار وختی قافله د هندوستان په لور وخوځیده.

څو ورځی وروسته چی کله دوی له وړوکو وړوکو غونډیو نه تیریدل طاهر په یوه لوړه غونډۍ ودرید او د شمال لوړو غرونو ته یی وکتل، هغه په تصور کی د یوه خوړ په غاره د ډبرو هغه ځلی لیده چی صفیه تری لاندی په ابدی خوب ویده وه، عبدالملك لږ ځنډ اس ودراوه او د هغه انتظار یی کاوه او بالاخره یی ورته وویل:

طاهره په څه چورتونو کی ډوب یی؟!

طاهر ټکان وخوړ هغه ته یی وکتل، په سترګو کی یی اوښکی ځلیدلی.

عبدالملك په غمجنه لهجه وویل : راځه قافله لری ولاړه.

طاهر اس ته پونده ورکړه ویی ویل : عبدالملکه! زه په دی فکرونو کی یم چی د بغداد په باب زموږ دومره مایوسی خو به اشتباه نه وی؟

عبدالملك ځواب ورکړ: نه! زما په ګومان موږ دا لویه غلطی وکړه چی د بغداد له خلکو نه مو لویه توقع درلوده.

: آیا دا امکان لری چی هغه ښار چی صفیه غوندی نجونی پکی زیږیدلی د تل لپاره ورك شی؟

: په کوم ښار کی چی د مهلب غوندی په زرګونو انسانان وی، هغه له تباهی نه هیڅوك نشی ساتلی، صفیی خو د داسی ښار په خاوره کی ښخیدل هم ونه منل چی د خدای «ج» قهر پری راتلونکی دی.

: عبدالملکه ! موږ خو به له خپل مسئولیت څخه تښتو نه؟

: نه، موږ هلته روان یو چی خپل فرض مو ورغواړی، زما باور دی چی په هندوستان کی پاتی شو موږ به د قوم سهی خدمت وکړای شو، سلطان التمش زموږ تورو ته اړتیا لری، په بغداد کی موږ خپل فرض پوره کړی دی، کومو خلکو چی د ځان وژنی اراده کړی وی هغه هیڅوك نشی ژغورلی، کله چی یو داسی

اولس چی په توپان کی یی د ډوبیدلو اراده کړی وه د نوح علیه السلام غوندی د لوړ مقام خاوند پیغمبرونه ژغورلای شو نو موږ څوك یو؟

. موږ د بغداد خلکو ته د دوی په لار کی خطرناکی کندی ور وښودلی، خو هغوی په پټو سترګو په تګ ټینګار کوی نو په دی کی نور زموږ څه قصور دی؟

د خوارزم ښارونه د دوی تر سترګو لاندی یو یو تباه شو، خو د تقدیر له لوری په وار وار د دوی پر ګواښلو برسیره هغوی عبرت وا نه خست.

د بغداد خلك د ذلت هغه وروستی تل ته کوز شوی دی چی له هغه ځایه یی بیرته راپورته کول د کوم انسان د وس خبره نه ده، د کوم کلی چی په هرو پنځو تنو کی یو غدار وی هغه له تباهی نه څوك ژغورلی شی؟

د یوه اولس د تباهی لپاره د مهلب په څیر یو سړی بس دی، په بغداد کی خو په زرګونو مهلبان شته.

طاهر وویل : د بغداد د تباهی نخښی به د مستعصم پر تخت کیناستلو سره رابری شی، ما اوریدلی دی چی د هغه له شرابو او د ښځو له نڅا او سرود پرته هیڅ نور زړه نه غواړی، زما په نظر خو د بغداد د تباهی لپاره همدا کافی ده چی په داسی سړی د خلیفه نوم پوری شی.

هغه چی کوم څوك وزیر وټاکی خامخا به تر مهلب زیات چالاك وی.

* * * * *

(۵)

طاهر او عبدالملك د التمش د پوځ غوره جنرالان بلل کیدل، د جلال الدین خوارزم شاه په اړه چاته معلومات نه ؤ چی چیرته دی، مغلو په هغه پسی آذربایجان، ارمنیا، او قفقاز لویشت په لویشت ولټول هغوی څو ځلی د هغه د مرګ اعلان وکړ خو نړیوالو دا نه منله.

وخت تیریده، طاهر د عزت او شهرت وروستی پوړی ته رسیدلی ؤ، په نړی کی هیڅ داسی نعمت نه ؤ چی ده نه ؤ ترلاسه کړی، د ثریا مینی د ده د کور د ماحول جنت نظیره کولو لپاره بس ؤ.

په بودا توب کی د ده دری زامنو په توره چلولو کی نومونه ایستلی وو، د ثریا ورور اسماعیل په سوداګری کی نوم ګټلی ؤ، د عبدالملك کور د طاهر د کور ترڅنګ ؤ او د هغه بچیان هم په لوړو منصبونو ټاکل شوی وو، مبارك او د طاهر نورو ملګرو هم ښه اسوده ژوند درلود.

په ډيلي کي په زرگونو افراد داسي وو چي د طاهر په ژوند يي رشك کاوه، خو طاهر تل يوی انديښني ځوراوه، او هغه د بغداد يادۍ، د ماضي گردونو د هغه له سترگو بغداد پټ نه کړای شو.

په ډيلي کي يي پنځلس کاله په پوځ او حکومت کي له تيرولو وروسته پاتي ژوند د اصلاح او تبليغ لپاره وقف کړ او عبدالملك په هر ډگر له هغه سره د ملاتړ اراده کړي وه، د هندوستان نا مسلمانو خلکو ته د دين له تبليغ وروسته به دوی يو ډول روحي آرامي احساسوله. خو چي کله به په کوم مجلس او يا غونډه کي د خبرو په وخت کي طاهر ته بغداد وریاد شو نو ده به زر خبري پای ته ورسولي او يوی گوښي ته به ځانگړي شو او په فکرونو کي به ډوب شو.

هغه به په وار وار په خپل زړه کي ويل : کاشکي ما دا ښار له تباهي نه ژغورلي شوای!

هغه به ځان گواښه، عبدالملك به راغي تسلي به يي ورکوله او ويل به يي : طاهره! ستا په سبب په هندوستان کي څو زره تنو کلمه ويلي ده او تر اوسه په مليونونو انسانانو ته د خدای «ج» د پيغام رسولو اړتيا ده، اوس د بغداد په اړه فکر کول هيڅ گټه نه لري، د بغداد ځمکه شاړه وه، ځکه خو هلته د نيکي تخم رازرغون نکړای شو.

د هندوستان ځمکه حاصل ورکوونکي ده، دلته موږ ته د خپل زحمت ثمر لاس ته راځي.

طاهر به ووېل : ته سهي وايي او بيا به جگ شو او خپل کار ته به روان شو.

* * * * *

(٦)

اته ويشت کاله تير شول، په دې اته ويشتو کلونو کي زماني ډير اړخونه بدل کړل، په ايران کي د چنگيز خان لمسی هلاکو خان واکمن ؤ او په بغداد کي د مستعصم د خلافت دريم کال ؤ.

مغلو پر بغداد د حملو تياري کاوه، د خليفه وزير ابن علقمي له مغلو سره جوړ جاړي کړي ؤ خليفه ته يي مشوره ورکړه چي د علم او روحانيت په دې مرکز کي د دري لکه سرتيرو څه اړتيا ده، دا پر خزانه يو بي ضرورته بار دی، ځکه خو په بغداد کي له څو زره سرتيرو پرته نورو سرتيرو ته د تل لپاره رخصت ورکړای شو، بل لوري ته د قوم لويانو او د دين د علماؤ دا حالت ؤ چي د هغوی مناظرو پای ؤ

او د شیعه او سنی بحث نور د بشپړې خپلمنځي جګړې حالت غوره کړی و.

د ښار په امیرانو کی د حکومت د تنخواه خورو پرځای له مغلو سره د خپل ضمیر او د اولس د عزت د بیې ترلاسه کوونکو شمیر څو چنده زیات ؤ.

د خلیفه په لاس کی د شرابو جام ؤ او د هغه د تخت په مخکی ښځو نڅا کوله، چی یو قاصد راغی خبر یی راوړ چی هلاکو خان بغداد ته را نژدی شوی دی، د خلیفه له لاسه د شرابو پیاله ولویده او د هغه پر سپینه چپنه یی څاڅکی ولویدل، هلاکو خان د تالندی او بریښنا په څیر رانازل شو او بغداد هغه تباهی ولیدی چی د بابل او نینوا ورانی یی په مخکی هیڅ وی.

له شلو لکو انسانانو څخه یوازی څلور لکه تنه پدی وتوانیدل چی وتښتی، د دجلی اوبه د وینو له زوره سری شوی د کتابتونونو ، کورونواو مدرسو د اور لمبو له اسمان سره خبری کولی.

د ښار هغه تجربه کار مناظره کوونکی چی له کلونو یی یو پر بل د کفر فتواوی ورکولی، هغه امیران او علماء چی د کلونو کلونو خیانت انعام یی ترلاسه کول غوښتل او هغه خلیفه چی پر تخت کیناست او د خدای «ج» پر دین یی ملنډی وهلی، له لویو لویو او ګرانبیه سوغاتونو سره د هلاکو خان خدمت ته حاضر شول خو د یوه هم ژوندی بیرته راستنیدل نصیب نه شول.

د عباسی خلافت وروستی د سترګو تور یی د وژلو پرځای په لیمڅی کی وپیچه او د فیل پښو ته یی وغورځاوه او چی کله هلاکو خان ته دا شك پیدا شو چی ځینی خلك د ده د توری له دم او د اور له لمبو نه غلي شوی دی او د کورونو په تل خونو کی پټ دی نو هغه د سیند بند ونړاوه چی د هلاکو خان له بیرته ستنیدو وروسته په بغداد کی له سپیو او کارغانو پرته نور څه ژوندی پاتی نه وو، بغداد د ماضی داستان شوی ؤ او د بغداد اولس خپل کړلی ریبل.

پای

د ۱۳۷۷ د وری (حمل) ۲۹مه

الفاروق بلډنګ د سهار ورځپانی دفتر

## د لیکلوال «ژباړن» نور آثار:

*- د وینو پیغام شعری مجموعه چاپ
*- د تیارو په تل کی د لنډو کیسو مجموعه چاپ
*- په جهادی مختلفو موضوعاتو څو رسالی چاپ
*- میړونه ګړنګونه منځنی داستان په امید مجله کی چاپ
*- شاهین تاریخی داستان ژباړه چاپ
*- محمدبن قاسم تاریخی داستان ژباړه چاپ
*- د یوه غازی داستان تاریخی داستان ژباړه چاپ ته چمتو
*- وروستی مورچل تاریخی داستان ژباړه همدا اثر
*- وروستی جګړه تاریخی داستان ژباړه تر ژباړنی لاندی
*- د تروږمی مسافر تاریخی داستان ژباړه چاپ ته چمتو





سبا کتابخانه
میوند
ډهکی نعلبندی - قصه خوانی بازار - پشاور